ترجمه : اې پيغمبره ! ته مؤمنانو سړو ته اُووايه چې خپلې سترګې (نظرونه) ښکته ساتي، او د خپلو شرمګاهو حفاظت کوي، دا ددوی د پاره ډيره پاکيزه (او بهتره) خبره ده، بيشکه الله تعالی د خلقو په هغه کارونو ښه خبر دار دی کوم چې دوی کوي) . او ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي.

**د مذکوره آيت نه استدلال** : په دې آيت کې الله جلّ جلاله مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظر ښکته ساتلو او زِنا نه د شرمګاه د حفاظت حکم کړی، او س د زِنا نه حفاظت هله راځي چې انسان ددې د وسائلو نه هم ځان اُوساتي، او دا ښکاره خبره ده چې د پردو سړو او پردو ښځو اِختلاط په زِنا کې د اَخته کيدو غټه وسيله ده، لهذا ددينه هم ځان ساتل په کار دي. (۱)

- **دويم دليل** : الله تعالی فرمايي :

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّۚ ذَٰلِكَ أَدۡنَىٰٓ أَن يُعۡرَفۡنَ فَلَا يُؤۡذَيۡنَۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾. (۲)

ترجمه : اې پيغمبره ! ته خپلو بيبيانو، خپلو لورانو او مؤمنانو زَنانهؤ ته اُووايه چې (د کور نه د څه ضرور کار پسې د وتلو په وخت) خپل لوی څادرونه په ځان باندې راښکته کړي، په دې سره به ډير زر دوی اُوپيژندې شي (چې دا اَصيلې ښځې دي، وينځې ندي) نو دوی ته به (د بې هُوده سړو د طرفه) تکليف نشي رسولی، او الله تعالی ډير بخونکی

---

(۱) يأمرُ اللهُ تعالى نبيّه عليه الصّلاة والسّلام أنْ يبلغَ المؤمنين والمؤمنات وجوبَ غضّ البصر. وحفظ الفرج عن الزّنا. ومعلومٌ أنّ حفظَ الفرج من الفاحشة إنّما يكون باجتناب وسائلها. واختلاط النّساء بالرّجال في أماكن العمل والتّعليم مِن أعظم وسائل وقوع الفاحشة. مجموع فتاوى ومقالات متنوعة لابن باز ۱/ ۴۲۱.

فإذا نهى الشّارعُ عن النّظر إليهنّ ؛ لما يؤدي إليه من المفسدة. وهو حاصل في الاختلاط. فكذلك الاختلاط ينهى عنه ؛ لأنّه وسيلة إلى ما لا تحمد عقباه من التّمتّع بالنظر. والسّعي إلى ما هو أسوأ منه. مجموع فتاوى ورسائل العلامة محمد بن إبراهيم ۱۰/ ۳۷.

(۲) الاحزاب آية ۵۹.

مهربان دی.

**د مذكوره آيت نه استدلال**: په دې آيت كې الله تعالی نبي عليه السلام ته حكم كړی چې خپلو بيبيانو، لورانو، او د مسلمانانو زَنانهٔ ته أووايه چې بهر ته د وتلو په وخت په ځان باندې لوې څادر راواچوي، چې منافقين ورته ضرر أو نه رسوي.

نو چې كله زَنانهٔ ته د وتلو په وخت دومره سخت د پَردې حكم شوی نو آيا اوس به شريعت د دې اجازت وركړي چې زَنانه دې ښكاره مخ د پرَدو سړو سره يو ځای په دفترونو او نورو ځايونو كې اِختلاط (ګډون) اوكړي؟ حالانكې د اِختلاط په وخت فاسق خلق په زَنانهٔ باندې زړه وَروي چې څه يې زړه غواړي هغه په آسانه كولې شي.(١)

## دريم دليل: الله تعالی فرمايي:

﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ ذَٰلِكُمْ أَطْهَرُ لِقُلُوبِكُمْ وَقُلُوبِهِنَّ﴾.(٢)

ترجمه: او كله چې تاسو د نبي عليه السلام د بيبيانو نه څه څيز غواړئ نو د پَردې شاته (أودريدو سره) يې ورنه غواړئ (څكه) دا ستاسو او د هغوی د زړونو د پاره ډيره پاكيزه طريقه ده.

**د مذكوره آيت نه استدلال**: د دې آيت شان نزول اګر چې په يوه خاص واقعه كې د ازواج مطهّرات په باره كې دی ليكن حكم يې عام دی، هرې زَنانه ته شامل دی، صرف د آزواج مطهّرات سره خاص ندی.(٣)

الله تعالی مؤمنانو ته حكم اوكړو چې كله د پرَدی زَنانه نه د ضرورت څه څيز غواړئ نو

---

(١) يقولُ الله تعالی آمرًا رسوله صلى الله عليه وسلم أنْ يأمرَ النساء المؤمناتِ خاصة أزواجه وبناته لشرفهن بأن يدنين عليهن جلابيبهن ليتميّزن عن سمات نساء الجاهلية. فلا يتعرض لهنّ مَن في قلبه مرضٌ. فإذا كانتِ الشريعة تأمر المرأة بالحجاب عند خروجها لئلا يتعرض لها من في قلبه مرض. أفيتصور أنْ تجيز هذه الشريعة اجتماع الرّجال بالنّساء السافرات في أماكن العمل والتّعليم مع ما يفرضه ذلك على المرأة من التبذل، ومِن ثَمّ جرأة الفُسّاق عليها؟. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ٥٤٧.

(٢) الاحزاب آية ٥٣.

(٣) معارف القرآن سورة الاحزاب، الجامع لأحكام القرآن للقرطبي ج ١٣ ص ١٧٨.

د پردې شاته اُودريدو سره يې ورنه غواړئ، نو دا آيت واضح دليل دی په دې باندې چې د پردو سړو او پردو ښځو په مينځ کې پرده ضروري ده، او اختلاط منع دی. (۱)

**څلورم دليل** : الله تعالی فرمايي :

﴿ وَلَا تَقۡرَبُوا الزِّنَىٰٓ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾. (۲)

ترجمه : او تاسو زِنا ته مه نژدې کيږئ؛ ځکه دا بې حيايي او بده خبره ده.

**د مذکوره آيت نه استدلال** : الله تعالی داسې اُو نه فرمايل چې " زِنا مه کوئ " بلکې داې اوفرمايل چې " زِنا ته مه ورنژدې کيږئ " دا ځکه چې په دې کې ډيره مُبالغه ده ، اوس يې مطلب دادی چې زِنا ته او د زِنا ټولو اَسبابو ته مه ورنژدې کيږئ؛ ځکه چې کله انسان د زِنا په اَسبابو کې اَخته شي نو آخر هم په زِنا کې مبتلاء کيږي.

او دا خبره يقيني ده چې دا نن صبا د پردو سړو او پردو ښځو په کومه طريقه اِختلاط دی ( چې د ښځو مخونه او زِينت ځايونه ښکاره وي ، او يو بل سره ګپ شپ لګوي ) نو ددې آخري اَنجام زِنا ته رسي ، ځکه خو شريعت ددې د مَخنيوي [illegible] ره د زِنا ټول [illegible] باب او مقدّمات منع کړل چې په هغې کې اِختلاط هم دی ، ددينه يې هم [illegible] (۳)

---

(۱) أمَرَ الله تعالى المؤمنينَ إذا سألوا نساءَ النبيِّ صلى الله عليه وسلم حاجةً _ ويدخل في ذلك [illegible] النساء بالمعنى _ أنْ يسألوهم من وراء حجابٍ ، والأمر بكونِ سؤالهنّ من وراء حجابٍ دليلٌ واضحٌ على لزوم الحواجز ونبذ الاختلاط . فتاوی ورسائل العلامة محمد بن إبراهيم ۱۰/۲۴۴.

(۲) الاسراء آية ۳۲.

(۳) والنهيُ عن قربانه أبلغُ مِن النهي عن مجرّد فِعله لأنّ ذلك يشمل النهي عن جميع مقدماته و دواعيه فإن : "مَنْ حَامَ حَوْلَ الحِمَى يُوْشِكُ أَنْ يَقَعَ فِيْهِ" خصوصاً هذا الأمر الذي في كثير من النفوس أقوى داعٍ إليه. تفسير السعدي ( تيسير الكريم الرحمن في تفسير كلام المنان ) لمولانا عبد الرحمن السعدي ج ۱ ص ۴۵۷ الاسراء آية ۳۲.

وقال الشيخ محمد الأمين الشنقيطي رحمه الله : ولا يصحّ لعاقل أنْ يشكّ في أنّ اختلاط الجنسين في غاية الشباب ونضارته وحسنه أنّه أكبر وسيلة وأنجح طريق إلى انتشار الفاحشة وفشو الرّذيلة بين الجنسين .

وقال أيضاً: ومعلومٌ أنّ اختلاط الجنسين في الجامعات على الحالات المعهودة في جامعات أوروبا ونحوها أنّه فتح للباب على مصراعيه للذريعة الزّنا كما هو مشاهد مشاهدة لا يمكن معها الجدال إلا من مكابر . حكم الإسلام في الاختلاط جمعية الإصلاح ص ۷۸ ، و ص ۸۰ .

**پنځم دليل** : د حضرت موسىٰ عليه السلام په واقعه کې ذکر دي چې کله مَدين ته لاړ او هلته يې د يو کوهي سره خلق اُوليدل چې خپلو چېلو (اُوزو) ته يې اُوبه ورکولې خو دوه زَنانه يې يو طرف ته اُوليدې چې هغوی خپلې چيلې راحصارې کړې وې او نورو شپُونکيانو سره يې يو ځای چېلو ته اُوبه ورکول نه خوښولې ، اګر چې په هغوی باندې پَرده فرض نه وه خو بيا يې هم د خپل شرافت او حياء په وجه د نورو خلقو سره يو ځای ګډون (اِختلاط) نه خوښول .

حضرت موسىٰ عليه السلام د هغوی نه پوښتنه اوکړه چې تاسو ولې د دوی سره يو ځای چېلو ته اُوبه نه ورکوئ ؟ نو هغوی ورته په جواب کې همدا وويل چې تر څو پورې دا شپونکيان نه وي تللي مونږ تر هغې پورې خپلو چېلو ته اُوبه نه ورکوو ( ځکه د هغوی سره يو ځای ګډون نه خوښوو ) ، او زمونږ پلار بُودا دی نور څوک نارينه مو نشته ځکه مونږ د مجبوريت نه رااُوتي يو ...... ( دا اُوږده واقعه ده ) . (۱)

**د مذکوره واقعې نه اِستدلال** : په دې واقعه دا ذکر شو چې د حضرت شعيب عليه السلام لورانو چې د شپونکيانو سره يو ځای چيلو ته اُوبه نه ورکولې نو دا ځکه چې دوی د پرَدو سړو سره اِختلاط ( ګډون ) نه خوَښول ، او په همدې ښائسته صفت الله تعالىٰ د دوی مَدحه هم اوکړه . (۲)

**شپږم دليل** : الله تعالىٰ فرمايي :

---

(۱) تفسير معارف القرآن لمولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله سورة القصص في تشريح آية ۲۵ .

په قرآن کريم د حضرت موسىٰ عليه السلام دا واقعه داسې ذکر کړی : ﴿ وَلَمَّا وَرَدَ مَاۤءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۠ وَ وَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ؕ قَالَتَا لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ٜ وَ اَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ... ﴾ . القصص آية ۲۳

(۲) ففي هذه الآية بيّن جلّ وعلا أنّ ابنتي شيخ مدين لا تسقيان الماء حتى يصدر الرّعاء لئلا يختلطا بالرّجال ، وهذا فيه مدح وثناء على هذا الخُلُق والسّلوك كما هو بَيِّنٌ من السّياق . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۵۰ .

﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى ﴾ .(۱)

ترجمه : او تاسو په کورونو کې اوسئ ، او د پرومبي جاهليت (د زمانې) په شان ښائست مه ښکاره کوئ.

**د مذکوره آيت نه استدلال** : ددې آيت نه هم دا معلوميږي چې د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط منع دی ؛ ځکه الله تعالی زنانهٔ ته په کور کې د پاتې کيدو حکم کړی چې د فتنې نه په امن شي ، او اختلاط ددې منافي دی ، ځکه په اختلاط کې خو ښځه بلاضرورت بهر اوځي ، د پردو سړو سره څنګ په څنګ ناسته وي ، يو بل ته ګوري ، ګپ شپ او خنداګانې ورسره کوي .(۲)

# د اختلاط په حرمت باندې د احاديثو نه دلائل

د بې شماره احاديثو نه هم دا معلوميږي چې بغير ضرورته د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط منع دی. زه درته يو څو دلائل د احاديثو نه رانقل کوم :

## اول دليل : ( نبي ﷺ زنانه د اختلاط نه منع کړی )

**۱** . د ابوداؤد شريف او مشکوة شريف حديث دی ، حضرت ابواسيد انصاري رضي الله عنه فرمايي چې يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د جمات نه بهر راووت ، خلقو ته يې څه نصيحت کولو ، ما هغه نصيحت واوريد ، په دې وخت کې سړي د ښځو سره په لاره کې يو ځای شول (يعنی يو ځای روان وو ) ، رسول الله صلى الله عليه وسلم زنانهٔ ته اوفرمايل :

اِسْتَأْخِرْنَ. فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيْقَ عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيْقِ .

---

(۱) الاحزاب آية ۳۳ .

(۲) وإذا كانتِ الشريعةُ قد جاءتْ بمنع المرأةِ مِن الخروج من بيتها لغير حاجةٍ درءًا للفتنة، وصيانةً للمرأةِ ، فهل يصحّ أن يكونَ خروجها للعمل والدّراسة مع الرّجال التي هي مواضع فتنة جائزًا شرعًا ؟ ويؤخذ من قوله تعالى: {وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ} الأمر بالقرار في البيوت سدًّا لباب الإختلاط؛ لأنّه خروج لغير ضرورة معتبرة فاتح لباب الإختلاط . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۴۸ . الاختلاط أصل الشر في دمار الأمم والأسر ص ۱۱۴ ، فتاوى الشيخ محمد بن إبراهيم ۱۰ / ۳۸ .

(اې ښځو !) تاسو د سړو نه روستو (جدا) ځئ ؛ ځکه ستاسو د پاره دا مناسب ندي چې د لارې په مينځ کې ځئ ، بلکې په تاسو لازم دي چې د لارې په غاړه (څنډې طرف ته) ځئ .

راوي د حديث فرمايي چې ددينه پس به ښځې په لاره کې د ديوال سره يو ځای (څنډې ته) تللی ، تر دې چې ښځې به د ديوال سره دومره نزدې تللی چې کپړې به يې د ديوال سره اُونختلی . (۱)

**د مذكوره حديث نه استدلال** : په دې حديث کې نبي عليه السلام سړي او ښځې په لاره کې د يو ځای تللو نه منع کړل حالانکې په لاره باندې يو ځای تلل د لږ وخت د پاره وي او په دې کې د فتنې يره هم ډيره کمه وي ، نو اوس په دفترونو يا نورو ځايونو کې به د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط په طريقِ اولی سره منع وي ، ځکه په دې ځايونو کې د سړو او ښځو ځانله کيدل هم راځي او د فتنې يره هم ډيره وي . (۲)

۲ . په يو بل حديث کې راځي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

---

(۱) عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ : وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ الْمَسْجِدِ، فَاخْتَلَطَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ فِي الطَّرِيقِ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلنِّسَاءِ: « اِسْتَأْخِرْنَ. فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيقِ » فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ تَلْتَصِقُ بِالْجِدَارِ حَتَّى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ مِنْ لُصُوقِهَا بِهِ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الأَدَبِ بَابٌ فِي مَشْيِ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ فِي الطَّرِيقِ رقم الحديث ۵۲۷۲ قال الالباني : حسنٌ ، مشكوة المصابيح كتاب الآداب بَاب الجُلُوس وَالنَّوْم وَالْمَشْي الفَصْل الأول رقم الحديث ۴۷۲۷(۲۱) ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۵۸۰ ، شرح السنّة للبغوي ج ۱۲ ص ۳۲۲ .

(۲) وإذا مُنِعَ الإختلاطُ في الطّريق مع كونه عابرًا عارضًا فمنعه في المجالس وأماكن العمل والتّعليم أولى، وهذا قياسٌ أولويٌّ . وقال ابن حجر معلّقًا على حديث أم سلمة رضي الله عنها في انصراف النساء قبل الرجال: « وَفِيهِ اجْتِنَابُ مَوَاضِعِ التُّهَمِ وَكَرَاهَةُ مُخَالَطَةِ الرِّجَالِ لِلنِّسَاءِ فِي الطُّرُقَاتِ فَضْلًا عَنِ الْبُيُوتِ . » . فتح الباري لابن حجر ۲/ ۳۳۶. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۶۰ .

وقال العلامة محمد بن إبراهيم آل الشيخ رحمه الله : وجهُ الدّلالة: أنّ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم إذا منعهنّ مِن الإختلاط في الطريق، لأنه يؤدي إلى الإفتتان، فكيف يقال بجواز الاختلاط في غير ذلك ؟! »
مجموع فتاوى ورسائل الشيخ محمد بن إبراهيم ۱۰/ ۴۲.

لَيْسَ لِلنِّسَاءِ وَسَطُ الطَّرِيْقِ.(۱)

د ښځو د پاره د لارې په مينځ باندې تلل نشته.

شيخ ابن حبان رَحِمَهُ اللهُ ددې حديث په تشريح کې فرمايي : په دې حديث کې لفظًا اِخبار يعنى خبر ورکول دي خو مراد ورنه دادى چې ښځې دې په تللو کې د سړو سره ځان نه جَنګوي . ځکه د لارې په مينځ باندې اکثر سړي ځي نو که ښځې ورباندې هم لارې شي نو بيا دواړه سره جَنګيږي (حالانکې دا اختلاط د فِتنې سبب ګرځي).

لهذا په ښځه باندې دا واجب دي چې د لارې په يو طرف به ځي. (۲)

## دويم دليل : (صحابِياتو به د اِختلاط نه ځان ساتل)

د نبي عليه السلام په زمانه کې به چې ښځو په مسجدِنبوي کې د جَمعې مونځ اوکړو نو د سلام ګرځولو نه پس به سمدستي پاځيدى او کورونو ته به روانې شوى ، پيغمبر عليه السلام او صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به څه وخت ناست وو ، اِنتظار به يې کولو چې زَنانه مخکې لارې شي ، دا ددې د پاره چې په لاره کې د سړو او ښځو اِختلاط رانشي.

۱ . د بخاري شريف حديث دى ، حضرت اُمّ سَلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي :

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ قَامَ النِّسَاءُ حِيْنَ يَقْضِيْ تَسْلِيْمَهُ، وَيَمْكُثُ هُوَ فِيْ مَقَامِهِ يَسِيْرًا قَبْلَ أَنْ يَقُوْمَ.

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله سلام اُوګرځول نو ښځې به د سلام ګرځولو نه پس (سمدستي) پاڅيدى (کورونو ته به لاړى) ، او نبي عليه السلام به د پاڅيدو نه مخکې لږ

---

(۱) صحيح ابن حبان كِتَابُ الحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ ذِكْرُ الزَّجْرِ عَنْ أَنْ تَمْشِيَ المَرْأَةُ فِي حَاجَتِهَا فِي وَسَطِ الطَّرِيقِ رقم الحديث ٥٦٠١ ، شعب الايمان رقم الحديث ٨٤٣٨ ، كنزالعمال رقم الحديث ٤٥٠٦٣ .

(۲) قَالَ الشَّيْخُ: « قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: » لَيْسَ لِلنِّسَاءِ وَسَطُ الطَّرِيْقِ « لَفْظَةُ إِخْبَارٍ مُرَادُهَا الزَّجْرُ عَنْ شَيْءٍ مُضْمَرٍ فِيْهِ، وَهُوَ مُمَاسَّةُ النِّسَاءِ الرِّجَالَ فِي الْمَشْيِ. إِذْ وَسَطُ الطَّرِيْقِ الْغَالِبُ عَلَى الرِّجَالِ سُلُوْكُهُ. وَالْوَاجِبُ عَلَى النِّسَاءِ أَنْ يَتَخَلَّلْنَ الْجَوَانِبَ حَذَرَ مَا يُتَوَقَّعُ مِنْ مُمَاسَّتِهِمْ إِيَّاهُنَّ » . صحيح ابن حبان ج ١٢ ص ٤١٥ في تشريح حديث ٥٦٠١ .

وخت په خپل ځای باندې انتظار کولو .

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ددې حدیث ذکر کولو نه پس د ابن شهاب زهري رَحِمَهُ اللَّهُ قول رانقل کړی چې هغه فرمایي : نور الله ﷻ ښه پوهیږي خو زمونږ ګمان دادی چې نبي علیه السلام به د سلام ګرځولو نه پس په خپل ځای باندې د لږ وخت د پاره ځکه کیناستو چې زنانه کورونو ته مخکې لاړې شي ، او د سړو اختلاط ورسره رانشي . (۱)

۲ . د بخاري شریف په یو بل حدیث کې هم دا خبره په پوره وضاحت سره ذکر شوی : د نبي علیه السلام بي بي " اُمّ سلمة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا " فرمایي :

إِنَّ النِّسَاءَ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ قُمْنَ وَثَبَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلّٰى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ . فَإِذَا قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ . (۲)

بیشکه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې به چې ښځو د فرض مونځ سلام اوګرځول سمدستي به پاڅیدی ( کورونو ته به رواني شوی ) ، رسول الله ﷺ او مونځ ګزار سړي به په خپل ځای باندې څه وخت ناست وو ، بیا چې کله به نبي علیه السلام پاڅید نو نور سړي به هم پاڅیدل .

علامه انورشاه کشمیري رَحِمَهُ اللَّهُ ددې حدیث په تشریح کې فرمایي چې نبي علیه السلام او صحابه کرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ به د سلام ګرځولو نه پس ځکه لږ وخت انتظار کولو چې زنانه خپلو

---

۱) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، قَالَتْ : « كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ قَامَ النِّسَاءُ حِيْنَ يَقْضِيْ تَسْلِيْمَهُ، وَيَمْكُثُ هُوَ فِيْ مَقَامِهِ يَسِيْرًا قَبْلَ أَنْ يَقُوْمَ » ، قَالَ (الزُّهْرِيّ): نَرٰى ـ وَاللهُ أَعْلَمُ ـ أَنَّ ذٰلِكَ كَانَ لِكَيْ يَنْصَرِفَ النِّسَاءُ ، قَبْلَ أَنْ يُدْرِكَهُنَّ أَحَدٌ مِنَ الرِّجَالِ . صحیح البخاري كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ صَلَاةِ النِّسَاءِ خَلْفَ الرِّجَالِ رقم الحدیث ۸۷۰ ، و رقم الحدیث ۸۳۷ كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ التَّسْلِيْمِ ، السنن الكبیر للبیهقي رقم الحدیث ۳۰۰۳ ، شرح السنة للبغوي رقم الحدیث ۷۰۸ .

(۲) صحیح البخاري كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ خُرُوْجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالْغَلَسِ رقم الحدیث ۸۶۶ . مسند احمد مخرجا رقم الحدیث ۲۶۶۸۸ ، سنن النسائي رقم الحدیث ۱۳۳۳ ، مشكوة المصابیح كتاب الصَّلَاةِ بَابُ الدُّعَاءِ فِي التَّشَهُّدِ الفصل الأول رقم الحدیث ۹۳۸(۱۰) .

کورونو ته مخکې لاړې شي ، او په لاره کې د سړو او ښځو اختلاط رانشي . (۱)

همدا خبره علامه ابن قدامه رَحِمَهُ‌اللَّهُ هم نقل کړی . (۲)

اګر چې د مانځه نه پس په خپل ځای باندې کيناستلو کې ثواب دی ، ځکه فرښتې داسې انسان ته د مغفرت او بخښنې دُعا کوي خو ليکن چې بيا هم زَنانه د سلام ګرځولو نه پس کور ته تللی او دا ثواب يې پريخودو نو دا صرف ددې د پاره چې د پردوسړو سره يې اختلاط رانشي . (۳)

## دريم دليل : ( د لسو کالو ماشومانو له بسترې جدا کول )

د ابوداؤد شريف حديث دی رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِيْنَ ، وَاضْرِبُوْهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرٍ ، وَفَرِّقُوْا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ .

تاسو خپل اَولاد ته د اُووه ( ۷ ) کالو په عُمر باندې د مانځه حکم کوئ ، او د لسو کالو په

---

(۱) قال الكشميري رَحِمَهُ‌اللَّهُ : قوله : ( كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوبَةِ قُمْنَ ... ) وذلک لئلا يلزمَ الإختلاطُ في الطّريق . فيض الباري لمولانا انورشاه كشميري ج ۲ ص ۵۹۳ .

(۲) قال ابن قدامة رَحِمَهُ‌اللَّهُ : إِذَا كَانَ مَعَ الْإِمَامِ رِجَالٌ وَنِسَاءٌ فَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يَثْبُتَ هُوَ وَالرِّجَالُ بِقَدْرِ مَا يَرَى أَنَّهُنَّ قَدِ انْصَرَفْنَ، وَيَقُمْنَ هُنَّ عَقِيْبَ تَسْلِيْمِهِ .... وَلِأَنَّ الْإِخْلَالَ بِذٰلِكَ مِنْ أَحَدِهِمَا يُفْضِيْ إِلَى اخْتِلَاطِ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ . المغني لابن قدامة ج ۱ ص ۴۰۱ فَصْلٌ إِذَا كَانَ مَعَ الْإِمَامِ رِجَالٌ وَنِسَاءٌ .

(۳) يؤخذ من هذا الحديث: أنّ النّساء كنّ يقُمْنَ عقب الصلاة مباشرة . بإقرار من النبي صلى الله عليه وسلم وعِلمه، مما يدلُّ على مشروعيّة ذلك ، ومع ثبوت الفضل في بقاء المصلي في مصلاه في قوله صلى الله عليه وسلم : « اَلْمَلَائِكَةُ تُصَلِّيْ عَلٰى أَحَدِكُمْ مَا دَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ الَّذِيْ صَلّٰى فِيْهِ مَا لَمْ يُحْدِثْ، تَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ، اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ » ( صحيح البخاري كتاب المساجد باب الحدث في المسجد رقم الحديث ۴۴۵ ) إلّا أنّهن كنّ يبادِرْن بالإنصراف تجنبًا لِلإختلاط بالرّجال، وهذا يدلّ على أنّ درء مفسدة الاختلاط مقدّمة على نافلة البقاء في المصلّى لتحصيل الفضل المذكور. وقد بوّب البيهقي الشافعي رحمه الله في السنن الكبرى على هذا الحديث بقوله: « بَابُ مَكْثِ الْإِمَامِ فِيْ مَكَانِهِ إِذَا كَانَتْ مَعَهُ نِسَاءٌ كَيْ يَنْصَرِفْنَ قَبْلَ الرِّجَالِ » سنن البيهقي، ۲/ ۱۸۲. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۶۱ .

عُمر کې يې د مونځ په نه کولو باندې وهئ ، او (چې دې عُمر ته اُورسي نو ) د هغوی بِستري جُدا کړئ (يعنی ځانله ځانله يې څملوئ) . (۱)

په دې حديث کې نبي عليه السلام حکم اوکړو چې اولاد د لسو کالو شي نو بِسترې يې جدا کړئ ، نو چې کله د لسو کالو وررور او خوريو ځای څملول منع دي نو بيا به د پرَدي بالغ سړي او بالغې ښځې په مينځ کې اختلاط څنګه جائز شي ؟ (۲)

## څلورم دليل : ( نبي ﷺ د ښځو د تعليم د پاره جداورځ مقرر کړې وه )

**۱** . امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ مستقل يو باب قائم کړی :

بَابٌ: هَلْ يُجْعَلُ لِلنِّسَاءِ يَوْمٌ عَلَى حِدَةٍ فِي الْعِلْمِ؟

( باب دی په بيان ددې کې چې آيا د ښځو د تعليم د پاره ځانله ورځ مقررول مناسب ده ؟)

بيا امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ددې باب لاندې داحديث رانقل کړی : حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې زَنانهٔ نبي ﷺ ته وويل :

غَلَبَنَا عَلَيْكَ الرِّجَالُ . فَاجْعَلْ لَنَا يَوْمًا مِنْ نَفْسِكَ .

(د تاسو نه په اِستفاده کولو کې) سړي د مونږ نه مخکې شو ، پس تاسو د خپل طرف نه زمونږ د پاره خاص ورځ مقرر کړئ ( چې په هغې کې تاسو مونږ ته د دِين د احکاماتو تعليم راکوی ) .

نو نبي ﷺ د دوی د پاره خاص ورځ مقرر کړه ، په دغه ورځ باندې دوی ته ورغی ،

---

(۱) سنن ابي داؤد بَابُ مَتَى يُؤْمَرُ الْغُلَامُ بِالصَّلَاةِ رقم الحديث ۴۹۵ ، مشكاة المصابيح كتاب الصلاة الفصل الثاني رقم الحديث ۵۷۲ (۹) ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۳۲۴ .

۲) وقد أمر النبيّ صلى الله عليه وسلم في هذا الحديث بالتّفريق بين الأولاد. وعدم اختلاطهم ذكورًا وإناثًا . أو إناثًا أو ذكورًا مع أنّهم أبناء عشر سنين. فكيف بمَنْ هُمْ أكبر منهم . وهذا تنبيهٌ بالأدنى على الأعلى . فتاوى ورسائل الشيخ محمد بن إبراهيم ۱۰/ ۴۰ وفي هذا ردٌّ على مَن يَرى اختلاط الذكور بالإناث في الصفوفِ الأولى من الدّراسة . إضافة الشيخ صالح الفوزان، كما قال البداح في تحريم الاختلاط ص ۲٦ .

نصيحت يې ورته اوکړو ، او د مناسب احکاماتو تعليم يې ورته ورکړو ..... (١)

دا حديث په دې باندې واضح دليل دی چې د تعليم په وخت هم د سړو او ښځو اختلاط (گډون) منع دی ، ځکه خو نبي عليه السلام د ښځو د پاره جدا ورځ مقرر کړه ، او د سړو سره يې يو ځای نکړی. (٢)

٢ . همدا مضمون د بخاري شريف او مسلم شريف په يو بل حديث کې هم صراحةً ذکر شوی ، حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه فرمايي چې يوه ښځه رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ته راغله ، او ورته وې ويل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيْثِكَ. فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا نَأْتِيْكَ فِيْهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا عَلَّمَكَ اللهُ .

اې د الله رسوله ! ستاسو ټول احاديث سړو وې وړل ( يعنی صرف هغوی ستاسو د ارشاداتو نه فائده اخلي ، او مونږ محروم يو ) پس تاسو پخپله خوَښه زمونږ د پاره يوه ورځ مقرر کړئ چې په هغې کې مونږ تاسو ته راځو او تاسو مونږ ته هغه څه اُوښايئ کوم چې درته الله تعالى خودلي دي .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : اِجْتَمِعْنَ فِيْ يَوْمِ كَذَا وَكَذَا فِيْ مَكَانِ كَذَا وَكَذَا .

(١) عَنْ أَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رضي الله عنه قَالَتِ النِّسَاءُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : غَلَبَنَا عَلَيْكَ الرِّجَالُ . فَاجْعَلْ لَنَا يَوْمًا مِنْ نَفْسِكَ . فَوَعَدَهُنَّ يَوْمًا لَقِيَهُنَّ فِيْهِ ، فَوَعَظَهُنَّ وَأَمَرَهُنَّ ... صحيح البخاري كِتَابُ الْعِلْمِ بَابٌ: هَلْ يُجْعَلُ لِلنِّسَاءِ يَوْمٌ عَلَى حِدَةٍ فِي الْعِلْمِ؟ رقم الحديث ١٠١ .

قال العيني رَحِمَهُ اللهُ : قَوْله: ( غَلَبَنَا عَلَيْكَ الرِّجَالُ ) مَعْنَاهُ : أَنَّ الرِّجَالَ يُلازمونك كلَّ الْأَيَّام ويسمعون الْعلم وَأُمُور الدّين. وَنحنُ نِسَاء ضعفة لَا نقدر على مزاحمتهم. فَاجْعَلْ لنا يَوْمًا مِنَ الْأَيَّام نسْمع الْعلم ونتعلم أُمُور الدّين. عمدة القاري شرح صحيح البخاري لمولانا بدرالدين العيني الحنفي ج ٢ ص ١٣٤ .

(٢) لهذا الحديث واضح الدّلالة في منع اختلاط النساء بالرجال في أماكن التعليم ؛ وذلك لأن النبي صلى الله عليه وسلم جعل لِلنِّساء يومًا على حدة . ولم يجعلهن مع الرجال. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ٥٨٣ .

تاسو په فلانكي فلانكي ورځ باندې په فلانكي فلانكي ځاى كې راجمع شئ .

پس ښځې (په مخصوص ورځ مخصوص ځاى كې ځانله) راجمع شوى ، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوى ته تشريف راوړو او څه چې ورته الله ﷻ خودلي وو د هغې نه يې دوى ته تعليم وركړو ....(۱)

ددې حديث نه هم معلومه شوه چې د پيغمبر عليه السلام په زمانه كې به هم د سړو او ښځو مخلوط تعليم نه وُ ، بلكې د زَنانهٔ د پاره به جدا ځاى وُ .

اوس چې څوک د سړو او ښځو د مخلوط تعليم قائل وي هغوى دې ددې احاديثو نه عبرت واخلي .

## پنځم دليل : ( نبي ﷺ زَنانهٔ د پاره جُمات ته د راتلو خاص لار مقرر كړې وه )

د نبي عليه السلام په زمانه كې به چې زَنانه مسجدِ نبوي ته د مانځه د پاره راتللى نو په جُمات كې به د سړو نه ځانله ناستې وى ، د سړو سره به يو ځاى نه وې ناستى .

بلكه پيغمبر عليه السلام د زَنانهٔ د پاره جُمات ته د راتلو خاص لار مقرر كړې وه چې په هغې به صرف زَنانه راننوتلى ، سړي به پرې نه راتلل ، دا صرف ددې د پاره د چې د سړو او ښځو اختلاط رانشي .

۱. امام ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ په دې باندې مستقل باب قائم كړى :

" بَابٌ فِيْ إِعْتِزَالِ النِّسَاءِ فِي الْمَسَاجِدِ عَنِ الرِّجَالِ " (يعنى په جُماتونو كې د ښځو د سړو نه جدا كيدل) .

---

(۱) عَنْ أَبِي سَعِيْدٍ رضي الله عنه : جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيْثِكَ. فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا نَأْتِيكَ فِيْهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا عَلَّمَكَ اللهُ . فَقَالَ: « اِجْتَمِعْنَ فِي يَوْمِ كَذَا وَكَذَا فِي مَكَانِ كَذَا وَكَذَا » . فَاجْتَمَعْنَ. فَأَتَاهُنَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَعَلَّمَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ ..... صحيح البخاري كِتَابُ الاِعْتِصَامِ بِالكِتَابِ وَالسُّنَّةِ بَابُ تَعْلِيمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَّتَهُ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ. لَيْسَ بِرَأْيٍ وَلاَ تَمْثِيلٍ رقم الحديث ۷۳۱۰ ، صحيح مسلم كتاب البِرِّ وَالصِّلَةِ وَالآدَابِ بَابُ فَضْلِ مَنْ يَمُوتُ لَهُ وَلَدٌ فَيَحْتَسِبَهُ رقم الحديث ۱۵۲(۲۶۳۳) ، شعب الايمان رقم الحديث ۹۲۸۷ ، مشكاة المصابيح رقم الحديث ۱۷۵۳(۳۲) .

(یعنی صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خبره باندې پوره عمل اوکړو، او سړي به په دې دَروازه باندې جُمات ته نه داخلیدل، بلکه صرف ښځې به پرې داخلیدې).

نبي علیه السلام دا دَروازه د زَنانهؤ د پاره ځکه خاص کړې وه چې جُمات ته په ننوتلو او راوتلو کې د سړو او ښځو اختلاط ( ګډون ) رانشي، په جُمات کې به هم زَنانه د سړو نه جدا په روستو صفونو کې ناستې وې، د سلام ګرځولو سره به سمدستي دوی اول د جُمات نه وتلې او سړي به روستو راوتل چې په لاره کې یې هم اختلاط رانشي. (۱)

محترمو مسلمانانو! تاسو دیته سوچ اوکړئ چې کله زَنانه جُمات ته د عبادت د پاره راتللې نو صرف د داخلیدو د پاره دوی ته جدا دَروازه مقرر شوې وه حالانکه په داخلیدو کې دومره وخت نه لږي، نو اوس په کومو ځایونو کې چې د سړو او ښځو اُوږد اختلاط راځي نو هلته په طریقِ اولٰی سره جدا جدا اِنتظام په کار دی.

لهذا په کالجونو، دفترونو، او نورو د کاروبار په ځایونو کې سړو او ښځو له ځانله ځانله ځای په کار دی. (۲)

---

(۱) قوله: (لَوْ تَرَكْنَا هٰذَا الْبَابَ) أَيْ بَابَ الْمَسْجِدِ الَّذِيْ أَشَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (لِلنِّسَاءِ) لَكَانَ خَيْرًا وَأَحْسَنَ لِئَلَّا تَخْتَلِطَ النِّسَاءُ بِالرِّجَالِ فِي الدُّخُوْلِ وَالْخُرُوْجِ مِنَ الْمَسْجِدِ.

وَالْحَدِيْثُ فِيْهِ دَلِيْلٌ أَنَّ النِّسَاءَ لَا يُخْتَلِطْنَ فِي الْمَسَاجِدِ مَعَ الرِّجَالِ بَلْ يَعْتَزِلْنَ فِيْ جَانِبِ الْمَسْجِدِ وَيُصَلِّيْنَ هُنَاكَ بِالْإِقْتِدَاءِ مَعَ الْإِمَامِ. فَكَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَشَدَّ اتِّبَاعًا لِلسُّنَّةِ فَلَمْ يَدْخُلْ مِنَ الْبَابِ الَّذِيْ جُعِلَ لِلنِّسَاءِ حَتّٰى مَاتَ. عون المعبود شرح سنن ابي داود لمولانا محمد أشرف العظيم آبادي ج ۲ ص ۹۲ بَابُ اعْتِزَالِ النِّسَاءِ فِي الْمَسَاجِدِ.

(۲) وإذا ثبتَ هٰذا في محل الدّخول والخروج مع عدم مكثهنّ فيه. ثبتَ في أمكنة الدّراسة والعمل والمجالس التي يطول البقاء فيها. وهٰذا ما يعرف في علم أصول الفقه بـ « قياس الأولى ». والنّتيجةُ: أنّ الفصلَ بين الرّجال والنّساء وعدم الإختلاط مطلوبٌ شرعًا. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۸۲.

فإذا كان النّساء بحاجة الى باب خاص بهنّ، ليصلن إلى مسجدهنّ. وهنّ في حال الإتيان الي العبادة، فمن باب الاولى أن يكونَ لهنّ أبواب خاصة بهنّ في المدارس والجامعات والمعاهد، وتكون لهنّ أماكن خاصة بهنّ للتّدريس. الإختلاط أصل الشر ص ۱۱۹.

**شپږم دليل** : ( **حضرت عُمر ﷺ اِختلاط كوونكي سړي او ښځې په دُرّه اُووهل** )

يو ځل حضرت عُمر ﷺ يو تالاب ته راغی چې د هغې نه سړو او ښځو يو ځای اَودسونه كول. فَضَرَبَهُمْ بِالدِّرَّةِ . حضرت عُمر ﷺ دوی په دُرّه باندې اُووهل.

بيا يې د تالاب مالِک ته وويل : اِجْعَلْ لِلرِّجَالِ حِيَاضًا، وَلِلنِّسَاءِ حِيَاضًا .

د سړو د پاره ځانله تالاب جوړ كړه او د ښځو د پاره ځانله.(۱)

ددې اَثر نه معلومه شوه چې كله حضرت عُمر ﷺ د اَودس په وخت اختلاط خوَښ نكړو نو بيا به په نورو ځايونو كې څنګه دا جائز شي ؟

**اُووم دليل** :( **د ښځې د پاره د جُمات په نِسبت په كور كې مونځ كول بهتر دی** )

حضرت اُمّ حُمَيد رَضِيَ اللهُ عَنهَا نبي عليه السلام ته راغله او ورته وې ويل :

يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنِّيْ أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ .

اې د الله رسوله ! زه د تاسو سره (په مسجدِنبوي كې په جَمعې سره) مونځ كول خوښوم.

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّيْنَ الصَّلَاةَ مَعِيْ، وَصَلَاتُكِ فِيْ بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ حُجْرَتِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِيْ حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ دَارِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِيْ دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ ، وَصَلَاتُكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِيْ .

ماته معلومه ده چې ته د ما سره مونځ كول خوښوې خو ستا هغه مونځ چې ته يې د كور په كمره كې دَننه اوكړې دا ستا د پاره د هغه مونځ نه ډير بهتر دی كوم چې ته په بهَر كمره كې اوكړې (كومه چې د صِحن سره نزدې وي) ، او ستا هغه مونځ چې ته يې د صِحن سره

(۱) عَنْ أَبِيْ سَلَامَةَ الحَبِيْبِيِّ قَالَ : رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الخَطَّابِ ﷺ أَتَى حِيَاضًا عَلَيْهَا الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ يَتَوَضَّؤُوْنَ جَمِيْعًا ، فَضَرَبَهُمْ بِالدِّرَّةِ ، ثُمَّ قَالَ لِصَاحِبِ الحَوْضِ : « اِجْعَلْ لِلرِّجَالِ حِيَاضًا، وَلِلنِّسَاءِ حِيَاضًا » ثُمَّ لَقِيَ عَلِيًّا ﷺ فَقَالَ : « مَا تَرَى ؟ » فَقَالَ : أَرَى إِنَّمَا أَنْتَ رَاعٍ ، فَإِنْ كُنْتَ تَضْرِبُهُمْ عَلَى غَيْرِ ذٰلِكَ فَقَدْ هَلَكْتَ وَأَهْلَكْتَ . مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ۲۴۶ ، كنزالعمال رقم الحديث ۲۷۴۸۲ .

متّصل کمره کې اوکړی دا د هغه مونځ نه ډير بهتر دی کوم چې ته د کور په صحن کې اوکړی، او ستا هغه مونځ چې ته يې د کور په صحن کې اوکړی دا د هغه مونځ نه ډير بهتر دی چې ته يې د خپل قوم (او قبيلې) په جُمات کې اوکړی، او ستا د پاره د خپل قوم په جُمات کې مونځ کول زما په جُمات (مسجدِ نبوي) کې د مونځ کولو نه ډير بهتر دی.

راوي د حديث وايي : اُمّ حُمَيد رَضِيَ اللهُ عَنهَا (چې د نبي عليه السلام دا خبرې واوريدی نو دې) حکم اوکړو، او ددې د پاره د کور په دَننه آخري تياره حصه کې د مانځه د پاره ځای جوړ کړې شو ـ فَكَانَتْ تُصَلِّيْ فِيْهِ حَتّٰى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ. دې به هميشه په دې دَننه کمره کې مونځ کول تر دې چې د الله ﷻ سره يې ملاقات اوشو (يعنی تر د وفاته پورې بهر جُمات ته لا نه ړه بلکه په همدې محفوظ ځای کې يې مونځ کولو). (۱)

**د مذکوره حديث نه استدلال :** اګر چې په مسجدِ نبوي کې د پيغمبر عليه السلام پسې شاته د فرض مونځ کولو ثواب زيات وُ خو بيا هم اُمّ حُمَيد رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته نبي عليه السلام اوفرمايل چې ستا د پاره په کور کې په پَرده کې مونځ کول ډير افضل دی.

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ددې وجه دا بيان کړی : دا ځکه چې زَنانه په کور کې د فِتنې نه په اَمن وي (او د سړو سره يې اِختلاط نه راځي). (۲)

---

(۱) عَنْ أُمِّ حُمَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهَا امْرَأَةِ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ، أَنَّهَا جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! إِنِّيْ أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ. قَالَ: « قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّيْنَ الصَّلَاةَ مَعِيْ. وَصَلَاتُكِ فِيْ بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ حُجْرَتِكِ، وَصَلَاتُكِ فِيْ حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ دَارِكِ. وَصَلَاتُكِ فِيْ دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ. وَصَلَاتُكِ فِيْ مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِيْ مَسْجِدِيْ » . قَالَ: فَأَمَرَتْ فَبُنِيَ لَهَا مَسْجِدٌ فِيْ أَقْصَى شَيْءٍ مِنْ بَيْتِهَا وَأَظْلَمِهِ. فَكَانَتْ تُصَلِّيْ فِيْهِ حَتّٰى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۷۰۹۰، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱٦۸۹ باب اختيار صلاة المرأة في حجرتها ...، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۲۲۱۷ ذِكْرُ الْبَيَانِ بِأَنَّ صَلَاةَ الْمَرْأَةِ كُلَّمَا كَانَتْ أَسْتَرَ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِهَا، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰٦، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۴۰(۱) ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهنّ من الخروج منها.

(۲) قال الحافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ : وَوَجْهُ كَوْنِ صَلَاتِهَا فِي الْإِخْفَاءِ أَفْضَلَ تَحَقُّقُ الْأَمْنِ فِيْهِ مِنَ الْفِتْنَةِ. وَيَتَأَكَّدُ ذٰلِكَ بَعْدَ وُجُوْدِ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ مِنَ التَّبَرُّجِ وَالزِّيْنَةِ. فتح الباري ج ۲ ص ۳۴۹.

نو چې کله د مونځ په باره کې دا حکم دی نو بیا به څنګه د نورو کارونو د پاره پردو سرو سره اختلاط جائز شي؟ (۱)

## اتم دليل : ( ښځه چې د شرعي حُدودو نه بهر شي نو لويه فتنه ده )

ښځه چې کله د شرعي حُدودو نه بهر شي نو دا بيا لويه فِتنه ده :

۱ . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

مَا تَرَكْتُ بَعْدِيْ فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ . (۲)

ما د خپل وفات نه پس د سړو د پاره د ښځو نه زياته ضَرَرناکه فِتنه بله نده پريخې .
(يعنی زما د وفات نه پس د سړو د پاره زياته ضرري فِتنه ښځې دي) .

۲ . د بني اِسرائيلو اوله فِتنه د ښځو نه شروع شوې وه .

د مسلم شريف حديث دی ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

... فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ ؛ فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ كَانَتْ فِي النِّسَاءِ . (۳)

تاسو د دُنيا نه ځان بچ کړئ ، او د ښځو نه ځان بچ کړئ ؛ ځکه په بني اسرائيلو کې اوله فِتنه د ښځو نه شروع شوې وه .

(۱) وقال العلامة محمد بن إبراهيم آل الشيخ رَحِمَهُ اللهُ : إذا شرع في حقها أن تصلي في بيتها وأنه أفضل حتى من الصلاة في مسجد الرسول صلى الله عليه وسلم ومعه، فلئن يمنع الاختلاط من باب أولى . فتاوى الشيخ محمد بن إبراهيم آل الشيخ ۱۰/ ۲۹.

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا يُتَّقَى مِنْ شُؤْمِ الْمَرْأَةِ رقم الحديث ۵۰۹۶ ، صحيح مسلم كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابُ أَكْثَرُ أَهْلِ الْجَنَّةِ الْفُقَرَاءُ وَأَكْثَرُ أَهْلِ النَّارِ النِّسَاءُ وَبَيَانِ الْفِتْنَةِ بِالنِّسَاءِ رقم الحديث ۹۸(۲۷۴۱) ، سنن الترمذي باب ماجاء في تحذير فتنة النساء رقم الحديث ۲۷۸۰ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۲۲۵ .

(۳) صحيح مسلم كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابُ أَكْثَرُ أَهْلِ الْجَنَّةِ الْفُقَرَاءُ وَأَكْثَرُ أَهْلِ النَّارِ النِّسَاءُ وَبَيَانِ الْفِتْنَةِ بِالنِّسَاءِ رقم الحديث ۹۹(۲۷۴۲) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۱۱۶۹ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۲۲۴ ، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۳۲۲۱ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۲۹ ، مشكاة المصابيح كتاب النكاح الفصل الاول رقم الحديث ۳۰۸۶(۷) .

د مذكوره دواړو احاديثو نه معلومه شوه چې ښځه ( كله د شرعي حُدودو خلاف وَرزي اوكړي نو دا ) د سړي د پاره ضَرَري فِتنه ده. اوس چې كله د سړو او ښځو اِختلاط راشي او د ښځو مخونه هم ښكاره وي نو دا خو بيا يقيني غټه فتنه ده.

او په احاديثو كې د فِتنې نه د ځان ساتلو حكم شوى ، ځكه فِتنه د سړي د پاره ضَرري وي ، او د ضَرَري څيز نه ځان ساتل واجب دي. ددينه هم معلومه شوه چې د سړو او ښځو اختلاط حرام دى. (۱)

**۳.** بيا خاصكر چې كله ښځه د كور نه بهر راأووځي نو شيطان دا د خلقو په نظرونو كې ښائسته كوي او د دې په ذريعه خلق گمراه كوي.

د ترمذي شريف حديث دى ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ إِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ . (۲)

ښځه په پَرده كې د اُوسيدو څيز دى ( يعنى لكه څرنګې چې عورت پټول په كار دي همدغه

---

(۱) وهٰذا الحديثُ يدلّ على أنّ المرأةَ فِتنةٌ ضارّة على الرّجال. واتّقاء الفتنةِ الضّارة أو المضلّة واجبٌ شرعيٌّ لأدلّة كثيرةٍ. وقد بَوّب البخاري رحمه الله في كتاب الإيمان بقوله: «بَابٌ: مِنَ الدِّيْنِ الفِرَارُ مِنَ الْفِتَنِ». وقد قال النّبيّ صلى الله عليه وسلم : «تَعَوَّذُوْا بِاللهِ مِنَ الْفِتَنِ، مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ» (صحيح مسلم رقم ۲۸٦۷) فإذا ثبت أنّ النّساء فتنةٌ لِلرجال، وأنّ اتقاء الفتنةِ واجبٌ، ثَبَتَ أنّ مخالطةَ الرّجال للنّساء محرّمة لتضمّنها ترك الواجب. وأفاد الحديثُ: أنّ فتنةَ النّساء أضرّ الفتن على الرّجال. والقاعدة في الشريعة: «تَحْرِيْمُ كُلّ ما فيه ضرر» ؛ لحديث: «لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ» (مسنداحمد مخرجا رقم ۲۸٦۵). اظهار الحق ص ۵٦۴.

قال العلامة محمد بن إبراهيم آل الشيخ رَحِمَهُ اللّٰهُ « قوله ﷺ : « مَا تَرَكْتُ بَعْدِيْ فِتْنَةً ...» وجه الدّلالة: أنّه وَصَفَهُنّ بأنّهن فتنةٌ. فكيف يجمع بين الفاتن والمفتون ؟ . مجموع فتاوى ورسائل الشيخ محمد بن إبراهيم آل الشيخ ۱۰/ ۴۱.

(۲) سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ ,وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. قال الالباني. صحيح. مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاحِ بَابُ النظر إِلَى المَخطوبة وَبَيَان العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۰۹(۱۲)، مصنف ابن ابي شيبة رقم ۷٦۱٦، كنزالعمال رقم الحديث ۴۵۰۴۵، صحيح الترغيب والترهيب كتاب الصلاة ترغيب النساء في الصلاة في بيوتهن ولزومها وترهيبهن من الخروج منها رقم ۳۴٦(۷).

شان ښځه هم د غير مَحرَمو سړو د نظرونو نه محفوظ کيدل په کار دي)، کله چې دا د پَردې نه بهَر اُووځي نو شيطان يې د سړو په نظر کې ښائسته ښکاره کوي .( چې په دې سره نور خلق په دې گمراه کوي او ښځه په خپله هم گمراه کيږي).

## نهم دليل : ( حضرت علي ﷺ به د اختلاط نه منع کوله )

حضرت علي ﷺ به هم په بازار کې بې ضرورته د ښځو گرځيدلو او د سړو سره د اختلاط نه منع کوله . هغوی په يوه خطبه کې اوفرمايل :

أَمَا تَغَارُوْنَ أَنْ تَخْرُجَ نِسَاؤُكُمْ؟ فَإِنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّ نِسَاءَكُمْ يَخْرُجْنَ فِي الْأَسْوَاقِ يُزَاحِمْنَ الْعُلُوْجَ

آيا تاسو ته غيرت نه درځي چې ستاسو ښځې (بِلا ضرورت) بهر اُوځي ؟ بيشکه ما ته دا خبره رارسيدلې ده چې ستاسو ښځې بازارونو ته ( بغير ضرورت )اُوځي او هلته د سړو سره په تللو کې جنگيږي .

أَلَا إِنَّهُ لَا خَيْرَ فِيْمَنْ لَا يَغَارُ . خبر دار په هغه کس کې هيڅ خير نشته چې په هغه کې غيرت نه وي . (۱)

ددې روايت نه دا معلومه شوه چې کله په بازار کې د سړو او ښځو اختلاط منع دی حالانکه په بازار کې د خلقو د موجوديدو په وجه د ځنې گناهونو خطره کمه وي نو په نورو بندو کمرو کې خو به په طريقِ اولٰی باندې دا منع وي ځکه په بندو کمرو کې خو د بعضې گناهونو خطره زياته وي . (۲)

(۱) عَنْ عَلِيٍّ ﷺ . قَالَ عَلِيُّ بْنُ حَكِيْمٍ فِيْ حَدِيْثِهِ: « أَمَا تَغَارُوْنَ أَنْ تَخْرُجَ نِسَاؤُكُمْ؟ » وَقَالَ هَنَّادٌ فِيْ حَدِيْثِهِ: «أَلَا تَسْتَحْيُوْنَ أَوْ تَغَارُوْنَ؟ فَإِنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّ نِسَاءَكُمْ يَخْرُجْنَ فِي الْأَسْوَاقِ يُزَاحِمْنَ الْعُلُوْجَ » . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۱۱۸ . الزواجر ج ۲ ص ۷۸ ، الكبائر للذهبي ج ۱ ص ۱۷۶ ، كنزالعمال رقم الحديث ۸۷۳۵ .

وَرُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ ﷺ . أَنَّهُ قَالَ فِيْ خُطْبَتِهِ: « بَلَغَنِيْ أَنَّ نِسَاءَكُم يُزَاحِمْنَ الْعُلُوْجَ فِي السُّوْقِ. أَمَا تَغَارُوْنَ. أَلَا إِنَّهُ لَا خَيْرَ فِيْمَنْ لَا يَغَارُ » . شرح السنة للبغوي باب الغيرة ج ۹ ص ۲۷۰ .

(۲) ففي هذا الأثر ينكر علي بن أبي طالب رضي الله عنه خروج النساء إلى الأسواق ومزاحمتهن للرجال. وإنكار ما يحصل في أماكن العمل والتعليم من باب أولى. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۹۲ .

# د اختلاط په حُرمت باندې د علماؤ اجماع ده

د نبيّ عليه السلام د زمانې نه نيولې تر دې وخته پورې د ټولو علماؤ په دې باندې اِجماع ده چې د پردو سړو او پردو ښځو په مينځ کې اِختلاط حرام دی . ددې په جواز باندې هيڅ مُعتمَد عالِم قول ندې کړی .

ځکه د کوم اِختلاط په وجه چې فِتنه پيدا کيږي دا په کتابُ الله ، سُنتِ رسول ، او اِجماعِ اُمت سره حرام دی ، او حرام ځيز ځان ته حلال ګنړل کُفر دی .

البته که څوک يې حلال نه ګنړي حرام يې ګنړي خو بيا هم د پردو ښځو سره اِختلاط کوي نو داسې کس د ګناه په کولو سره فاسِق دی . (۱)

اِختلاط صرف هغه خلق جائز ګنړي چې هغوی منافقان او بَدبختهوي لکه : رافِضيان ، يا جاهلان ، يا د اُوسني ډيموکراسي نه متأثره خلق . (۲)

---

(۱) إجماع العلماء على تحريم اختلاط النساء بالرجال الأجانب : لا أعلم أحدًا من علماء الإسلام الأعلام عصر النبي صلى الله عليه وسلم إلى عصرنا هذا قال بجواز الاختلاط الذي يدعو إلى الريبة والفساد.

قال أبو بكر العامري : اتفقت علماء الأمة أن من اعتقد حِلّ هذه المحظورات، وإباحة امتزاج الرجال بالنسوان الأجانب فقد كفر واستحق القتل بردته. وإن اعتقد تحريمه وفعله، وأقر عليه، و رضي به فقد فسق، لا يسمع له قول، ولا تقبل له شهادة . احكام النظر إلى المحرمات ص ۸۳.

وممن نص على اتفاق العلماء الشيخ صالح بن فوزان الفوزان حيث قال: الاختلاط بين الرجال والنساء على وجه يثير الفتنة أمر محرم بالكتاب والسنة والإجماع . تحريم الاختلاط ص ۳۳ .

قال الشيخ محمد الخطيب وهو من علماء لبنان: إن الاختلاط لا يختلف في حرمته اثنان من المسلمين، ولا ينكر مساوئه ومفاسده من له قلب . أو ألقى السمع وهو شهيد . حكم الإسلام في الاختلاط ص ۳۴.

(۲) ومما يقوي هذا الإجماع سير علماء الإسلام من عهد السلف إلى عصرنا هذا على منع الاختلاط . ولا يعلم أن أحدًا منهم تزعم مسألة الاختلاط، ودعا إليها أو نافح عنها وأيضًا لم يعرف الاختلاط منذ انحرفت الأمة عن دينها إلّا من قِبَل دعاة النفاق والشقاق: كالرافضة ، [illegible] (الفكر السلفية) ، وأمثالها، أو من قبل البدو والجهال، حتى جاءت الديمقراطية الوثنية في هذ[illegible] أباحت اختلاط النساء بالرجال بجميع أشكاله. الاستيعاب فيما قيل في الحجاب ص ۴۸۵ ، و ص ۴۲.

# د اختلاط مختلف صورتونه

په احاديثو مباركهؤ كې چې د سړو او ښځو د كوم اِختلاط نه منع راغلې د هغې مختلف صورتونه دي :

## ۱. د هلكانو او جينكو يو ځاى ځملاستل

چې كله هلك او جينۍ تمييز كولې شي نو د دوى بِسترې جدا كول په كار دي ، يو ځاى به نه ځملي ، اگر چې دوى ورور او خور وي .

د ابوداؤد شريف حديث دى رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

مُرُوْا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِيْنَ . وَاضْرِبُوْهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرٍ . وَفَرِّقُوْا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ .

تاسو خپل اَولاد ته د اُووه (۷) كالو په عُمر باندې د مانځه حكم كوئ ، او د لسو كالو په عُمر كې يې د مونځ په نه كولو باندې وهئ ، او (چې دې عُمر ته اُورسي نو) د هغوى بِسترې جُدا كړئ (يعنى ځانله ځانله يې ځملوئ) . (۱)

## ۲ . د نارينه خادِم سره په كور كې د ښځو اختلاط

بعضې خلق دومره بې اِحتياطه وي چې په كور كې كوم نارينه خادِم وي ددې كور ښځې د هغه نه پَرده نه كوي ، د هغه سره يو ځاى په كور كې گرځي راگرځي ، په دې كې بعضې وخت د خادِم او د كور مالِكې خَلوَت هم راشي (يعنى دواړه ځانله شي) حالانكې په احاديثو كې ددينه منع راغلې ، او ددينه ډير فساد هم پيدا كيږي .

حضرت انس رضي الله عنه د نبي عليه السلام خاص خادِم ؤ خو بيا هم چې حضرت فاطمې رضي الله عنها به ده ته خپل ماشوم ځوي وركول نو حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې ما به صرف ددې لاس

---

(۱) سنن ابي داؤد بَابُ مَتَى يُؤْمَرُ الْغُلَامُ بِالصَّلَاةِ رقم الحديث ۴۹۵ ، مشكاة المصابيح كتاب الصلاة الفصل الثاني رقم الحديث ۵۷۲ (۹) ، كنز العمال رقم الحديث ۴۵۳۲۴ .

اُولید . یعنی ددې مخ به مې نه لیدلو .

حالانکه حضرت انس ﷺ د نبي علیه السلام سره وُ ، دده خاص خادِم وُ خو بیا هم حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ورته مخ نه ښکاره کول .

لهذا د غیر مَحرَم خادم سره د ښځو اِختلاط منع دی .

## ۳. په کور کې د خادِمې ښځې د سړو اِختلاط

کومې ښځې چې په کورونو کې خدمت کوي نو بعضې خلق د دوی نه هیڅ پَرده نه کوي یو ځای په کور کې اُوړي راوړي ، او بعضې وخت خو دا خادِمه د کور د مالک سره ځانله هم شي چې بیا دا د خطرې خبره ده ؛ ځکه شیطان د انسان په زړه کې وَسوسې اچوي او په ګناه کې یې مبتلاء کوي .

## ٤ . د خاوند په غیر موجودګۍ کې د خاوند رِشته دارو سره اِختلاط

د ممنوع اِختلاط یو قِسم دا دی چې کله خاوند په کور کې نه وي نو ښځه د خاوند هغه رشته دارو سره ځانله کیني د کومو نه چې ددې د پاره پَرده کول ضروري وي .

لکه د خاوند ورور ، د خاوند وراره ، د خاوند تره ، د خاوند د تره ځوي او د خاوند ماما سره کیناستل . چې په احادیثو کې ددینه منع راغلې ده .

همدارنګې ښځه به د خپل تره ځوي او خپل ماما ځوي سره هم ځانله نه کیني .

## ۵. په تعلیمي اِدارو کې د هلکانو او جینکو اِختلاط

د ممنوع اِختلاط یو قِسم دا دی چې د تعلیم په دَوران کې هلکان او جینکۍ یو ځای ناستې وي .

لکه نن صبا چې په دې بعضې سکولونو ، کالجونو ، یا خاص کورسونو کې هلکان او جینکۍ یو ځای ناستې وي ، په مینځ کې یې هیڅ پَرده نه وي نو دا هم ناجائز دی .

مخکې د بخاري شریف حدیث تېر شو چې نبي ﷺ د سړو او ښځو د تعلیم د پاره ځانله ځانله ورځ مقرر کړې وه ، د دوی اختلاط یې نه خوښول . ( ددې نور وضاحت راروان دی )

## ٦ . په دَفترونو ، بازارونو ، وَدونو او اجتماعاتو کې اختلاط

د حرام اِختلاط يو قِسم دادی چې پرَدي سړي او پرَدۍ ښځې په دَفترونو ، او نورو سَرکاري ځايونو کې يو ځای کار کوي ، په يو بل يې نظر لږي ، د يو بل سره ګپ شپ او خنداګانې کوي ، د يو بل سره لاسونه مِلاوَوي ، په دې کې داسې وخت هم راشي چې سړی او ښځه په دفتر کې ځانله پاتې شي نو بيا چې ددينه کوم مفاسد پيدا کيږي هغه ټولو ته معلوم دي .

همدارنګې په وَدونو کې هم ښځې او سړي د واده په کور کې يو ځای آوړي راوړي ، د بعضې شريف خاندانونو ښځې هم په وَدونو کې د پَردې لحاظ نه ساتي .

همدارنګې په خصوصي مجالسو کې هم پرَدي سړي او پرَدۍ ښځې يو ځای ناستې وي ، د پَردې هيڅ اِنتظام نه وي .

ددينه علاوه نور ډير ځايونه شته چې په هغې کې پرَدي سړي او پرَدۍ ښځې يو ځای مجلس کوي . د اِختلاط دا ټول صورتونه ناجائز دي ، په احاديثو کې ددينه منع راغلی . (۱)

---

(۱) ومِن صُوَرِ الإختلاط المنهيّ عنه : ۱. اختلاطُ الأولاد الذكور والإناث ولو كانوا إخوة بعد التمييز في المضاجع . فقد أمر النبي صلى الله عليه وسلم بالتفريق بينهم في المضاجع. ... ۲ . اتّخاذ الخدم الرّجال واختلاطهم بالنساء، وحصول الخلوة بهنّ، رُوِي في بعض الآثار أنّ فاطمة رَضِيَ اللهُ عَنهَا لما ناوَلَتْ أَحَدَ ابنَيْها بلالًا رضي الله عنه أو أنسًا رضي الله عنه قال: " رَأَيْتُ كَفًّا " يعني أنّه لم يَرَ وجهًا . وقد كان أنس رضي الله عنه خادمًا خاصًّا للنبيّ صلى الله عليه وسلم، وكان يعيش عنده كأحد أهله. ۳ . اتّخاذ الخادمات اللائي يبقين بدون محارم، وقد تحصل بهن الخلوة. ۴. السماح للخطيبين بالمصاحبة والمخالطة التي تجر إلى الخلوة. ثم إلى ما لا تحمد عقباه. فيقع العبث بأعراض الناس بحجة التعارف ومدارسة بعضهم بعضًا. ۵. استقبال المرأة أقارب زوجها الأجانب، وأصدقاءه في حال غيابه ومجالستهم. ٦. الإختلاط في دور التعليم كالمدارس، والجامعات، والمعاهد، والدّروس الخصوصية . ۷ . الاختلاط في الوظائف، والأندية، والمواصلات، والأسواق، والمستشفيات، والزيارات بين الجيران، والأعراس، والحفلات. ۸. الخلوة في أيّ مكان ولو بصفة مؤقتة كالمصاعد، والمكاتب، والعيادات، وغيرها. عودة الحجاب ج ۳ ص ٦۲ .

## په دفترونو او تعليمي ادارو کې د سړو او ښځو د اختلاط حکم

دا خبره اګر چې مخکې تېره شوه خو لږ نور وضاحت يې هم درته کوم هغه دا چې : د فساد په غرض د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط قطعًا حرام دی ، ددې په حُرمت کې هيڅ شک نشته . خو که د فساد په غرض نهٔ بلکه د تعليم په سلسله کې وُ لکه : په بعضې سکولونو او کالجونو کې يو ځای تعليم کول ، يا لکه په هسپتالونو کې د نرسانو او ډاکټرانو اختلاط يا په سَرکاري دَفترونو کې د سړو او ښځو اِختلاط ، يا په نورو مجالسو کې اختلاط .

نو که مونږ په ظاهره باندې ديته اوګورو چې دا د فساد په غرض ندی او عقل هم دا وايي چې په دې کې څه نقصان نشته ، خو که مونږ حقيقت ته اوګورو نو په دې کې هم ډير فسادات راجمع دي ؛ ځکه فِطرةً په هر سړي او هره ښځه کې يو بل ته مېلان وي ، يا د انسان سره نفسِ اَمّاره هم شته چې ده ته د بَدۍ حکم کوي ، شهوت هم ورسره شته چې دا انسان رَوند او کوڼ کوي ، شيطان هم ورسره شته چې دا دده زړه ته د ګناهونو وَسوسې وراچوي ، نو اوس چې کله د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط راشي ، په يو بل يې نظر لږي ، د يو بل سره لاس مِلاوَوي ، د يو بل سره ګپ شَپ لږوي ، او کله د يو بل سره ځانله هم شي نو خامخا به دلته د شرعي حُدودو خلاف وَرزي کيږي ، او آخري نتيجه به يې ډيره خرابه وي .

نو ځکه شريعت په هيڅ ميدان کې د پردو سړو او پردو ښځو اِختلاط نه خوښوي . (۱)

(۱) اختلاطُ الرّجال بالنّســاء له ثلاث حالات : اَلأولى: اختلاطُ النّساء بمحارمهنّ من الرّجال، وهٰذا لا إشكال في جوازه. الثانية: اختلاطُ النّساء بالأجانب لغرض الفساد، وهذا لا إشكال في تحريمه. الثالثة: اختلاطُ النّساء بالأجانب في دور العلم والحوانيت والمكاتب والمستشفيات والحفلات ونحو ذلك فهٰذا في الحقيقة قد يظن السائل في بادئ الأمر أنّه لا يؤدّي إلى افتتان كلّ واحد من النوعين بالآخر. ولكشف حقيقة هذا القسم فإنا نجيب عنه من طريق: مجمل، ومفصل. أمّا المجمل: فهو أنّ اللهَ تعالى جبل الرّجال على القوّة والميل إلى النّساء، وجبل النّساء على الميل إلى الرّجال مع وجود ضعف ولين. فإذا حصل الاختلاطُ نشأ على ذلك آثار تؤدّي إلى حصول الغرض السّيء. لأنّ النّفوس أمّارة بالسّوء. والهوى يعمي ويصم والشّيطان يأمر بالفحشاء والمنكر. وأما المفصّل: فالشّريعة مبنيّة على المقاصد ووسائلها. ووسائل المقصود الموصلة إليه حكمه. فالنّساء مواضع قضاء وطر الرجال. وقد سدّ الشارع الأبواب المفضية إلى تعليق كلّ فرد من أفراد النّوعين بالآخر . فتاوى ورسائل سماحة الشيخ محمد بن إبراهيم آل الشيخ مفتي مملكة العربية السعودية في زمنه ورئيس القضاة والشؤون الاسلامية ج ۱۰ ص ۳۵ .

نن صبا په بعضې پرائيوټ (شخصي) دفترونو کې ښځې سکرټرۍ وي، د دَفتر مالکان ټوله ورځ ورسره ګپ شپ لګوي، او کله کله ورسره ځانله والې هم راشي نودا ټول کارونه حرام دي. د ښځې په ځای باندې سړی سکرټر مقررول په کار دي، او ښځو له هم پکار دي چې په کورکې کيني؛ ځکه شريعت په دې باندې د رزق ګټلو ذِمه داري نده ايخی.

ليکن که ددې ښځې بل څوک د ګټې وټې نه وي نو بيا به په پَرده کې کار کوي خو د پرَدو سړو سره به اِختلاط نه کوي.

## مخلوط تعليم

په **فتاوی عثمانيه** کې ذکر دي: په موجوده دَور کې فحاشي او بې حيائي اِنتهاء ته رسيدلې ده، په دې حالاتو کې د مسلمانانو ښځو حياء هله محفوظ کيږي چې کله دوی په کورونو کې ناستې وي، اسلام ښځه ددينه منع کړی چې دا بغير ضرورته د کور د چارديوالې نه اُووځي، البته د مجبورۍ په وجه په غټ څادر يا بُرقع کې ورته وتل جائز دي

فقهاء کرامو د تعليم و تربيت په شان ضرورت د پاره ښځو ته وتل په دې شرط جائز کړي چې د پَردې پوره اِهتمام به کوي، د فِتنې خوَريدو يَره نه وي، او د سړو سره اِختلاط نه وي.

نن صبا چې د سړو او ښځو کوم مخلوط تعليم دی په دې کې دومره فِتنه او فساد دی چې هغه د بيان محتاج ندی، لهذا د ښځو د پاره د سړو سره مخلوط تعليم حاصلول ناجائز دی.

البته که د ښځو د پاره دتعليم ځانله اِداره نه وي او ډاکټرې يا بل داسې تعليم وي چې د حياء دارو ښځو د پاره د هغې حاصلول د معاشرې ضرورت وي نو په داسې صورت کې د ښځو د پاره په مخلوطه اِداره کې د تعليم ګنجائش شته، خو ددې د پاره يو څو شرائط دي:

۱. ښځه به د مخ پټولو او پَردې پوره اِهتمام کوي. ۲. د خپل حياء او عزت حفاظت به کوي. ۳. د سړو سره به د غير ضروري اختلاط، خلوَت او خبرو نه مکمل پرهيز کوي.

۴. د سبق نه بس به فوراً کورته ځي.(۱)

---

(۱) والدّليل على ذلك: عَنْ عَبْدِ اللهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ. سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳، فتاوى عثمانيه ج ۱۰ ص ۹۹ الحجاب.

په **فتاوى محموديه** کې ذکر دي: د هلکانو او جينکو مخلوط تعليم کول، بې پردې د يو بل سره ملاقات کول، او د پَردو سړو نه تعليم حاصلول، دا ټول کارونه غلط دي، د دينه پوره پرهيز په کار دی. (۱)

په "آپ کے مسائل اور اُن کا حل" کې ذکر دي: په کوم کالج کې چې اُستاذان سړي جينکو ته دَرس ورکوي، او په دې کې جينکې پَرده نه کوي نو دا د فتنې نه خالي ندی. (۲) يا خو دې په پَرده کې د تعليم اِنتظام اوکړې شي، او يا دې د جينکو دا تعليم پريخودې شي. ځکه ښځې ته د پَردو سړو د وړاندې خپل مخ ښکاره کول ناجائز دی. (۳)

## نن صبا مخلوط تعليم ډير خطرناک دی

نن صبا په بعضو سکولو او کالجونو کې چې کوم مخلوط تعليم دی نو دا ډير خطرناک دی ځکه په دې کې د شريعت د ډيرو حکمونو خلاف وَرزي ده، شريعت خو زَنانه ته په کور کې د پاتې کيدلو حکم کړی، خو که د ضرورت په وجه رااُوځي نو په غټ پړوني يا بُرقع کې به رااُووځي، ډَول و سِنګار به نه کوي، او خوشبو به نه استعمالوي.

---

(۱) اَلْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ حَرَامٌ. الدرالمختار ج ٦ ص ٣٦٨ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ. الاشباه والنظائر ص ۱۵۹ كتاب الحظر والاباحة، سكب الانهر على هامش المجمع ج ۴ ص ۲۰۳ كتاب الكراهية فصل فی النظر ونحوه.

(وَتُمْنَعُ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ (مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ) لَا لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ بَلْ (لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ). رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ.

(قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ) أَيْ عِنْدَ الْمُحَرَّمَاتِ عَلَى طَرِيقِ التَّخْلِيَةِ أَوْ عَلَى وَجْهِ التَّكَشُّفِ. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۵ ص ۲۰۵۱ في تشريح حديث ۳۱۰۲. فتاوى محموديه ج ۲۸ ص ۱۴۱.

(۲) (وَتُمْنَعُ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ (مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ) لَا لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ بَلْ (لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ). رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ.

(۳) ولايؤذن بالخروج الى المجلس الذي يجتمع فيه الرجال والنساء وفيه المنكرات... البزازية بهامش الهندية ج ۴ ص ۱۵۷ طبع رشيديه كوئټه. آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۹۸ و ص ۹۹ ملخصاً.

د نن دَور جينکۍ چې سکول يا کالج ته ځي نو اول خو د ناوې په شان ښه ځان جوړ کړي ، خوشبو استعمال کړي ، بې پَردې د کور نه راأووځي ، بيا ځوانان هلکان او ځوانانې جينکۍ په کلاس کې يو ځای ناست وي ، د جينکو په سَر باندې لوپټه نه وي ، سينې يې ښکاره وي يو بل ته ګوري ، د يو بل سره ګپ شَپ لړوي نو دا د معاشرې د پاره ډيره ضَرَري خبره ده .

جينکۍ د غټو غټو ډګريانو حاصلولو کوشش کوي خو د شرعي احکاماتو لحاظ نه ساتي ، تر دې چې کومې جينکۍ د اسلامياتو ډګري حاصلوي (تفسير او احاديث وايي) نو هغوی د دَرس په دوران کې هم د پَردې لحاظ نه ساتي .

کوم علماء چې ورته نصيحت کوي نو د دوی د خبرو هيڅ پرواه نه کوي .

د مغربي تهذيب نه متأثره خلق د جينکو ذُهوکه کولو د پاره هغوی ته په ذِهنونو کې دا خبره وَراچوي چې : "په اسلام کې پَرده نشته دا مُليانو ايجاد کړی ، په بې پَردګۍ او په مخلوط تعليم کې ترقي ده "

مونږ ورته وايو چې پَرده د مُليانو اِيجاد ندی بلکه ددې حکم په قرآن کريم او احاديثو کې صراحةً ذکر دی . او زمونږ د مسلمانانو په نزد هغه ترقي معتبر ده چې په هغې کې د شرعي حُدودو لحاظ ساتل شوې وي .

بل دا چې د اسلام دُشمنانو خو صرف د ترقۍ لفظ ياد کړی ، نور په دې هم نه پوهيږي چې ترقي څا ته وايي ؟

کله چې ښځه کلاؤ مخ د پرَدو سرو سره يو ځای بې پَردې ګرځي نو په دې کې خو هيڅ ترقي نشته ، بلکه که په ځا کې څه نا څه عقل وي نو هغه په دې پوهيږي چې دا خوبې حيائي او بې غيرتي ده ، په دې کې خو د ښځې عزت او شرافت ختميږي ، داسې ترقي د شيطان او د هغه د ملګرو خوښه ده ، خو مونږ مسلمانانو ته مقبول نده .

## په مخلوط تعليم کې هلکان او جينکۍ محنت نه کوي

په مخلوط تعليم کې هلکان او جينکۍ په دَرسونو کې محنت نه کوي ؛ ځکه هلکان د جينکو ښائست او ياراني ته متوجّه وي ، او جينکۍ هم ځانله د دوست ( Boy friend ) پيدا کولو د پاره هلکانو ته متوجّه وي ، تو له ورځ به ددې سوچونو کې ډُوب وي نو دَرسونو ته يې پوره توجّه نه وي .

يا چې کله چُهتي شي نو بعضې جينکۍ د خپل دوست سره په پارکونو کې چکرې وهي، په هوټلو کې ورسره ځانله خوراکونه کوي، ګپ شپ لړوي، لاس ورسره ملاووي، او نور ډير خلاف شرع کارونه کوي، چې دا ټول کارونه په شريعت کې ممنوع دي.

## نن صبا په کالجونو کې د هلکانو او جينکو د محبت حقيقت

په اسلام کې د سړي او ښځې د محبت شکل صرف نکاح ده. (۱) ددينه علاوه اسلام د پردي سړي او پردۍ ښځې په مينځ کې د دوستۍ اجازت نه ورکوي.

نن صبا چې په کالجونو کې بعضې هلکانو او جينکو د محبت په نوم کومې يارانې جوړې کړي، چې هغې ته دوی (Boy friend) او (Girl friend) وايي، يا سره ټوله ورځ ګپ شپ لړوي، چکرې وهي، او په هوټلو کې ځانله ناست وي، نو په اسلام کې ددې هيڅ جواز نشته. دا صرف د مغربي تهذيب (کافرانو) طريقه ده، بعضې د اسلام نه ناخبره هلکان د غير مُسلمو نقل کوي. (۲)

## په کالج کې هلکانو د پاره اُستاذانې ښځې مقررول ناجائز دي

په بعضې کالجونو کې بالغه هلکانو ته ښځې دَرس ورکوي، د دَرس په دَوران کې اکثر د اُستاذې په سَر باندې لوپټه هم نه وي نو ددې حکم دادی چې په اسلام کې ددې هيڅ جواز نشته. دا مخلوط تعليم د غيرمُسلمو ايجاد دی، مقصد يې په دې سره دا دی چې سړې سړې پاتې نشي، او ښځه ښځه پاتې نشي.

که هلکان دا عُذر بيانوي چې " دا زمونږ مجبوريت دی " نو ددې جواب دادی چې د دوی دا مجبوريت هم مَصنوعي دی، ځکه د کالج هلکان خو وخت په وخت د حکومت نه ډيرې مطالبې کوي او ددې د پاره احتجاج هم کوي، نو آيا دوی د حکومت نه دا مطالبه نشي کولی چې مونږ ددې ګناه نه بچ کړئ؟ او د ښځو په ځای سړي استاذان مقرر کړئ؟ (انسان چې کله يو ناجائز کار اوګوري نو د خپل وَس مطابق به د هغې د بندولو کوشش

---

(۱) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَمْ نَرَ لِلْمُتَحَابَّيْنِ مِثْلُ النِّكَاحِ. مشكاة المصابيح كتاب النِّكَاح الفَصْل الثَّالِث رقم الحديث ۳۰۹۳ (۱۴)، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۱۸۴۷.

(۲) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۱۷۵ م ۱۱۷.

کوي) (۱)

## په کومو یُونیورسټیو کې چې په پَرده باندې پابندي وي په هغې کې د جینکو د پاره د تعلیم حاصلولو حکم

په کومو یُونیورسټو کې چې د ښځو په پَرده باندې پابندي وي ، طالباتو ته صرف دَننه په یونیورسټۍ کې په سَر باندې لوپټه نه پرېږدي نو په دې کې د جینکو د پاره د تعلیم حاصلولو حکم دادی چې که په دې یونیورسټیو کې خالص ښځې وي سړي په کې بالکل نه وي نو بیا په دې کې د جینکو د پاره تعلیم حاصلول جائز دی ، ځکه د ښځې د پاره د نورو مسلمانانو ښځو د وړاندې سَر ښکاره کول جائز دي . (۲)

خو که په دې یونیورسټیو کې هلکان هم سبق وایي ، یا په کې سړي اُستاذان وي نو بیا د دوی د وړاندې د طالباتو د پاره مخ او سَر پټول فرض دي ، او ښکاره کول یې حرام دي. (۳)

بیا په داسې یونیورسټیو کې د جینکو د پاره تعلیم حاصلولو ناجائز دی . (۴)

## هلکانو او جینکو ته تر څومره عُمر پورې د مخلوط تعلیم اجازت شته ؟

په احادیثو کې راغلي چې هلکان د لسو (۱۰) کالو شي نو بیا د دوی بِسترې جدا کول په کار دي (اګر چې دوی وروراو خور وي) . (۵)

---

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ ، وَذٰلِكَ أَضْعَفُ الْإِيْمَانِ . صحيح مسلم كِتَابُ الْإِيمَانَ بَابُ بَيَانِ كَوْنِ النَّهْيِ عَنِ الْمُنْكَرِ مِنَ الْإِيمَانِ... رقم الحديث ۷۸ (۴۹) . مشكوة المصابيح بَابُ الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوفِ الْفَصْلُ الْأَوَّل رقم الحديث ۵۱۳۷ (۱) . آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۹۹ ، و ص ۸۲ پردہ.

(۲) وَتَنْظُرُ الْمَرْأَةُ الْمُسْلِمَةُ مِنَ الْمَرْأَةِ كَالرَّجُلِ مِنَ الرَّجُلِ . رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ۳۷۱ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ .

(۳) (وَتُمْنَعُ) الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ (مِنْ كَشْفِ الْوَجْهِ بَيْنَ رِجَالٍ) لَا لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ بَلْ (لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ) . الدر المختار ج ۱ ص ۴۰٦ بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ مَطْلَبٌ فِي سَتْرِ الْعَوْرَةِ.

(۴) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۷۵ پردہ. فتاوی محمودیہ ج ۲۸ ص ۱۴۱ اجنبی عورتوں سے تنہائی .

(۵) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مُرُوْا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِيْنَ . ←←←←←←

ددې حديث نه معلوميږي چې هلكانو او جينكو ته زيات نه زيات د لسو كالو يا يوولسو كالو پورې د مخلوط (يو ځاى) تعليم كولو اجازت شته ، ددې عُمر نه پس بيا د مخلوط تعليم اجازت نشته . (۱)

## په مسلمان سړي او ښځه باندې كوم علم فرض دى ؟

اسلام چې په سړي او ښځه باندې كوم عِلم فرض كړى ، او په احاديثو كې د هغې فضائل راغلي نو ددينه مراد دِيني علم دى ، يعنى هغه علم مراد دى چې په هغې سره انسان ته د الله ﷻ معرفت حاصليږي او د الله ﷻ د راضي كولو طريقې پرې معلوميږي .

لهذا په هر مسلمان (نارينه او زَنانه) باندې دومره عِلم فرضِ عين دى چې دا پرې د دِين د بُنيادي ضرورتونو نه خبردار شي ، لكه :

۱. د اهلِ سنت والجماعت بُنيادي عقائد پيژندل فرضِ عين دي .

۲ . د طهارت ، مونځ او روژې علم فرضِ عين دى . او په مالدار باندې د زكوة او حج علم هم فرضِ عين دى .

۳ . په كومه معامله كې چې انسان د داخليدو اراده لري (لكه : تجارت ، زراعت ، تزوّج وغيره) ددې علم هم په ده باندې فرضِ عين دى . (ددې د پاره چې دا د حرامو او شبهاتو نه ځان محفوظ كړي) .

۴ . د آفاتِ نفساني (لكه رِيا ، حسد ، عُجب او تكبر وغيره) پيژندګلي ، او ددې نه د بچ كيدلو طريقې معلومولو علم هم فرضِ عين دى (ځكه د رِياء په وجه خو انسان د عبادت د ثواب نه محرومه كيږي ، او حسد خو د انسان نيك اعمال داسې سوزوي لكه اُور چې خشاك سوزوي) ، همدارنګې د اخلاص علم هم ضروري دى ، ځكه د عمل صحت په اخلاص باندې موقوف دى .

---

← ← ← وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرٍ . وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ . سنن ابي داؤد بَابُ مَتَى يُؤْمَرُ الْغُلَامُ بِالصَّلَاةِ رقم الحديث ۴۹۵ ، مشكاة المصابيح كتاب الصلاة الفصل الثاني رقم الحديث ۵۷۲ (۹) ، كنزالعمال رقم الحديث ۴۵۳۲۴ .

(۱) آپ كے مسائل اور اُن كا حل ج ۸ ص ۱۷۷ بحوالہ.

خلاصه دا چې ددې مذکوره شيانو علم په قدر د ضرورت په هر مسلمان نارينه او زنانه باندې فرضِ عين دی . البته په دې کې تَبَحُّر (يعنی پوره مهارت حاصلول) مستحب دی .
په شامي کې ددې پوره تفصيل ذکر دی . (۱)

## دُنياوي فنون (ډاکټري . انجينري وغيره) علم دی

نن صبا چې په کالجونو او يُونيورسټيو کې د ډاکټرۍ يا انجينرۍ کوم تعليم ورکولې شي نو ديته علم نشي ويلی ، بلکه ديته هُنر ، پېشه او فن ويلې شي .
پخپله دا فنون نه ښه دي او نه بَد دي ، ددې د ښه والي او بَد والي انحصار په صحيح يا

---

(۱) په شامي کې ددې پوره تحقيق ذکر دی : قَالَ الحصكفي رَحِمَهُ اللهُ : وَاعْلَمْ أَنَّ تَعَلُّمَ الْعِلْمِ يَكُونُ فَرْضَ عَيْنٍ وَهُوَ بِقَدْرِ مَا يَحْتَاجُ لِدِينِهِ . وَفَرْضَ كِفَايَةٍ ، وَهُوَ مَا زَادَ عَلَيْهِ لِنَفْعِ غَيْرِهِ . وَمَنْدُوبًا ، وَهُوَ التَّبَحُّرُ فِي الْفِقْهِ وَعِلْمِ الْقَلْبِ . الدر المختار

قَالَ ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ : (قَوْلُهُ: وَاعْلَمْ أَنَّ تَعَلُّمَ الْعِلْمِ ...) أَيِ الْعِلْمُ الْمُوصِلُ إِلَى الْآخِرَةِ أَوِ الْأَعَمُّ مِنْهُ . قَالَ الْعَلَامِيُّ فِي فُصُولِهِ: مِنْ فَرَائِضِ الْإِسْلَامِ تَعَلُّمُهُ مَا يَحْتَاجُ إِلَيْهِ الْعَبْدُ فِي إِقَامَةِ دِينِهِ وَإِخْلَاصِ عَمَلِهِ لِلَّهِ تَعَالَى وَمُعَاشَرَةِ عِبَادِهِ . وَفَرْضٌ عَلَى كُلِّ مُكَلَّفٍ وَمُكَلَّفَةٍ بَعْدَ تَعَلُّمِهِ عِلْمَ الدِّينِ وَالْهِدَايَةِ تَعَلُّمُ عِلْمِ الْوُضُوءِ وَالْغُسْلِ وَالصَّلَاةِ وَالصَّوْمِ . وَعِلْمِ الزَّكَاةِ لِمَنْ لَهُ نِصَابٌ . وَالْحَجِّ لِمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ . وَالْبُيُوعِ عَلَى التُّجَّارِ لِيَحْتَرِزُوا عَنِ الشُّبُهَاتِ وَالْمَكْرُوهَاتِ فِي سَائِرِ الْمُعَامَلَاتِ . وَكَذَا أَهْلُ الْحِرَفِ . وَكُلُّ مَنِ اشْتَغَلَ بِشَيْءٍ يُفْرَضُ عَلَيْهِ عِلْمُهُ وَحُكْمُهُ لِيَمْتَنِعَ عَنِ الْحَرَامِ فِيهِ .

وَفِي تَبْيِينِ الْمَحَارِمِ: لَا شَكَّ فِي فَرْضِيَّةِ عِلْمِ الْفَرَائِضِ الْخَمْسِ وَعِلْمِ الْإِخْلَاصِ؛ لِأَنَّ صِحَّةَ الْعَمَلِ مَوْقُوفَةٌ عَلَيْهِ . وَعِلْمِ الْحَلَالِ وَالْحَرَامِ . وَعِلْمِ الرِّيَاءِ ؛ لِأَنَّ الْعَابِدَ مَحْرُومٌ مِنْ ثَوَابِ عَمَلِهِ بِالرِّيَاءِ . وَعِلْمِ الْحَسَدِ وَالْعُجْبِ ؛ إِذْ هُمَا يَأْكُلَانِ الْعَمَلَ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ . وَعِلْمِ الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَالنِّكَاحِ وَالطَّلَاقِ لِمَنْ أَرَادَ الدُّخُولَ فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ . وَعِلْمِ الْأَلْفَاظِ الْمُحَرَّمَةِ أَوِ الْمُكَفِّرَةِ . وَلَعَمْرِي هٰذَا مِنْ أَهَمِّ الْمُهِمَّاتِ فِي هٰذَا الزَّمَانِ؛ لِأَنَّكَ تَسْمَعُ كَثِيرًا مِنَ الْعَوَامِّ يَتَكَلَّمُونَ بِمَا يُكَفِّرُ وَهُمْ عَنْهَا غَافِلُونَ . وَالْاِحْتِيَاطُ أَنْ يُجَدِّدَ الْجَاهِلُ إِيمَانَهُ كُلَّ يَوْمٍ وَيُجَدِّدَ نِكَاحَ امْرَأَتِهِ عِنْدَ شَاهِدَيْنِ فِي كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ . إِذِ الْخَطَأُ وَإِنْ لَمْ يَصْدُرْ مِنَ الرَّجُلِ فَهُوَ مِنَ النِّسَاءِ كَثِيرٌ . رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۲ مُقَدِّمَة . فتاوی فريديه ج۱ ص ۲۰۶ كتاب العلم . فتاوی محموديه ج ٦ ص ۳۷ باب اول: علم کا بيان .

بيا امام ابوداؤد رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې باب لاندې دا حديث رانقل کړی :

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل : لَوْ تَرَكْنَا هٰذَا الْبَابَ لِلنِّسَاءِ .

که مونږ (د مسجدِ نبوي) دا دروازه د ښځو د پاره پرېږدو نو دا به بهتروي .

حضرت نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي :

فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حَتّٰى مَاتَ .

حضرت عبدالله بن عُمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ( ددې اِرشاد آوريدو نه پس ) تر مرګه پورې په دې دروازه باندې نهٔ داخل شوی . (۱)

۲ . په يو بل حديث کې ددې پوره تشريح ذکر ده ، حضرت ابن عُمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فرمايي چې کله رسولُ الله صلی الله علیه وسلم مسجدِ نبوي جوړ کړو نو د زَنانهٔ د پاره يې يوه جدا دَروازه جوړه کړه ، او وې فرمايل : لَايَلِجَنَّ مِنْ هٰذَا الْبَابِ مِنَ الرِّجَالِ أَحَدٌ .

په سړو کې دې هيڅوک ددې دَروازې نه جُمات ته نه داخلېږي ( ځکه دا د زَنانهٔ د پاره خاص ده ) .

حضرت نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي :

فَمَا رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا دَاخِلًا مِنْ ذٰلِكَ الْبَابِ وَلَا خَارِجًا مِنْهُ .

ما هيڅ کله ابن عُمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ندې ليدلی چې په دې دَروازه باندې جُمات ته داخل شوې وي يا خارج شوې وي . (۲)

---

(۱) عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا ، قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « لَوْ تَرَكْنَا هٰذَا الْبَابَ لِلنِّسَاءِ » . قَالَ نَافِعٌ : فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حَتّٰى مَاتَ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابٌ فِيْ اِعْتِزَالِ النِّسَاءِ فِي الْمَسَاجِدِ عَنِ الرِّجَالِ رقم الحديث ۴۶۲ ، و رقم الحديث ۵۷۱ بَابُ التَّشْدِيْدِ فِيْ ذٰلِكَ (اى : فِيْ خُرُوْجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسْجِدِ) .

(۲) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَنَى الْمَسْجِدَ جَعَلَ بَابًا لِلنِّسَاءِ ، وَ قَالَ : « لَايَلِجَنَّ مِنْ هٰذَا الْبَابِ مِنَ الرِّجَالِ أَحَدٌ » قَالَ نَافِعٌ : فَمَا رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا دَاخِلًا مِنْ ذٰلِكَ الْبَابِ وَلَا خَارِجًا مِنْهُ . مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۹۳۸ وَمَا رَوَى نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ . حلية الأولياء وطبقات ج ۱ ص ۳۱۲ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ .

غلط مقصد او استعمال باندې دی.

که دا د بنه مقصد د پاره حاصلولې شو نو دا بنه دي، خو که دا د خراب مقصد د پاره حاصلولې شو يا ددې په حاصلولو کې د شريعت احکام ماتيدل نو بيا بنه ندي.(۱)

حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په خپل خطبات کې دا خبره ډير په تفصيل سره ذکر کړی چې بعضې خلق د علم فضائل بيانوي، د قرآن کريم آيتونه او احاديث ذکر کوي خو بيا غلطي دا کوي چې دا ټول فضائل په انګريزي تعليم تطبيقوي او خلقو ته د انګريزي زده کولو ترغيب ورکوي.

نو خبردار! دا سخته ذُهوکه ده، ځکه د علم چې څومره فضائل په قرآن کريم او احاديثو کې بيان شوي نو ددينه د شريعت علم مراد دی، هغه علم مراد دی چې په هغې سره انسان ته د الله جل جلاله معرفت حاصليږي او په آخرت کې د انسان د پاره فائده مند وي، انګريزي تعليم مراد نه دی.(۲)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ. أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: اَلْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ. وَمَا سِوَى ذٰلِكَ فَهُوَ فَضْلٌ: آيَةٌ مُحْكَمَةٌ. أَوْ سُنَّةٌ قَائِمَةٌ. أَوْ فَرِيْضَةٌ عَادِلَةٌ. سنن ابي داؤد كِتَابُ الْفَرَائِضِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ تَعْلِيمِ الْفَرَائِضِ رقم الحديث ۲۸۸۵، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۵۴، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۲۱۷۲.

(وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: طَلَبُ الْعِلْمِ) أَيِ الشَّرْعِيِّ (فَرِيْضَةٌ) أَيْ: مَفْرُوْضٌ فَرْضَ عَيْنٍ (عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ): أَوْ كِفَايَةٍ وَالتَّاءُ لِلْمُبَالَغَةِ أَيْ وَمُسْلِمَةٍ كَمَا فِيْ رِوَايَةٍ.

قَالَ الشُّرَّاحُ: اَلْمُرَادُ بِالْعِلْمِ مَا لَا مَنْدُوْحَةَ لِلْعَبْدِ مِنْ تَعَلُّمِهِ كَمَعْرِفَةِ الصَّانِعِ وَالْعِلْمِ بِوَحْدَانِيَّتِهِ وَنُبُوَّةِ رَسُوْلِهِ وَكَيْفِيَّةِ الصَّلَاةِ. فَإِنَّ تَعَلُّمَهُ فَرْضُ عَيْنٍ. مرقاة المفاتيح كِتَابُ الْعِلْمِ ج ۱ ص ۳۰۱ في تشريح حديث ۲۱۸.

آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۱۷۴، و ص ۹۹ ج ۱۰.

(۲) دکوم علم فضائل او تاکيد چې په احاديثو کې راغلی د هغې نه علم د شريعت مراد دی: په فتح الباري کې ذکر دي: وَالْمُرَادُ بِالْعِلْمِ الْعِلْمُ الشَّرْعِيُّ الَّذِيْ يُفِيْدُ مَعْرِفَةَ مَا يَجِبُ عَلَى الْمُكَلَّفِ مِنْ أَمْرِ دِيْنِهِ فِيْ عِبَادَاتِهِ وَمُعَامَلَاتِهِ. وَالْعِلْمُ بِاللهِ وَصِفَاتِهِ وَمَا يَجِبُ لَهُ مِنَ الْقِيَامِ بِأَمْرِهِ وَتَنْزِيْهِهِ عَنِ النَّقَائِصِ. وَمَدَارُ ذٰلِكَ عَلَى التَّفْسِيْرِ وَالْحَدِيْثِ وَالْفِقْهِ. فتح الباري شرح صحيح البخاري ج ۱ ص ۱۴۱ قَوْلُهُ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ فتاوى محموديه ج ٦ ص ۳۴ باب اول: علم کا بيان.

( البته که چا معتمد عالم په انګریزي کې د قرآن کریم یا احادیثو ترجمه او کړه او یو کس هغه لولي نو بیا په دې کې ثواب شته ) . (۱)

نو نن صبا چې په سکولونو او کالجونو کې کوم فنون خودلې شي نو دا دغه فرضي علم نه دی ، بلکه په دې فنونو کې چې کوم د مسلمانانو د فائدې د پاره وي او په خلافِ شرعه امورو مشتمل نه وي نو دا صرف د جواز په مرتبه کې دي . البته که په خلافِ شرعه امورو مشتمل وو نو بیا د هغې حصول نا جائز دی . (۲)

## دُنیاوي فنون زده کول هم منع ندي

دُنیاوي علوم او فنون زده کول څه منع نه دي بلکه دا هم د ژوند ضرورت دی ، د دې زده کول هم د ضرورت په درجه کې جائز دي .

بلکه امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په احیاء العلوم کې ذکر کړي دي چې د کومو دُنیاوي علومو او فنونو د نه زده کولو په وجه چې اجتماعي خرابي لازمیږي او د مسلمانانو د کمزورتیا سبب ګرځي نو دا زده کول هم فرضِ کفایي دي لکه علمِ طب ، حساب ، زمینداري ، سیاست او د کپړو جوړول وغیره . (۳)

---

(۱) خطباتِ حکیم الامت ج۲ ص۱۹۴ موضوع تعمیم العلم .

(۲) کشف الباري ج۳ ص۴۴ کتاب العلم باب فضل العلم .

(۳) امام غزالي رحمه الله فرمايي : فالعلومُ الّتي ليست بشرعيّة تنقسم إلى ما هو محمود وإلى ما هو مذموم وإلى ما هو مباح . فالمحمود : ما يرتبط به مصالح أمور الدنيا . كالطبّ والحساب . وذلك ينقسم إلى ما هو فرض كفاية وإلى ما هو فضيلة وليس بفريضة . أمّا فرض الكفاية : فهو علمٌ لا يستغني عنه في قوام أمور الدّنيا كالطبّ إذ هو ضروري في حاجة بقاء الأبدان . وكالحساب فإنّه ضروريّ في المعاملات وقسمة الوصايا والمواريث وغيرهما . وهذه هي العلوم الّتي لو خلا البلد عمّن يقوم بها حرج أهل البلد . وإذا قام بها واحد كفى وسقط الفرض عن الآخرين .

فلا يتعجب من قولنا إنّ الطبّ والحساب من فروض الكفايات . فإنّ أصول الصناعات أيضًا من فروض الكفايات كالفلاحة والحياكة والسّياسة . بل الحجامة والخياطة ؛ فإنّه لو خلا البلد من الحجام تسارع الهلاك إليهم وحرجوا بتعريضهم أنفسهم للهلاك . فإنّ الّذي أنزل الدّاءَ أنزل الدواءَ ←←←←←←

په شامي کې هم د دې تفصيل شته . (۱)

البته دا د ژوند مقصد کرځول نه دي په کار، ځکه مقصودي عِلم خو صرف د شريعت عِلم دی چې په دې سره انسان ته د دواړو جهانو کاميابي نصيبه کيږي .

## انګريزي زده کول جائز ده . خو د انګريزي تهذيب نه ځان ساتل په کار دي

د انګريزي زده کولو مختلف صورتونه دي ، د هر صورت حکم جدا دی :

که چيرته په انګريزي تعليم سره د دِين ضائع کيدو يَره وه نو بيا د دې زده کول حرام دي .(۲)

که په دې کې د دِين ضائع کيدو يَره نه وه ، بلکه د دُنيوي او معاشي مقاصدو د پاره حاصلولې شوه نو بيا د دې زده کول مباح دي . (۳)

←←← وأرشد إلى استعماله وأعد الأسباب لتعاطيه فلا يجوز التعرض للهلاك بإهماله . وأمّا ما يعدّ فضيلة لا فريضة فالتّعمق في دقائق الحساب وحقائق الطبّ وغير ذلك مما يستغنى عنه . ولكنّه يفيد زيادة قوة في القدر المحتاج إليه . وأما المذموم فعلم السحر والطلسمات وعلم الشّعبذة والتلبيسات . وأما المباح منه فالعلم بالأشعار التي لا سخف فيها وتواريخ الأخبار وما يجري مجراه . أمّا العلوم الشرعيّة وهي المقصودة بالبيان فهي محمودة كلها . احياء علوم الدين ج ۱ ص ۱۶ كتاب العلم بيان العلم الذي هو فرض كفاية .

(۱) قال الحصكفي رَحِمَهُ اللَّهُ : وَاعْلَمْ أَنَّ تَعَلُّمَ الْعِلْمِ يَكُوْنُ فَرْضَ عَيْنٍ وَهُوَ بِقَدْرِ مَا يَحْتَاجُ لِدِيْنِهِ. وَفَرْضَ كِفَايَةٍ. وَهُوَ مَا زَادَ عَلَيْهِ لِنَفْعِ غَيْرِهِ. الدرالمختار

قال ابن عابدينّ : قَالَ فِي تَبْيِيْنِ الْمَحَارِمِ: وَأَمَّا فَرْضُ الْكِفَايَةِ مِنَ الْعِلْمِ. فَهُوَ كُلُّ عِلْمٍ لَا يُسْتَغْنٰى عَنْهُ فِي قِوَامِ أُمُوْرِ الدُّنْيَا كَالطِبِّ وَالْحِسَابِ وَالنَّحْوِ وَاللُّغَةِ وَالْكَلَامِ وَالْقِرَاءَاتِ وَأَسَانِيْدِ الْحَدِيْثِ وَقِسْمَةِ الْوَصَايَا وَالْمَوَارِيْثِ وَالْكِتَابَةِ وَالْمَعَانِيْ وَالْبَدِيْعِ وَالْبَيَانِ وَالْأُصُوْلِ وَمَعْرِفَةِ النَّاسِخِ وَالْمَنْسُوْخِ وَالْعَامِّ وَالْخَاصِّ وَالنَّصِّ وَالظَّاهِرِ وَكُلُّ هٰذِهِ آلَةٌ لِعِلْمِ التَّفْسِيْرِ وَالْحَدِيْثِ. وَكَذَا عِلْمُ الْآثَارِ وَالْأَخْبَارِ وَالْعِلْمُ بِالرِّجَالِ وَأَسَامِيْهِمْ وَأَسَامِي الصَّحَابَةِ وَصِفَاتِهِمْ. وَالْعِلْمُ بِالْعَدَالَةِ فِي الرِّوَايَةِ. وَالْعِلْمُ بِأَحْوَالِهِمْ لِتَمْيِيْزِ الضَّعِيْفِ مِنَ الْقَوِيِّ. وَالْعِلْمِ بِأَعْمَارِهِمْ وَأُصُوْلِ الصِّنَاعَاتِ وَالْفِلَاحَةِ كَالْحِيَاكَةِ وَالسِّيَاسَةِ وَالْحِجَامَةِ. رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۲ مُقَدِّمَة .

(۲) فتاوی عزيزي ص ۵۹۹ ، امداد الفتاوی ج ۶ ص ۱۶۲ ، و ص ۱۶۳ ، و ص ۱۹۳ .

(۳) قَالَ فِي تَبْيِيْنِ الْمَحَارِمِ : وَأَمَّا فَرْضُ الْكِفَايَةِ مِنَ الْعِلْمِ. فَهُوَ كُلُّ عِلْمٍ لَا يُسْتَغْنٰى عَنْهُ فِي ←←←←←

که انګريزي تعليم د دِيني مقاصدو د پاره کولې شو نو بيا دا د ثواب کار دی. (۱)

په انګريزي تعليم زده کولو باندې زمونږ اعتراض نشته خو ليکن په دې موجوده انګريزي نظامِ تعليم کې دِين محفوظ نه پاتې کيږي. لهذا که يو کس انګريزي زده کوي خو د انګريزي تهذيب نه ځان ساتي نو بيا په دې کې څه حرَج نشته. (۲)

## زَنانه په پَرده کې جديد تعليم هم حاصلولې شي

د سړو او ښځو مخلوط تعليم شرعًا ناجائز او سخته ګناه ده، خو که زَنانه په پَرده کې جديد تعليم لکه کمپيوټر، ميډيکل (ډاکټري)، يا نور تعليم حاصلوي نو په دې کې څه حرج نشته، ځکه معاشرې ته د ښځې ډاکټرې هم ضرورت شته، خو د تعليم يا ملازمت په په دَوران کې به ښځه د پرَدو سړو سره اختلاط نه کوي، او د خپل نظر حفاظت به کوي.

ځکه که د ډاکټري په زده کولو کې د شريعت خلاف کارونه کول راتلل نو بيا يې پريخودل په کار دي ځکه د الله ﷻ ناراضه کول ندي په کار. (۳)

## د جينکو د پاره بغير د مَحرَم نه د پرَدي اُستاذانو سره چکر له تلل ناجائز دي

په بعضې کالجونو کې دا ترتيب وي چې په چُټيانو کې اُستاذان سړي د کالج جينکۍ د ځان سره بل ښار ته د لس يا پنځلس ورځو د پاره په چکر باندې بوځي، دې جينکو ته اګر چې د خپل کور د طرفه اجازت وي خو خپل مَحرَم (ورور وغيره) ورسره نه وي، صرف د کالج اُستاذان سړي ورسره وي، نو ددې حکم دادی چې:

---

←←←←←← قِوَامِ أُمُوْرِ الدُّنْيَا كَالطِّبِّ وَالْحِسَابِ وَالنَّحْوِ وَاللُّغَةِ وَالْكَلَامِ .... وَأُصُوْلِ الصِّنَاعَاتِ وَالْفِلَاحَةِ كَالْحِيَاكَةِ وَالسِّيَاسَةِ وَالْحِجَامَةِ. رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۴۲ مُقَدِّمَة مَطْلَبٌ فِي فَرْضِ الْكِفَايَةِ وَفَرْضِ الْعَيْنِ

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوٰى ... صحيح البخاري بَابُ بَدْءِ الْوَحْيِ كَيْفَ كَانَ بَدْءُ الْوَحْيِ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ رقم الحديث ۱. صحيح مسلم كِتَابُ الْإِمَارَةِ بَابُ قَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ رقم الحديث ۱۵۵ (۱۹۰۷).

(۲) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۱۷۶ ط م.

(۳) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۱۷۲ و ص ۱۷۴، و ص ۱۰۳، و ص ۱۰۸ ط م.

اول خو ښځې ته په کور کې د پاتې کیدو حکم شوی ، بغیر د ضرورت نه به بهر نه اُوځي . (۱)

دویم دا چې د چکر د پاره پرَدو سړو ګرځیدل د ښځو د فطرت خلاف ده ، ځکه چې کله ښځه بهر اُووځي نو شیطان دا د خلقو په نظر کې ښائسته کوي ، او په ګناه کې يې واقع کوي . (۲)

دریم دا چې نبي علیه السلام ښځه ددینه منع کړې چې بغیر د مَحرَم نه د شرعي سفر په مقدار ( اَته اَویا ۷۸ کلومیټره ، یا د درې ورځې پیدل مزل په مقدار ) لرې سفر اوکړي . (یعنی ښځې ته بغیر د مَحرَم نه د ۷۸ کلومیټر په اَندازه باندې لرې سفر کول ناجائز دی ، بلکه خامخا به ورسره پلار ، ورور ، خاوند ، ځوي او یابل مَحرَم وي ). (۳)

لهذا کومه ښځه چې په الله او رسول باندې ایمان لري هغه به هیڅ کله د پرَدو سړو سره په چکر لاړه نشي . (۴)

## ښځې ته غیر مَحرَمه ډرائیور سره ځان له لرې نوکرۍ له تلل ناجائز دي

که ښځې ته د نوکرۍ کولو مجبوریت وُ ( مثلا ددې د پاره د ګټې بل څوک نه وُ ) او دیته نزدې نوکري پیدا کیده نو بیا دا په پرَده کې نزدې نوکري کولې شي ( خو د پرَدو سړو

---

(۱) ﴿ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُوْلَى ﴾ . الاحزاب آیة ۳۳ .

(۲) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اِسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ سنن الترمذي أَبْوَابُ الرَّضَاعِ بَابُ مَا جَاءَ فِيْ كَرَاهِيَةِ الدُّخُولِ عَلَى الْمُغِيبَاتِ رقم الحديث ۱۱۷۳ ,قال الترمذي : هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ قال الالباني صحيح .

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُسَافِرَ سَفَرًا فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا . إِلَّا وَمَعَهَا أَبُوْهَا أَوْ أَخُوهَا أَوْ زَوْجُهَا أَوِ ابْنُهَا أَوْ ذُوْ مَحْرَمٍ مِنْهَا . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْمَنَاسِكِ بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَحُجُّ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ رقم الحديث ۱۷۲۶ .

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ مشكاة المصابيح ۲۵۱۳ (۹) كتاب المناسك الفصل الأول .

(۴) آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۱۰۷ و ص ۱۱۵ .

سره به اختلاط نه کوي ).

او که دیته د نوکرۍ کولو ضرورت نه وُ مثلا ددې د کټې د پاره بل څوک موجود وُ ، یا ددې سره نزدې نوکري نه پیدا کیده نو یا دیته د غیر مَحرَمه ډرائیور سره ځانله په ګاډي کې لرې مزل کول ناجائز دی ، ځکه کله ددینه ډیرې فتنې پیدا کیږي. (۱)

# د پردۍ ښځې سره لاس ملاوول حرام دي

د پردۍ ښځې سره لاس ملاوُول (او مصافحه ورسره کول) حرام دي. (۲)

په احادیثو مبارکهؤ کې ددې سختې سزاګانې ذکر شوي:

۱. رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

لَأَنْ يُطْعَنَ فِيْ رَأْسِ أَحَدِكُمْ بِمِخْيَطٍ مِّنْ حَدِيْدٍ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمَسَّ امْرَأَةً لَا تَحِلُّ لَهُ. (۳)

په تاسو کې که د چا په سَر کې د اوسپنې ستَن ( یا : سیخ ) ننویستلې شي نو دا دده د پاره ددینه ډیره بهتره ده چې داسې ښځه مَسه کړي چې دده د پاره حلاله نه وي.

**فائده**: په دې حدیث کې بغیر د شهوت نه پردۍ ښځې ته لاس وَروړلو کې دومره سخته سزا ذکر شوی نو که په شهوت باندې یې مَسه کړي نو بیا خو به یې سزا نوره هم سخته وي.

په احادیثو مبارکهؤ کې بیا دیته د لاس زِنا ویل شوی:

۲. د مسلم شریف حدیث دی ، رسولُ الله ﷺ فرمایي: وَالْيَدُ زِنَاهَا الْبَطْشُ. (۴)

---

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ
مشكاة المصابيح ۲۵۱۳ (۹) كتاب المناسك الفصل الأول آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۸۹

(۲) بدائع الصنائع كتاب الاستحسان ۴۹۵/۹ ، فتاوی عثمانیه ج ۱۰ ص ۸۴ آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۵۵

(۳) المعجم الكبير للطبراني ۲۰/ ۲۱۱ رقم الحديث ۴۸۶ . و رقم الحديث ۴۸۷ . الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۲۹۳۸ ، مجمع الزوائد بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْخَلْوَةِ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ رقم الحديث ۷۷۱۸ وقال الهيثمي رِجَالُهُ رِجَالُ الصَّحِيحِ كنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۶۵

(۴) پوره حدیث داسې دی : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُتِبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَصِيبُهُ مِنَ الزِّنَا مُدْرِكٌ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ . فَالْعَيْنَانِ زِنَاهُمَا النَّظَرُ وَالْأُذُنَانِ زِنَاهُمَا الْإِسْتِمَاعُ ←←←←

د لاس زِنا د پرَدی ښځې لاس نیول ( او مَسه کول ) دي . (۱)

۳ . که څوک دا اُووایي چې :

" زما زړه پاک دی او زما نیت صفا دی که زه د پرَدی ښځې سره لاس مِلاوُوم نو دا په ما باندې غلط اَثر نه کوي "

نو داسې کس په خپله دعوی کې دروغجَن دی ؛ ځکه نبي علیه السلام خو د صغیره او کبیره ټولو ګناهونو نه مَعصوم وُ، او زړه یې هم پاک وُ خو بیا یې هم د پرَدی زَنانه سره لاس ندې مِلاوُ کړی .

تر دې چې زَنانه وُ ته د بیعت ورکولو په وخت یې هم ورسره لاس ندې ملاوُ کړی ، بلکه صرف زُباني بیعت به یې ورکولو .

په یوه موقع یې زَنانه وُ ته اوفرمایل : إِنِّي لَا أَمَسُّ أَيْدِي النِّسَاءِ (۲)
زه د ښځو لاسونه نه مَسه کوم .

٤ . یو ځل څه زَنانه نبي علیه السلام ته راغلی ، د زُباني اِقرار نه روستو یې نبي علیه

---

←←← وَاللِّسَانُ زِنَاهُ الْكَلَامُ . وَالْيَدُ زِنَاهَا الْبَطْشُ . وَالرِّجْلُ زِنَاهَا الْخُطَا . وَالْقَلْبُ يَهْوَى وَيَتَمَنَّى . وَيُصَدِّقُ ذٰلِكَ الْفَرْجُ وَيُكَذِّبُهُ صحيح مسلم كتاب القَدَرِ بَابُ قُدِّرَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا وَغَيْرِهِ رقم الحديث ٢١(٢٦٥٧) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٨٩٣٢ ، المستدرک علی الصحیحین للحاکم رقم الحدیث ٣٧٥٢ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٣٥١٠ ، مشكاة المصابيح كتاب الإيمان باب الإيمان بالقدر الفصل الأول رقم الحديث ٨٦ (٨) .

(۱) ( وَالْيَدُ زِنَاهَا الْبَطْشُ ) . أَيْ: الْأَخْذُ . وَاللَّمْسُ . وَيَدْخُلُ فِيهِ الْكِتَابَةُ إِلَيْهَا . وَرَمْيُ الْحَصَا عَلَيْهَا . وَنَحْوُهُمَا .
مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۱ ص ۱۵۹ في تشريح حديث ۸٦ .

(۲) عَنْ عَقِيلَةَ بِنْتَ عُبَيْدِ بْنِ الْحَارِثِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا . قَالَتْ : جِئْتُ أَنَا وَأُمِّي بَرِيرَةُ بِنْتُ الْحَارِثِ الْعَتْوَارِيَّةُ فِي نِسَاءٍ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ فَبَايَعْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ ضَارِبٌ عَلَيْهِ قُبَّةً بِالْأَبْطَحِ . فَأَخَذَ عَلَيْنَا أَنْ لَا نُشْرِكَ بِاللهِ شَيْئًا ... الآية . فَلَمَّا أَقْرَرْنَا وَبَسَطْنَا أَيْدِيَنَا لِنُبَايِعَهُ قَالَ : « إِنِّي لَا أَمَسُّ أَيْدِي النِّسَاءِ » . فَاسْتَغْفَرَ لَنَا وَكَانَتْ تِلْكَ بَيْعَتَنَا . المعجم الكبير للطبراني ٢٤/ ٣٤٢ رقم الحديث ٨٥٤ . المعجم الاوسط رقم الحديث ٦٢٢٩ . كنز العمال رقم الحديث ٤٥٤ بيعة النساء .

السلام ته اوفرمايل .... اې د الله رسوله ! لاس راديخوا کړه چې د تا سره بيعت اوکړو .
رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمايل :
إِنِّي لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ .... زه د ښځو سره مصافحه نه کوم . (۱)

**۵** . حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي : لَا وَاللهِ مَا مَسَّتْ يَدُهُ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ ، مَا يُبَايِعُهُنَّ إِلَّا بِقَوْلِهِ: « قَدْ بَايَعْتُكِ عَلَى ذٰلِكِ » . (۲)
قسَم په الله ، هيڅ کله د نبي عليه السلام لاس د پردی ښځې لاس د بيعت په وخت ندې مَسَه کړی ، نبي عليه السلام به د زنانهٔ نه صرف په خُله باندې دا بيعت اخيستو چې : ما د

---

(۱) پوره حديث داسې دی : عَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا . أَنَّهَا قَالَتْ : أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ بَايَعْنَهُ عَلَى الْإِسْلَامِ . فَقُلْنَ : يَا رَسُولَ اللهِ ! نُبَايِعُكَ عَلَى أَنْ لَا نُشْرِكَ بِاللهِ شَيْئًا . وَلَا نَسْرِقَ . وَلَا نَزْنِيَ . وَلَا نَقْتُلَ أَوْلَادَنَا . وَلَا نَأْتِيَ بِبُهْتَانٍ نَفْتَرِيهِ بَيْنَ أَيْدِينَا وَأَرْجُلِنَا . وَلَا نَعْصِيكَ فِي مَعْرُوفٍ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « فِيمَا اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ » . قَالَتْ : فَقُلْنَ : اَللهُ وَرَسُولُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنْ أَنْفُسِنَا . هَلُمَّ نُبَايِعْكَ يَا رَسُولَ اللهِ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنِّي لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ . إِنَّمَا قَوْلِي لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ أَوْ مِثْلِ قَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ » . موطا الإمام مالک كِتَابُ الْبَيْعَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبَيْعَةِ رقم الحديث ۲ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۷۰۰۸ ، و رقم الحديث ۲۷۰۰۹ ، سنن النسائي رقم الحديث ۴۱۸۱ ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ۹۸۲۶ ، و رقم الحديث ۹۸۳۱ ، مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۷۲۶ ، سنن ابن ماجة باب بيعة النساء رقم الحديث ۲۸۷۴ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۵۵۳ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۴۷۰ ، و رقم الحديث ۴۷۳ ، سنن الدارمي رقم الحديث ۲۲۸۴ .

وفي رواية : عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ ، قَالَتْ : أَنَا مِنَ النِّسْوَةِ اللَّاتِي أَخَذَ عَلَيْهِنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَتْ : وَكُنْتُ جَارِيَةً نَاهِدًا جَرِيئَةً عَلَى مَسْأَلَتِهِ . فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ ! أُبْسُطْ يَدَكَ حَتَّى أُصَافِحَكَ . فَقَالَ : « إِنِّي لَا أُصَافِحُ النِّسَاءَ ، وَلٰكِنْ آخُذُ عَلَيْهِنَّ مَا أَخَذَ اللهُ عَلَيْهِنَّ » .... المعجم الكبير للطبراني رقم ۴۱۷ ، و رقم ۴۵۶ .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ {إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ} [ الممتحنة آية ۱۰ ] رقم الحديث ۴۸۹۱ ، و رقم الحديث ۲۷۱۳ كِتَابُ الشُّرُوطِ بَابُ مَا يَجُوزُ مِنَ الشُّرُوطِ فِي الْإِسْلَامِ وَالْأَحْكَامِ وَالْمُبَايَعَةِ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۶۳۲۶ ، مشكوة المصابيح رقم الحديث ۴۰۴۵(۴) باب الصلح الفصل الاول ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۸۸۳ ، السنن الصغير للبيهقي رقم الحديث ۲۹۵۶ ، مسند البزار رقم الحديث ۱۱۰ .

تانه په دې شيانو باندې بيعت واخيست.

محترمو مسلمانانو ! چې كله رسول الله ﷺ د بيعت په وخت د زنانه سره لاس نه دي ملاؤ كړي نو دا غښتلی دليل دی په دې باندې چې د بل هيڅ مسلمان د پاره دا جائز نه دي چې د پردی ښځې سره لاس ملاؤ كړي ، يا بلا ضرورت د هغې د بدن څه حصه مسه كړي . (۱)

## په ځوانه ښځه باندې سلام اچول او د سلام جواب وركول مكروه دي

په پردی ځوانه ښځه باندې سلام اچول ، يا د سلام جواب وركولو كې د فتنې يره ده (په زړه كې ورسره غلط خيالات پيدا كيږي ) نو لهذا دا مكروه دی . البته په بوډۍ ښځه باندې سلام اچول يا د سلام جواب وركولو كې دا يره نشته نو جائز دی .

همدارنګې ځوانې ښځې د پاره هم په پردي سړي باندې سلام اچول مكروه دی ، خو كه ځوانه پردی ښځه په سړي باندې سلام واچوي نو سړی به په خله باندې ښكاره جواب نه وركوي ، بلكه په زړه كې به جواب وركړي .

او كه بوډۍ ښځه په سړي سلام واچوي نو په خله باندې ددې جواب وركولې شي . (۲)

---

(۱) وَكَوْنُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُصَافِحُ النِّسَاءَ وَقْتَ الْبَيْعَةِ دَلِيلٌ وَاضِحٌ عَلَى أَنَّ الرَّجُلَ لَا يُصَافِحُ الْمَرْأَةَ . وَلَا يَمَسُّ شَيْءٌ مِنْ بَدَنِهِ شَيْئًا مِنْ بَدَنِهَا ؛ لِأَنَّ أَخَفَّ أَنْوَاعِ اللَّمْسِ الْمُصَافَحَةُ . فَإِذَا امْتَنَعَ مِنْهَا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْوَقْتِ الَّذِي يَقْتَضِيهَا وَهُوَ وَقْتُ الْمُبَايَعَةِ دَلَّ ذٰلِكَ عَلَى أَنَّهَا لَا تَجُوزُ. وَلَيْسَ لِأَحَدٍ مُخَالَفَتُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . لِأَنَّهُ هُوَ الْمُشَرِّعُ لِأُمَّتِهِ بِأَقْوَالِهِ وَ أَفْعَالِهِ وَتَقْرِيرِهِ اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ٦ ص ٢٥٦ سورة الاحزاب في تشريح آية ٥٣ .

(۲) قال الحصكفي رَحِمَهُ اللهُ : وَلَا يُكَلِّمُ الْأَجْنَبِيَّةَ إِلَّا عَجُوزًا عَطَسَتْ أَوْ سَلَّمَتْ فَيُشَمِّتُهَا لَا يَرُدُّ السَّلَامَ عَلَيْهَا وَإِلَّا لَا . الدرالمختار قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ : (قَوْلُهُ : وَإِلَّا لَا ، أَيْ وَإِلَّا تَكُنْ عَجُوزًا بَلْ شَابَّةً لَا يُشَمِّتُهَا. وَلَا يَرُدُّ السَّلَامَ بِلِسَانِهِ ... وَإِذَا سَلَّمَتِ الْمَرْأَةُ الْأَجْنَبِيَّةُ عَلَى رَجُلٍ إِنْ كَانَتْ عَجُوزًا رَدَّ الرَّجُلُ _ عَلَيْهَا السَّلَامُ _ بِلِسَانِهِ بِصَوْتٍ تَسْمَعُ . وَإِنْ كَانَتْ شَابَّةً رَدَّ عَلَيْهَا فِي نَفْسِهِ. وَكَذَا الرَّجُلُ إِذَا سَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ أَجْنَبِيَّةٍ فَالْجَوَابُ فِيهِ عَلَى الْعَكْسِ . رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ٣٦٩ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ٨ ص ١١٤ ، وص ٧٣ ، ٧٤ ، وص ١٥٢ ، وص ١٦٠ سلام ومصافحہ . كشف البارى كتاب الاستيذان ص ٦٠ . مسائل رفعت قاسمى ج٦ ص ٧٨ مسائل آداب و ملاقات

## په هسپتال کې نرسانو ښځو له د سړو په وارډ کې کار کول ندي په کار

په بعضې هسپتالونو کې نَرسانې ښځې د سړو په وارډ کې کار کوي ، نو اګر چې د مريض تيمارداري او خدمت ښه خبره ده خو د ښځو د پاره د پرَدو سړو د وړاندې بې پرَدګي لوي جُرم دی.

په ښځو باندې الله تعالی د رِزق ذمه داري نده ايخی ، دوی ته په کار دي چې په کور کې د خپلو والدينو يا خپل خاوند خدمت اوکړي.

که د څه مجبوريت په وجه کار کوي نو بيا دې د ښځو په وارډ کې د مريضانو خدمت کوي، د سړو وارډ د پاره دې سړي مقرر شي.

په *آپ کے مسائل اور اُن کا حل* کې ذکر دي: فقهاء کرامو يوه مسئله ليکلی ددينه نه به تاسو ته په خپله معلومه شي چې نَرسانو ښځو ته د سړو په وارډ کې کار کول څنګه دي؟

هغه مسئله داده: که يو کس وفات شي ، او ده ته د غُسل ورکولو د پاره په دې ځای څوک سړې موجود نه وي بلکه صرف پرَدی ښځې وي نو دې ښځو ته دا جائز ندي چې دې سړي ته غُسل ورکړي ، بلکه دا ښځې به د لاس نه کپړه تاؤ کړي او ده له به تيمّم اُووهي.

البته که دد دې سړي خپله ښځه وه نو بيا ورته دا غُسل ورکولې شي.(۱)

نو چې کله ښځو ته دا جائز ندي چې پرَدي سړي ته غُسل ورکړي نو بيا به ورته په هسپتال کې د هغه خدمت کول څنګه جائز شي؟ حالانکه په خدمت کولو کې کله د سړي عورت ته هم د لاس وَرَوړلو ضرورت پېښيږي، نو دا به څنګه جائز شي؟

په اصل کې د نَرسانو دا موجوده نِظام د غير مُسلمو رِواج دی ، په اسلامي شريعت کې د سړو د خدمت د پاره سړي مقررول په کار دي ، او د ښځو خدمت د پاره ښځې مقررول په کار دي.

(۱) وَلَوْ مَاتَ رَجُلٌ بَيْنَ النِّسَاءِ تُيَمِّمُهُ ذَاتُ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ أَوْ زَوْجَتُهُ أَوْ أَمَتُهُ بِغَيْرِ ثَوْبٍ وَغَيْرُهَا بِثَوْبٍ ..... وَيَجُوزُ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تُغَسِّلَ زَوْجَهَا الفتاوى الهندية ج۱ ص ۱۶۰ كِتَابُ الصَّلَاةِ الْبَابُ الْحَادِي وَالْعِشْرُونَ فِي الْجَنَائِزِ الْفَصْلُ الثَّانِي فِي غُسْلِ الْمَيِّتِ

( او که څوک دا وايي چې کله ښځه د سړو په وارډ کې خدمت کوي نو دا د ثواب کار دی ، نو ددې جواب دادی : ) د ثواب کار هغه دی چې هغې ته الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ د ثواب کار ویلې وي ، پردۍ ښځو د پاره د پردو سړو خدمت کول د ثواب کار ندی . (۱)

لهذا په ښځه باندې د پردو سړو خدمت کول جائز ندی . (۲)

## د ښځو او سړو یوځای نوکري کول

الله تعالی محنت او مزدوري د سړو په ذِمه باندې اچولې ده چې دا به د ژوند ضروريات پوره کوي ، او په ښځو باندې يې د کور کارونه او بچو تربيت لازم کړی ، ليکن نن صبا ښځو ته د آزادۍ او مساوات په نوم باندې دُهوکه ورکړې شوی او دوی يې بازار او دَفترونو ته راويستلي ، چې ددې په وجه د سړو او ښځو اِختلاط زيات شوی ، ډير فسادات او خرابۍ پيدا شوي ، او خانداني نِظام پوره تباه شوی .

لهذا زمونږ د مسلمانانو دا مذهبي او قومي فريضه ده چې د سړو او ښځو د اِختلاط نه ځان اُوساتو ، که دا اِختلاط د تعليم په ميدان کې وي ، يا په نوکرۍ کې وي او يا په نورو ځايونو کې وي .

ښځو ته په کار دي چې د کور کارونه کوي ، او بغير ضرورته نوکري اونکړي .

خو که بيا هم يوه ښځه د څه مجبوريت په وجه نوکري کوي نو د هغې د پاره د يو څو شرائطو لحاظ ساتل ضروري دی :

اول : کله چې د کور نه د نوکرۍ د پاره ( دفتر وغيره ته ) اُوځي نو په مکمل شرعي پَرده کې به اُوځي .

---

(۱) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ٦٦ ۲ رد .

(۲) وَلَا تَمَسُّ شَيْئًا مِنْهُ إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا شَابًّا فِي حَدِّ الشَّهْوَةِ وَإِنْ أَمِنَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا الشَّهْوَةَ . الفتاوى الهندية ج ٥ ص ٣٢٧ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ الثَّامِن فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ :

وَلَا يَمَسُّ الرَّجُلُ الْمَرْأَةَ وَهُمَا شَابَّانِ . سَوَاءٌ كَانَتِ الصَّغِيرَةُ مَاسَّةً أَوِ الْبَالِغُ مَاسًّا . البحر الرائق شرح كنز الدقائق ج ٨ ص ٢٢٦ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ فُرُوعٌ تَتَعَلَّقُ بِالنِّسَاءِ تَقْبِيلُ الرَّجُلِ وَمُعَانَقَتُهُ فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ . آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۸۰ ، وص ۹۰ ۲ رد .

دويم: په داسې ځای کې به نوکري کوي چې هلته صرف ښځې وي، د پردو سړو سره به د بې ځايه اختلاط، خبرو او خاصکر د خلوت (يو اځې کيدو) نه ډير ځان ساتي.

دريم: کار ته د تللو ته په وخت به د خوشبو استعمالولو او سنګار کولو نه ډير ځان ساتي.

څلورم: د ولي يعنی پلار يا خاوند نه به اجازت اخلي.

که زنانه ددې شرائطو لحاظ ساتي نو بيا ورته نوکري کول جائز ده، ګني ناجائز ده. (١)

نن صبا چې دا ښځې په بينکونو او دفترونو کې بې پردګی حالت کې د پردو سړو سره يو ځای کار کوي نو دا د مغربي تهذيب طريقه ده، اسلام ددې اجازت نه ورکوي. (٢)

## پردۍ ښځه د سړو د دفتر سيکرټره مقررول

په بعضې ځايونو کې د سړو په پرائيوټ دفترونو کې ښځه سيکرټره وي، بيا ورسره د دفتر مالک ټوله ورځ ګپ شپ لږوي، نو ددې حکم دادی چې د پردۍ ښځې سره ځانله کيدل، يا ورسره ګپ شپ لږول شرعًا حرام دي. (٣)

لهذا د سړو د دفتر د پاره ښځه سيکرټره مقررول ناجائز دي. (۴)

---

(١) ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَى ﴾ الاحزاب آية ٣٣.

ترجمه: او تاسو په کورونو کې اوسئ، او د رومبي جاهليت (د زمانې) په شان ښائست مه ښکاره کوئ.

نبي عليه السلام فرمايي: لَيْسَ لِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ فِي الْخُرُوجِ إِلَّا مُضْطَرَّةً. مجمع الزوائد ومنبع الفوائد بَابُ الْخُرُوجِ إِلَى الْعِيدِ رقم ٣٢٢١، كنزالعمال كتاب النكاح الباب السادس في ترهيبات وترغيبات تختص بالنساء رقم ۴۵٠٦٢.

زنانه ؤ د پاره بهر ته د وتلو حق نشته مګر کله چې مجبوره شي. فتاوى عثمانيه ج ١٠ ص ٩٧.

(٢) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ٨ ص ٨٣ پرده تخريج شده ايډيشن.

(٣) اَلْخَلْوَةُ بِالْأَجْنَبِيَّةِ حَرَامٌ ..... وَلَا يُكَلِّمُ الْأَجْنَبِيَّةَ إِلَّا عَجُوزًا. الدرالمختار قال ابن عابدين رحمه الله: وَإِلَّا تَكُنْ عَجُوزًا بَلْ شَابَّةً لَا يُشَمِّتُهَا. رد المحتار على الدر المختار ج ٦ ص ٣٦٨ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ.

(۴) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ٨ ص ٩٨ پرده.

## په کوم واده کې چې د سړو او ښځو اختلاط وي په هغې کې د شرکت حکم

په کوم واده کې چې د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط وي، د يو بل نه پرده نه کوي، بيا خاصکر د نکريزي وړلو په وخت کې خو پردي سړي او پردۍ ښځې يو ځای وي او په هغې کې ډول هم وي نو په داسې پروګرام کې د ښځې د پاره شِرکت کول حرام دی، که په نه ورتللو سره د واده کور واله خفه کيدل نو خفه دې شي، تر دې چې که ټوله دُنيا ددې نه خفه کيږي نو خفه دې شي ، ځکه د الله او رسول په نافرمانۍ کې د بل هيڅ تابعداري جائز نده . (۱)

(۱) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ . رواه في شرح السنة، كتاب الإمَارَة والقَضَاء الفَصْل الثَّانِي رقم الحديث ٣٦٩٦ (٣٦). آپ کے مسائل اور ان کا حل ج ۸ ص ۱۰۹

## د اختلاط د حرمت په باره کي د مختلفو علماء کرامو اقوال

د پردو سړو او پردو ښځو د اختلاط (ګډون) د حرمت په باره کې درته د مختلفو علماء کرامو اقوال رانقل کوم ، چې په دې سره به تاسو ته دا معلومه شي چې اختلاط د ټولو علماؤ په نزد باندې حرام دی .

۱ . امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ به د پردو سړو او پردو ښځو د اختلاط نه منع کوله . (۱)

۲ . امام مجاهد ، حسن بصري ، او ابن جوزي رحمهم الله به د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط ته بدعت ویل . (۲)

۳ . حسین بن حسن حلیمي رَحِمَهُ اللهُ د دې آیت ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا . (۳) ﴾ په تشریح کې فرمايي :

په دې آیت کې دا هم داخل دي چې انسان به خپله ښځه او خپله لور د پردو سړو سره د ګډون ، د هغوی سره د خبرو ، او د هغوی سره د ځانله کیدلو نه منع کوي . (۴)

---

(۱) إمامُ الحنفيّة في وقته ابو جعفر احمد بن محمد الطحاوي الحنيفي منع من الاختلاط . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۵۹۸ .

(۲) قال إمام التفسير مجاهد رَحِمَهُ اللهُ ببدعة اجتماع الرجال بالنساء رواه ابن سعد في الطبقات ۸ ۱۵۷ .

قال الحسن البصري رَحِمَهُ اللهُ : إِنَّ اجْتِمَاعَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ لَبِدْعَةٌ تحذير الخواص من اكاذيب القصص لمولانا جلال الدين سيوطي ج ۱ ص ۲۲۷ .

قال ابن الجوزي رَحِمَهُ اللهُ : فَأَمَّا مَا أحدث القصاصُ مِنْ جَمع النِّسَاءِ وَالرِّجَالِ فَإِنَّهُ مِن البدعِ الَّتِي تجْرِيْ فِيهَا الْعَجَائِب. مِنْ اِخْتِلَاطِ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ. وَرفع النِّسَاءِ أصواتهن بالصياح والنواح إلى غير ذَلِكَ كشف المشكل من حديث الصحيحين لابن الجوزي ج ۳ ص ۱۴۶ .

(۳) التحريم آية ۶ . ترجمه : اې مؤمنانو ! تاسو خپل ځانونه او خپل کورواله ( د جهنم ) د اور نه وساتئ .

(۴) قَالَ الْحَلِيمِيُّ رَحِمَهُ اللهُ .... فَدَخَلَ فِي جُمْلَةِ ذَلِكَ أَنْ يَحْمِيَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ وَبِنْتَهُ مُخَالَطَةَ الرِّجَالِ وَمُحَادَثَتَهُمْ وَالْخَلْوَةَ بِهِمْ . شعب الايمان ج ۱۳ ص ۲۶۰ في لشرح حديث ۱۰۳۰۷ .

٤ . د يَمن مشهور عالِم محمد بن سالم بيحاوي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې په بازارونو ، كارخانو ، جُماتونو ، او دَفترونو كې د سړو او ښځو اختلاط حرام دی ، او څوک چې ددې د جواز قول كوي نو دا د عِلم سره خيانت كوي ، په دِين باندې دروغ جوړوي ، او د ښځو د ګمراه كولو كوشش كوي . (١)

٥ . همداسې خبره محمد امين شنقيطي رَحِمَهُ اللهُ هم كړې چې اسلام د سړو او ښځو د اختلاط نه سخته منع كړې . (٢)

٦ . شيخ عبدالله بن حميد رَحِمَهُ اللهُ په خپله فتاوىٰ كې د ښځو د پاره د پَردو سړو د وړاندې خپل مخ ښكاره كول ، او اِختلاط كول حرام ګرځولي دي . (٣)

٧ . شيخ صالح بن فوزان رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د سړو او ښځو په مينځ كې داسې اِختلاط چې په هغې سره فساد پيدا كيږي دا په كتابُ الله ، سُنتِ رسول ، او اِجماع سره حرام دی . (٤)

---

(١) قال محمد بن سالم البيحاني رَحِمَهُ اللهُ [ من علماء اليمن ]: حرامٌ على النساء الاختلاط بالرّجال في الأسواق والمصانع والمساجد والمعاهد و دواوين الحكومة . وإن قال أدعياء العلم وكذبة المصلحين بخلاف ذلك فإنّما هي الخيانة في أمانة العلم ، والكذب في التجديد والتّضليل بالمرأة المسكينة . اللمع على كتاب إصلاح المجتمع ص ٢٤٦ .

(٢) قال الشيخ محمد الأمين الشنقيطي رَحِمَهُ اللهُ : إنّ مِن الغريب أنْ يوجدَ في أمة مسلمة عربية اختلاط الجنسين في الجامعات والمدارس مع أنّ دينَ الإسلام الذي شرعه خالق السموات والأرض على لسان سيّد الخلق صلى الله عليه وسلم يمنع من ذلك منعًا باتًا . حكم الإسلام في الاختلاط جمعية الإصلاح ص ٣٢ .

(٣) وقد جزم بتحريم اختلاط النّساء بالرّجال الشيخ عبد الله بن حميد في فتاويه بتحريم كشف وجوه النساء بحضرة الرجال الأجانب والاختلاط بهم ، وحلف على ذلك . رقم (٢٣٠ ، ٢٣٩ ، ٢٤٠ ، ٢٤٥ ، ٢٤٧ ، ٢٥٠ ) . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ٦٢٦ .

(٤) قال الشيخ صالح بن فوزان الفوزان رَحِمَهُ اللهُ : الاختلاطُ بين الرّجال والنّساء على وجه يثير الفتنة أمرٌ محرّمٌ بالكتابِ والسنّة والإجماع . من مقال له بعنوان: على رسلكم ايها الصحفيون .

۸ . شيخ فريح بن صالح رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : د پردو سړو د پردو ښځو سره اختلاط داسې د فساد نه ډک عمل دی چې په دې سره اخلاق خرابيږي ، حياء ختميږي ، اولاد ضائع کيږي ، د انفرادي ژوند او معاشرې د پاره د تباهۍ سبب ګرځي .

همدارنګې په اختلاط سره د ښځې نه د خپلو بچو او خپل خاوند حقوق هم ضائع کيږي ، په ناجائزو کارونو کې اخته کيږي ، د هر چا د پاره د لوبو سامان ګرځي ، چې په دې سره د دې عزت او دين ختميږي ، او آخري انجام يې ډير خراب وي . (۱)

۹ . شيخ محمد جميل فرمايي : په عامو ناجائزو کارونو کې سندرې اوريدل ، سندرې ويل ، او د سړو او ښځو اختلاط هم دی ، اګر چې دا د زنانه د خپل تره ځوي ، يا د ترور ځوي او يا د لېور سره وي دا هم ناجائز دی . (۲)

۱۰ . د عراق مفتي " نجم الدين واعظ " فرمايي : د پردو سړو او پردو ښځو د اختلاط جواز هيڅ دين نه ورکوي ، بيا خاصکر د اسلام دين خو قطعًا د دې جواز نه ورکوي . (۳)

---

(۱) قال الشيخ فريح بن صالح البهلال رَحِمَهُ اللَّهُ : اختلاطُ النساء بالرّجال في أعمالهم وخلوتهم بهنّ من المفاسد المدمرة للأخلاق والحياء ، وضياع الأولاد ، المنذر بالخطر المحدق بالفرد والمجتمع . الاستيعاب فيما قيل في الحجاب ص ۲۴۹ .

وقال أيضًا : وذلك أنّ المرأة المشاركة للرّجال ضاعتْ وأضاعت رعاية أولادها و زوجها وبيتها . وفسدتْ وأفسدت الرجال ، و ركبت ما هبّ و دبّ من المنكرات والفواحش ، وأصبحتْ متعة وسلعة لكلّ ساقطٍ ولاقطٍ ، وحينئذٍ ضاع حياؤها ، و أنوثتها ، وكرامتها ، و دينها ، وكان عاقبة أمرها خسرًا . الاستيعاب فيما قيل في الحجاب ص ۲٦٦ .

(۲) قال الشيخ محمد جميل زينو رَحِمَهُ اللَّهُ [ شامي ، يسكن بمكة معاصر ] : مِن المنكرات العامّة : الاستماع إلى الموسيقى ، أو الأغاني الخليعة ، واختلاط الرّجال بالنساء من غير المحارم ، ولو مِنَ الأقارب كابن العمّ والخالة وأخ الزوج وغيره . توجيهات إسلامية لإصلاح الفرد والمجتمع

(۳) قال نجمُ الدّين الواعظ [ مفتي الديار العراقية ] : اختلاطُ الذّكور بالإناث لا يجيزه دِينٌ مِنَ الأديان ، ولا سيما دِين الإسلام . حكم الإسلام في الاختلاط جمعية الإصلاح ص ۴۲ .

**۱۱** . د قطر مفتي " شيخ عبدالله آل محمود رَحِمَهُ اللهُ " فرمايي : د سړو او ښځو اِختلاط بَدترين خُویٔ دی ، دا قطعًا د مسلمانانو خُویٔ ندی ، بلکه د جاهليت د زمانې د عربو خُویٔ هم دا نهٔ و . (۱)

**۱۲** . د کويت عالِم " محمد بن سليمان جراح رَحِمَهُ اللهُ " فرمايي : د پَردو سړو او پَردو ښځو اِختلاط د کافرانو نظريه ده . دا د حِس ، عقل ، آسماني وَحي ، او آسماني شريعت نه مخالفه نظريه ده . (۲)

**۱۳** . شيخ محمد بن عثيمين رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : زمونږ او د اسلام دُشمنان ، بلکه د الله او رسول دُشمنان " چې يهود نصارٰی مشرکين او د دوی ملګري دي " دوی پوره کوشش کوي چې مسلمانان د ښځو په ذريعه په فِتنه کې واچوي .

دغه وجه ده چې دوی په مختلفو طريقو سره مسلمانان بې حيايَی ، د سړو او ښځو اِختلاط ، او بَداخلاقی طرف ته رابلي . (۳)

---

(۱) وقال الشيخ عبد الله آل محمود مفتي دولة قطر في زمانه : إنّ الاختلاط مِن مساوئ الأخلاق ، وليس من خلق أهل الإسلام في شيء ، بل ولا مِن خلق العرب في جاهليتهم . الاختلاط وما ينجم عنه من مساوئ الأخلاق ص ۹ .

(۲) وقال محمد بن سليمان الجراح [ من علماء الكويت ] : إعلم أنّ فكرةَ الاختلاط فكرة كافرة خاطئة خاسئة المخالفة لِلحسّ والعقلِ والوحي السماوي وتشريع الخالق البارئ . حكم الإسلام في الاختلاط ص ۸ .

(۳) وقال الشيخ محمد بن عثيمين رَحِمَهُ اللهُ : ولهذا كان أعداؤنا أعداء الإسلام بل أعداء الله و رسوله مِن اليهود والنصارى والمشركين والشيوعيين وأشباههم وأذنابهم وأتباعهم . كلّ هؤلاء يحرصون غاية الحرص على أنْ يفتنوا المسلمين بالنساء . يدعون إلى التبرج . يدعون إلى اختلاط المرأة بالرجل . يدعون إلى التفسخ في الأخلاق . يدعون إلى ذلك بألسنتهم ، وأقلامهم ، وأعمالهم ... شرح رياض الصالحين ۱ / ۹۵ .

وقال العلامة ابن عثيمين رَحِمَهُ اللهُ أيضًا : يجبُ علينا أنْ نبصِّر هؤلاء القوم الذين يدعون إلى سفور المرأة وتبرجها ومخالطتها للرجال . وأنْ نبين لهم أن هذا هدم للأخلاق والأديان والمستقبل ؛ لأنّ الشعوب إذا أصبحتْ بهيمية ليس لها إلّا شهوة الفرج ، وملء البطن . أصبحتْ لا قيمة لها . وأصبحتْ ذليلة إما للدنيا . وإما لجبابرة الخلق . شرح صحيح البخاري لابن عثيمين ، ۴ / ۴۴۷ .

١٤ . محمد بن سحنون مالكي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : زه دا بَده ګڼم چې سړی جینکو ته تعلیم ورکوي ، او جینکی دې هم د هلکانو سره ګډون نه کوي ، ځکه په دې کې د دوی د پاره لوي فساد دی . (١)

١٥ . د سعودي مفتي " شیخ عبدالعزیز بن باز رَحِمَهُ اللَّهُ " فرمايي : د تعليم په دَوران کې د طالبانو او طالباتو ، مُدرِّسینو او مُدرِّساتو اختلاط حرام دی ؛ ځکه دا د فِتنې پیدا کیدلو ، شهوت راپاریدلو ، او زِنا کې د اَخته کیدلو سبب دی .
څوک چې ښځې د سړو میدان ته د کار د پاره رابلي او په دې سره یيا د پَردو سړو او پَردو ښځو اِختلاط راشي نو دا ډیر خطرناک کار دی ، ددې اَنجام ډیر بد دی ، او دا د نصوصِ شرعیه وُ سره ټکراوُ دی . (٢)

١٦ . محمد علي صابوني رَحِمَهُ اللَّهُ په خپل تفسیر کې لیکلي چې الله تعالی مسلمانان د بې حیایۍ او ګناهونو نه یَرولي دي ، دوی یې د زِنا او د زِنا د ټولو اَسبابو نه منع کړي دي چې هغه : پَردو ښځو ته کتل ، د هغوی سره اِختلاط کول ، او ښځو د پاره خپل عورت او

---

(١) قال محمد بن سحنون المالكي ﷺ : وأكره للمعلِّم أن يعلّم الجواري، ولا يختلِطْنَ مع الغلمان؛ لأنّ في ذلك فساداً لهُنّ . الجامع في كتب آداب المعلمين ص ١٣٦.

همداسې قول علي محمد بن محمد قيرواني رَحِمَهُ اللَّهُ هم کړي دی : قال عليّ بن محمد القيرواني المالكي رَحِمَهُ اللَّهُ بكراهة تعليم المعلِّم للجواري واختلاطهنّ بالغلمان . الجامع في كتب آداب المعلمين ص ٣٢٤.

(٢) قال الشيخ عبد العزيز بن باز [ مفتي المملكة العربية السعودية ] : وبكلّ حالٍ فاختلاطُ البنينَ والبناتِ في المراحل الابتدائية منكرٌ لا يجوز فعله لما يترتّب عليه من أنواع الشرور . مجموع فتاوى العلامة عبد العزيز بن باز رحمه الله ج ٥ ص ٢٣٤ .

وقال ايضا : فإنّ الدعوةَ إلى نزول المرأة للعَمَل في ميدانِ الرّجال المؤدي إلى الاختلاط سواءٌ كان ذلك على جهة التّصريح أو التّلويح بحجة أنّ ذلك من مقتضيات العصر ومتطلبات الحضارة أمرٌ خطيرٌ جدا له تبعاته الخطيرة، وثمراته المرة، وعواقبه الوخيمة، رغم مصادمته للنصوص الشرعية التي تأمر المرأة بالقرار في بيتها والقيام بالأعمال التي تخصها في بيتها ونحوه. مجموع فتاوى العلامة عبد العزيز بن باز رحمه الله ج ١ ص ٤١٨

خطر مشاركة المرأة للرجل في ميدان عمله .

زِينت ښکاره کول دي. (۱)

**۱۷**. علامه ابن رجب حنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې د ښځو د پاره د سړو نه تميیز (جدا كيدل) لازم دی ، ځکه د سړو او ښځو په اِختلاط کې دا يَره ده چې انسان په ډيرو مفاسدو کې واقع شي. (۲)

**۱۸** . امام ماوردي رَحِمَهُ اللَّهُ ليکلي : ښځه د سړو سره د اِختلاط نه منع شوی او دیته دا حکم شوی چې په کور کې اُووسيږي (بغير ضرورته بهر را اُو نه اُوځي). (۳)

**۱۹**. د سعودي مفتي "شيخ محمد بن ابراهيم رَحِمَهُ اللَّهُ " فرمايي چې د ښځو او سړو اختلاط داسې غټ ناجائز کار دی چې ټولو خلقو ته دديٰ بَدي معلومه ده. (۴)

**۲۰** . علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : د پرَدو سړو او پرَدو ښځو اِختلاط په ټولو ناجائزو کارونو کې غټ ناجائز کار دی ، تر دې چې بعضې حيوانات هم دا اختلاط نه خوَښوي ، نو انسانانو ته خو په طريقِ اولٰی باندې ددینه ځان ساتل په کار دي. (۵)

---

(۱) قال محمد علي الصابوني الشامي رَحِمَهُ اللَّهُ : حذر الله جلّ ثناؤه من مقارفة الفواحش، وارتكاب الموبقات، فنهى عن الزنا، و دواعيه القريبة والبعيدة، من النظر إلى النساء، والاختلاط بهنّ، وكشف العورات، وإبداء الزينة . تفسير آيات الأحكام، الصابوني، ۲/ ۱۸۱.

(۲) قال ابن رجب الحنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ : وإنما المشروع تميز النساء عن الرجال جملة ؛ فإن اختلاطهن بالرجال يخشى منهُ وقوع المفاسد . فتح الباري لابن رجب الحنبلي ج ۲ ص ۱۴۲ باب شهودِ الحائضِ العيدينِ ودعوةَ المسلمينَ ويعتزلنَ المصلى.

(۳) قال الماوردي الشافعي رَحِمَهُ اللَّهُ : وَالْمَرْأَةُ مَنْهِيَّةٌ عَنِ الإِخْتِلَاطِ بِالرِّجَالِ مَأْمُورَةٌ بِلُزُومِ الْمَنْزِلِ ، وَصَلَاتُهَا فِيهِ أَفْضَلُ . الحاوي الكبير في فقه مذهب الإمام الشافعي للماوردي ج ۲ ص ۵۱ .

(۴) وأمّا اختلاط النساء بالرّجال وحصول المفاسد فهذا من أكبر المنكرات الّتي يتعيّن إنكارها على الجميع . فتاوى ورسائل سماحة الشيخ محمد بن إبراهيم بن عبد اللطيف آل الشيخ ج ۱۰ ص ۴۹ الواجب في مسألة الاختلاط .

(۵) قال ابن تيمية رَحِمَهُ اللَّهُ : وكذلك معاشرةُ الرجل الأجنبيِّ للنسوةِ ومخالطتُهنَّ مِن أعظم المنكرات الّتي تأباها بعضُ البهائم فضلًا عن بني آدم . جامع المسائل لابن تيمية ج ۵ ص ۲۱۹ .

۲۱ . علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ ليکلي : په اسلامي حاکم باندې دا واجب دي چې په بازارونو او نورو ځايونو کې سړي او ښځې د اختلاط نه منع کړي ....

ځکه اميرُ المؤمنين حضرت عُمر ﷺ به هم ښځې د سړو په لار کې د تللو ، او د سړو سره د اختلاط نه منع کولی . نو اوس هم د مسلمانانو په خليفه باندې دا لازم دي چې د حضرت عُمر ﷺ اقتداء اوکړي ...

علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ دا هم ليکلي: په دې کې هيڅ شک نشته چې د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط د ټولو شرونو جَرړه ده ، دا د الله ﷻ د عذاب نازليدو سبب دی ، دا د بې حيائۍ او زنا زياتيدو سبب دی .

کله چې د حضرت موسیٰ عليه السلام په لښکر کې زناکارې ښځې ورننوتې ، د سړو او ښځو اختلاط راغی ، ددې په وجه يو کس زنا اوکړه نو الله تعالی د حضرت موسیٰ عليه السلام په قوم باندې د طاعون بيماري راوسته ، په يوه ورځ کې ورنه اويا زره ( ۷۰۰۰۰ ) کسان په دې بيمارۍ وفات شو ( دا واقعه په تفاسيرو کې په تفصيل سره ذکر ده ) .

بهر حال کله چې د ښځو او سړو اختلاط راشي او ښځو خپل زينت ښکاره کړې وي نو خامخا د زنا سبب جوړيږي ، او دا يقيني خبره ده چې زنا د زياتو مرګونو د پاره لوی سبب دی ، که چيرته د دُنيا حاکمانو ته دا معلومه شي چې ددې اختلاط په وجه په دُنيا او رعيت کې فساد پيدا کيږي نو دوی به دا په ډيرې سختۍ سره منع کړي . (۱)

---

(۱) قال ابن قيم الجوزية رَحِمَهُ اللهُ : إِنَّ وَلِيَّ الأَمْرِ يَجِبُ عَلَيْهِ أَنْ يَمْنَعَ اخْتِلَاطَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ فِي الأَسْوَاقِ، وَالفُرَجِ، وَمَجَامِعِ الرِّجَالِ ...... وَقَدْ مَنَعَ أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ النِّسَاءَ مِنَ الْمَشْيِ فِيْ طَرِيْقِ الرِّجَالِ، وَالإِخْتِلَاطِ بِهِمْ فِي الطَّرِيْقِ فَعَلَى وَلِيِّ الأَمْرِ أَنْ يَقْتَدِيَ بِهِ فِي ذٰلِكَ ..... وَلَا رَيْبَ أَنَّ تَمْكِيْنَ النِّسَاءِ مِنِ اخْتِلَاطِهِنَّ بِالرِّجَالِ: أَصْلُ كُلِّ بَلِيَّةٍ وَشَرٍّ، وَهُوَ مِنْ أَعْظَمِ أَسْبَابِ نُزُوْلِ الْعُقُوْبَاتِ الْعَامَّةِ، كَمَا أَنَّهُ مِنْ أَسْبَابِ فَسَادِ أُمُوْرِ الْعَامَّةِ وَالْخَاصَّةِ، وَاخْتِلَاطُ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ سَبَبٌ لِكَثْرَةِ الْفَوَاحِشِ وَالزِّنَا، وَهُوَ مِنْ أَسْبَابِ الْمَوْتِ الْعَامِّ، وَالطَّوَاعِيْنِ الْمُتَّصِلَةِ، وَلَمَّا اخْتَلَطَ الْبَغَايَا بِعَسْكَرِ مُوْسٰى عليه السلام ، وَفَشَتْ فِيْهِمُ الْفَاحِشَةُ أَرْسَلَ اللهُ إِلَيْهِمُ الطَّاعُوْنَ، فَمَاتَ فِيْ يَوْمٍ وَاحِدٍ سَبْعُوْنَ أَلْفًا، وَالْقِصَّةُ مَشْهُوْرَةٌ فِيْ كُتُبِ التَّفَاسِيْرِ. فَمِنْ أَعْظَمِ أَسْبَابِ الْمَوْتِ الْعَامِّ: كَثْرَةُ الزِّنَا، بِسَبَبِ تَمْكِيْنِ النِّسَاءِ مِنِ اخْتِلَاطِهِنَّ بِالرِّجَالِ، وَالْمَشْيِ بَيْنَهُمْ مُتَبَرِّجَاتٍ ←←←←

۲۲ . علامه کاساني حنفي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې په ښځه باندې د جُمعې او جَمعې مونځ واجب ندی، او عِلت يې دادی چې دا د خاوند په خِدمت کې مشغوله وي ، بل دا چې ددې د پاره د سړو مجلس ته وتل منع دي ، ځکه ددې وتل د فِتنې سبب دی . (۱)

۲۳ . همداسې خبره ابن نجار حنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ هم کړی چې په ښځه باندې د جُمعې مونځ ځکه واجب ندی چې دیته په وتلو او پردو سړو سره اِختلاط کې مشقت دی ، او ډير کرَت دا د فساد سبب گرځي . (۲)

۲۴ . علامه ابن قدامه حنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي : په ښځه باندې د جُمعې او جَمعې مونځ واجب ندی ځکه دا د سړو مجلس ته د راوتلو اَهل نده . (۳)

۲۵ . علامه بدر الدين عيني رَحِمَهُ اللَّهُ د بخاري شريف د يو حديث په تشريح کې ليکلي چې په زَنانهؤ باندې د مړي مقبرې ته وړل او دَفن کول نشته بلکې دا د سړو ذِمه واري ده ؛

---

←←← مُتَجَمِّلَاتٍ. وَلَوْ عَلِمَ أَوْلِيَاءُ الْأَمْرِ مَا فِي ذٰلِكَ مِنْ فَسَادِ الدُّنْيَا وَالرَّعِيَّةِ قَبْلَ الدِّيْنِ لَكَانُوْا أَشَدَّ شَيْءٍ مَنْعًا لِذٰلِكَ. الطرق الحكمية لابن قيم الجوزية ج ۱ ص ۲۳۷ . و ص ۲۳۸ فَصْل فِي اختلاط الرجال بِالنِّسَاءِ فِي الأسواق والفرج ومجامع الرجال.

(۱) وقال الكاساني الحنفيّ رَحِمَهُ اللَّهُ في تعليل عدم وجوب الجُمعة على المرأة : وَأَمَّا الْمَرْأَةُ فَلِأَنَّهَا مَشْغُوْلَةٌ بِخِدْمَةِ الزَّوْجِ . مَمْنُوْعَةٌ عَنِ الْخُرُوْجِ إِلَى مَحَافِلِ الرِّجَالِ لِكَوْنِ الْخُرُوْجِ سَبَبًا لِلْفِتْنَةِ ؛ وَلِهٰذَا لَا جَمَاعَةَ عَلَيْهِنَّ وَلَا جُمُعَةَ عَلَيْهِنَّ أَيْضًا. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع ج ۱ ص ۲۵۸ فَصْلٌ بَيَانُ شَرَائِطِ الْجُمُعَةِ

(۲) قال ابن النجار الفتوحي الحنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ : وأمّا كونُ الجُمعة لا تجب على المرأة ؛ فلأنّ تكليفها بالخروج ومخالطةَ الرجال فيه مشقّة عليها، وربما أدى إلى مفسدة. معونة اولي النهى ۲/ ۴۷۰.

(۳) قال ابن قدامة الحنبلي رَحِمَهُ اللَّهُ : ... وَالذُّكُوْرِيَّةُ شَرْطٌ لِوُجُوْبِ الْجُمُعَةِ وَانْعِقَادِهَا. لِأَنَّ الْجُمُعَةَ يَجْتَمِعُ لَهَا الرِّجَالُ، وَالْمَرْأَةُ لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِ الْحُضُوْرِ فِي مَجَامِعِ الرِّجَالِ، وَلٰكِنَّهَا تَصِحُّ مِنْهَا لِصِحَّةِ الْجَمَاعَةِ مِنْهَا. المغني لابن قدامة ج ۲ ص ۲۴۳ كِتَابُ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ.

مَسْأَلَةٌ : لَا جُمُعَةَ عَلَى مُسَافِرٍ وَلَا عَبْدٍ وَلَا امْرَأَةٍ .... وَلِأَنَّ الْمَرْأَةَ لَيْسَتْ مِنْ أَهْلِ الْحُضُوْرِ فِي مَجَامِعِ الرِّجَالِ، وَلِذٰلِكَ لَا تَجِبُ عَلَيْهَا جَمَاعَةٌ. المغني لابن قدامة ج ۲ ص ۲۵۰ .

ځکه زنانه کمزوري دي.

بل دا چې که دوی د جنازې په وړلو کې شريکې شي نو د دوی به د سړو سره اختلاط راشي، او دا محل د فتنې او فساد دی.(١)

**٣٦** . همدا سې خبره علامه ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ هم کړی.(٢)

بهر حال، دا مې درته د يو څو علماؤ اقوال صرف د دې د پاره نقل کړل چې تاسو ته دا معلومه شي چې د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط دومره بدترين عمل دی چې د ټولو علماؤ په نزد ناجائز دی.

---

(١) قال بدرُ الدّين العيني الحنفي رَحِمَهُ اللهُ: في شرحه على البخاري: في التعليق على قول البخاري: ( بابُ حَمْلِ الرِّجَالِ الْجِنَازَةَ دُونَ النِّسَاءِ) أَيْ: هٰذَا بَابٌ فِي بَيَانِ حَمْلِ الرِّجَال الْجِنَازَة دونَ حَمْلِ النِّسَاء إِيَّاهَا. لِأَنَّهُ وَرَدَ فِي حَدِيْثٍ أَخْرَجَهُ أَبُوْ يَعلى (عَن أنس رَضِيَ اللهُ عَنهُ. قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ. فَرَأَى نِسْوَةً فَقَالَ: « أَتَحْمِلْنَهُ؟». قُلْنَ: لَا. قَالَ: « أَتَدْفِنَّهُ؟». قُلْنَ: لَا. قَالَ: « فَارْجِعْنَ مَأْزُوْرَاتٍ غَيْرَ مَأْجُوْرَاتٍ». لِأَن الرِّجَال أَقْوٰى لذَلِك وَالنِّسَاء ضعيفاتٌ ومظنّة للانكشاف غَالِبًا. خُصُوصًا إِذا باشرن الْحمل. ولأنّهن إِذا حَمَلْنَهَا مَعَ وجودِ الرِّجَال لوقع اختلاطهن بِالرِّجَالِ. وَهُوَ مَحَلّ الْفِتْنَة ومظنّة الْفساد. عمدة القاري شرح صحيح البخاري ج ٨ ص ١١١ بابُ حَمْلِ الرِّجَالِ الجِنَازَةَ دُونَ النِّسَاءِ

(٢) قال ابن حجر العسقلاني رَحِمَهُ اللهُ: وَنَقَلَ النَّوَوِيُّ فِي شَرْحِ الْمُهَذَّبِ أَنَّهُ لَا خِلَافَ فِي هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ بَيْنَ الْعُلَمَاءِ. وَالسَّبَبُ فِيهِ مَا تَقَدَّمَ. وَلِأَنَّ الْجِنَازَةَ لَا بُدَّ أَن يُشَيِّعَهَا الرِّجَالُ فَلَوْ حَمَلَهَا النِّسَاءُ لَكَانَ ذٰلِكَ ذَرِيْعَةً إِلَى اخْتِلَاطِهِنَّ بِالرِّجَالِ فَيُفْضِيْ إِلَى الْفِتْنَةِ. فتح الباري لابن حجر ج ٢ ص ١٨٢ قَوْلُهُ بَابُ حَمْلِ الرِّجَالِ الْجِنَازَةَ دُونَ النِّسَاءِ

وقال ابن حجر أيضًا: وَفِيْهِ اجْتِنَابُ مَوَاضِعِ التُّهَمِ وَكَرَاهَةُ مُخَالَطَةِ الرِّجَالِ لِلنِّسَاءِ فِي الطُّرُقَاتِ فَضْلًا عَنِ الْبُيُوْتِ. فتح الباري لابن حجر ج ٢ ص ٢٣٦.

# د اختلاط جائز گنړونکو خلقو دلائل او د هغې جوابات

بعضې بې دِینه خلق د پرَدو سړو او پرَدو ښځو د اِختلاط د جواز د پاره څه دلائل او شُبهات پیش کوي ، زه درته د هغوی د دلائلو نه جوابات ذکر کوم :

## د پَردې د فرضیت نه مخکې چې د اختلاط کوم واقعات دي په هغې باندې استدلال صحیح ندی

په دې خبره ځان پوهه کړئ چې کوم خلق د پرَدو سړو او پرَدو ښځو اختلاط جائز گنړي هغوی اکثر د هغه واقعاتو نه اِستدلال کوي چې د پَردې د نُزول نه مخکې وي ، حالانکې د پَردې د فرضیت حکم په پنځم کال د هجرت باندې شوې دی ، ددینه مخکې پَرده فرض نه وه، د پَردې د فرضیت نه پس نبي علیه السلام صرف پنځه کاله ژوندې وُ ، بیا وفات شو .

د پَردې د فرضیت نه مخکې چې د سړو او ښځو د اِختلاط کوم واقعات دي په هغې باندې اِستدلال صحیح ندی .

دا بعضې بې دِینه خلق د پَردې د فرضیت نه مخکې واقعات راخلي او خلقو ته وایي چې : " اوګورئ په دې کې د سړو او ښځو اِختلاط راغلې دی " . حالانکه دا خلقو ته دُهوکه ورکول دي ، ځکه د پنځم هجري کال نه مخکې پَرده فرض نه وه نو په هغې واقعاتو باندې اِستدلال صحیح ندی .

﴾﴾﴾ که چیرته زه (ابو الشمس) هغه ټول واقعات رانقل کړم د کوم نه چې دا بې دِینه خلق اِستدلال کوي او بیا ذ هریو جواب ورکول شروع کړم "چې دا د پَردې د نزول نه مخکې واقعه ده " نو بیا به دا کتاب ډیر غټ شي ، ځکه کله چې نبي علیه السلام ته نبوّت ملاؤ شو د هغه وخت نه تر د پنځم (۵) هجري کال پورې تقریبًا اُوولس (۱۷) کاله زَمانه وه چې په دې وخت کې پَرده فرض نه وه ، نو خامخا ډیر داسې واقعات شته چې د هغې نه دا بې دِینه خلق اِستدلال کوي ﴿﴿﴿.

لهذا تاسو دا خبره په ذِهن کې کینوئ چې کله هم دا بې دِینه خلق د اِختلاط په جواز باندې اِستدلال کوي نو خامخا به دوی د حِجاب د فرضیت نه مخکې واقعه پیش کوي ، ا و دا صحیح ندہ ، دا د دوی دُهوکه ده .

۴

## په جهاد کې د زَنانهؤ د شِرکت نه په اِختلاط باندې اِستدلال صحيح ندی

بعضې خلق د سرو او ښځو په اِختلاط باندې ددينه اِستدلال کوي چې :

" په جهاد کې د نبي عليه السلام سره زَنانه هم شريکې وى چې زَخميانو له به يې پَټى کولى او اُوبه به يې ورکولى " .

نو ددې جواب دادى چې ددې زَنانهؤ سره به خپل مَحارم موجود وو نو د فِتنې يَره نه وه .

دويم جواب دادى چې په دې باندې د ټولو علماؤ اتفاق دى چې په زَنانهؤ باندې جهاد فرض ندى (۱) کومې زَنانه به چې په جهاد کې شريکيدى هغه به د ډير عُمر ( مشرانې ) زَنانه وى ، هغوى به د سړو سره جهاد نه کولو بلکې شاته به يې د زَخميانو پَټى کولى ، يا به يې ورته اُوبه ورکولى . (۲)

---

(۱) قال ابن حزم رَحِمَهُ اللَّهُ : وَاتَّفَقُوا أَنْ لَا جِهَاد فرضًا على امْرَأَةٍ وَلَا على من لم يبلغ وَلَا على مَرِيضٍ لَايَسْتَطِيع وَلَا على فَقير لَا يقدر على زَاد . مراتب الإجماع في العبادات والمعاملات والاعتقادات لابن حزم ج ۱ ص ۱۱۹ قسم الفَيْءِ وَالجهَاد وَالسير .

واتفقوا كذلك أنّ المرأة ومن لم يبلغ، والمريض الذي لا يستطيع القتال. لاجهاد فَرْضًا عليهم .وكذلك الفقير الّذي لا يقدر على زادٍ. لا خِلاف في شيءٍ من ذلك كلِّه. الإنجاد في أبواب الجهاد لمولانا محمد بن عيسى بن اصبغ ج ۱ ص ۵۰ فصلٌ: في صفة من يجب عليه الجهاد ومن لا يجب .

فإذا عُلِمَ أَنّ المرأة لم يفرض عليها الجهاد في سبيل الله، وإنْ كانت ذات شجاعة. عُلِمَ أنّ خروجَ النساء في الغزو ليس فيه اختلاط بالرّجال ، لأنّهن لا يقاتلن معهم. فكلّ الأحاديث الواردة في خروج النساء في الغزو وفي الجهاد في سبيل الله لا يراد بها القتال مع الرّجال .اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ٦٩٨ .

(۲) إنّ كثيرًا من العلماء نصُّوا على أنّ الخارجات من كبيرات السّن، وكرهوا خروج الشابات. وهذا واضح؛ لأنّ الخارجات في عهد الرّسول صلّى الله عليه وسلم في الغالب كُنّ كبيرات في السن، كأمّ سليم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وأمّ عطية رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وغيرهما. وأمّا عمل الخارجات في الغزو: فسقي القوم. ومداواة المرضى ورد الجرحى والقتلى. كما دلّت الأحاديث السابقة على هذا. وهذا لا يلزم فيه الاختلاط بغير محارمهنّ.

قال النووي: « وَفِي هٰذَا الحَدِيثِ اِخْتِلَاطُ النِّسَاءِ فِي الغَزْوِ بِرِجَالِهِنَّ فِي حَالِ القِتَالِ ؛ لِسَقْيِ المَاءِ وَنَحْوِهِ ». شرح مسلم للنووي، ۱۲/ ۱۹۰. وإنْ حصل شيء من الاختلاط فللضرورة. ← ← ← ← ←

او دا به يې هم د سخت ضرورت په وجه کول ، او د سخت ضرورت په وخت خو پردې ښځه د سړي علاج هم کولی شي ، په دې کې خو څه قباحت نشته . (۱)

لهذا بودي ګانو زَنانهؤ به په جهاد کې د سخت ضرورت په وجه شِرکت کولو ددينه د نَن دَور په اختلاط باندې استدلال صحيح ندی ، ځکه هغه بودي ګانې زَنانه وی او زَخميانو ته يې د ضرورت په وجه پټۍ کولی ، او د نن دَور ځواني ښځې بِلاضرورت د پرَدو سړو سره په بازار کې ښکاره مخ ګرځي ، د هغوی سره ګپ شپ لړوي ، ځانله ورسره په هوټلو کې شپې کوي ، فحاشي او زِنا کوي ، نو په دې دواړو کې ډير غټ فرق دی .

## د نبي ﷺ په زمانه کې ښځو ته په جُمات کې د مانځه د اجازت نه په اِختلاط باندې اِستدلال صحيح ندی

بعضې خلق د اِختلاط د جواز د پاره دا دليل پيش کوي چې :

" د نبي عليه السلام په زمانه کې زَنانهؤ ته په جُمات کې د مونځ کولو اجازت ؤ ، نو اوس دې هم د سړو او ښځو اختلاط جائز شي "

ددې جواب دادی چې ددينه اِستدلال صحيح ندی ؛ ځکه نبي عليه السلام د زَنانهؤ د پاره جُمات ته د راتنوتلو د پاره خاص دَروازه مقرر کړې وه چې په هغې به صرف زَنانه راتللی ، سړي به په هغې نه راتلل . (۲)

←←← قال القرطبيٌّ في: « ويسقين الماء؛ أي: تحملنه على ظهورهن، فيضعنه بقرب الرجال، فيتناوله الرجال بأيديهم فيشربوه» . المفهم شرح صحيح مسلم ۳/ ۶۸۴. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۷۰۰

(۱) وإن حصل شيءٌ مِن الاختلاط فللضرورة ذلك الحال. قال ابن حجر رَحِمَهُ اللَّهُ : « وفِيْهِ جَوازُ مُعالَجَةِ المَرأةِ الأَجنَبِيَّةِ الرَّجُلَ الأَجنَبِيَّ لِلضَّرُورَةِ. قالَ ابن بَطّال رَحِمَهُ اللَّهُ : ويَختَصُّ ذٰلِكَ بِذَواتِ المَحارِمِ ثُمَّ بِالمُتَجالّاتِ مِنهُنَّ ... فَإِن دَعَتِ الضَّرُورَةُ لِغَيرِ المُتَجالّاتِ فَلْيَكُنْ بِغَيرِ مُباشَرَةٍ وَلا مَسٍّ » . فتح الباري ۶/ ۹۴.

(۲) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَنَى المَسْجِدَ جَعَلَ بَابًا لِلنِّسَاءِ، وَ قَالَ : « لَا يَلِجَنَّ مِنْ هٰذَا البَابِ مِنَ الرِّجَالِ أَحَدٌ » قَالَ نَافِعٌ: فَمَا رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا دَاخِلًا مِنْ ذٰلِكَ البَابِ وَلَا خَارِجًا مِنْهُ . مسند ابي داؤد الطيالسي رقم الحديث ۱۹۳۸ وَمَا رَوَى نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ . حلية الأولياء وطبقات ج ۱ ص ۳۱۳ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ . ←←←←←←←←←←←

بيا د سلام نه پس به پيغمبر عليه السلام او صحابه کرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ په خپل ځای باندې د لږ وخت د پاره ناست وو ، په دې وخت کې به زَنانه خپلو کورونو ته لاړې . (۱)

بل دا چې نبي عليه السلام زَنانه وُ ته ترغيب ورکړې وُ چې ستاسو د پاره په کور کې مونځ کول په مسجدنبوي کې د ما پسې د مونځ کولو نه ډير بهتر دی . (۲)

دا ټول انتظامات پيغمبر عليه السلام د دې د پاره کړي وو چې د سړو او ښځو اختلاط رانشي .

بل جواب دادی چې هغه د خَيرُ القرون زمانه وه ، يو طرف ته پاک دَامن صحابه کرام وو او بل طرف ته پاک دَامنې صحابياتې وې ، او بيا په پَرده کې جُمات ته تللې .

او اوس خود شَرّ القرون زمانه ده ، د خلقو زړونه خيرَن دي ، خلق شهواتو ليوني کړي دي ، په دې دَور کې به ځنګه ځوانانو ښځو ته ښکاره مخ په بازار کې د پرَدو سره يو ځای ګرځيدل جائز شي ؟

---

←←← عَنْ نَافِعٍ ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا ، قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « لَوْ تَرَكْنَا هٰذَا الْبَابَ لِلنِّسَاءِ » . قَالَ نَافِعٌ : فَلَمْ يَدْخُلْ مِنْهُ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا حَتّٰى مَاتَ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابٌ فِي اعْتِزَالِ النِّسَاءِ فِي الْمَسَاجِدِ عَنِ الرِّجَالِ رقم الحديث ۴۶۲ ، و رقم ۵۷۱ بَابُ التَّشْدِيدِ فِي ذٰلِكَ (اى: فِي خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسْجِدِ) .

(۱) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ : إِنَّ النِّسَاءَ فِي عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ إِذَا سَلَّمْنَ مِنَ الْمَكْتُوبَةِ قُمْنَ وَثَبَتَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَلّٰى مِنَ الرِّجَالِ مَا شَاءَ اللهُ . فَإِذَا قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ الرِّجَالُ . صحيح البخاري كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِاللَّيْلِ وَالْغَلَسِ رقم الحديث ۸۶۶ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۶۶۸۸ ، سنن النسائي رقم الحديث ۱۳۳۳ .

(۲) عَنْ أُمِّ حُمَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا امْرَأَةِ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، أَنَّهَا جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنِّي أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ . قَالَ : « قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّيْنَ الصَّلَاةَ مَعِي . وَصَلَاتُكِ فِي بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ . وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِكِ فِي دَارِكِ . وَصَلَاتُكِ فِي دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ . وَصَلَاتُكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِي » . قَالَ : فَأَمَرَتْ فَبُنِيَ لَهَا مَسْجِدٌ فِي أَقْصَى شَيْءٍ مِنْ بَيْتِهَا وَأَظْلَمِهِ . فَكَانَتْ تُصَلِّي فِيهِ حَتّٰى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۷۰۹۰ ، صحيح ابن خزيمة رقم الحديث ۱۶۸۹ باب اختيار صلاة المرأة في حجرتها ... ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۲۲۱۷ ذِكْرُ الْبَيَانِ بِأَنَّ صَلَاةَ الْمَرْأَةِ كُلَّمَا كَانَتْ أَسْتَرَ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِهَا ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۲۱۰۶ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۳۴۰(۱)

# د سړو سره د زَنانهؤ يو ځای طواف کولو نه د اِختلاط په جواز باندې اِستدلال صحيح ندی

بعضې خلق د اِختلاط د جواز د پاره دا دلیل پیش کوي چې :

" د بيتُ الله طواف سړي او ښځې يو ځای کوي نو چې هلته اِختلاط جائز دی نو په نورو ځایونو (تعلیمي ادارو وغيره) کې دې هم جائز شي "

ددې دليل درته شپږ (٦) جوابونه کوم :

**اول جواب** د طواف په باره کې هم بهتر داده چې ښځې د سړو نه ځانله طواف اوکړي

د بخاري شريف حديث دی ، حضرت اُمّ سَلَمة رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې ما ( په حجّة الوداع ) کې رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ته وويل چې زه بيماره يم . نو دوی راته اوفرمايل :

طُوْفِيْ مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ . (١)

په اُوښه باندې سوَره شه او د خلقو شاته طواف اوکړه .

علماؤ ددې حديث نه دا خبره مستبط کړی چې د زَنانهؤ د پاره د سړو نه شاته طواف کول سُنّت دی ، ځکه د بيتُ الله نه طواف کول هم د مانځه په شان دی ، او په مانځه کې خو ښځې د سړو نه شاته وي نو په طواف کې هم شاته (ځانله) په کار دي . (٢)

---

(١) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا . قَالَتْ: شَكَوْتُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّيْ أَشْتَكِيْ قَالَ: «طُوْفِيْ مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ » فَطُفْتُ وَرَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ إِلَى جَنْبِ الْبَيْتِ يَقْرَأُ بِالطُّوْرِ وَكِتَابٍ مَسْطُوْرٍ . صحيح البخاري كِتَابُ الصَّلَاةِ بَابُ إِدْخَالِ الْبَعِيْرِ فِي الْمَسْجِدِ لِلْعِلَّةِ رقم الحديث ٤٦٤ ، و رقم الحديث ١٦١٩ كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ طَوَافِ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ ، و رقم الحديث ١٦٣٣ ، و رقم الحديث ٤٨٥٣ ، صحيح مسلم رقم الحديث ٢٥٨(١٢٧٦) ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ١٨٨٦ ، سنن النسائي رقم الحديث ٢٩٢٥ .

(٢) قال ابن بطال رَحِمَهُ اللهُ : وقد استنبط بعضُ العلماء مِن هذا الحديث طواف النّساء بالبيت من وراء الرّجال لعلة التّزاحم والتّناطح. قال غيره: طواف النساء من وراء الرجال هي السّنة ، لأنّ الطواف صلاةٌ ومِن سنة النّساء في الصّلاة أن يكن خلفَ الرّجال. فكذلك الطواف. شرح صحيح البخاري ٢/ ١١٢ باب إِدْخَالِ الْبَعِيْرِ فِي الْمَسْجِدِ لِلْعِلَّةِ .

قال الزرقاني رَحِمَهُ اللهُ قوله: « فَقَالَ : طُوْفِيْ مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ » لأنّ سنّة النّساء التّباعد عن الرّجال في الطواف . شرح الزرقاني على الموطا ٢/ ٣١١.

**دويم جواب**: په حج کې چونکه سرې او ښځې يو ځای د حج افعال اداء کوي خو خوبيا هم دا حکم دی چې زنانه به حتّی الوسع د حِجاب اهتمام کوي. (۱)

بل دا چې د فقهاء کرامو د جُزياتو نه معلوميږي چې که د سخت ضرورت او عُمومِ بَلوىٰ په وجه د ډير اِحتياط باوجود د شهوَت نه بغير د سړي نظر په پَردَی ښځه اُولږي يا يې ورسره اِختلاط راشي نو دا خپر دی.

لهذا د حج د اَفعالو اَداء کولو په وخت به انسان پوره کوشش کوي چې پرَدی ښځې ته د کتلو او اِختلاط نه ځان بچ کړي، خو که ډير رَش جوړ شي او د حتّی الوَسع احتياط باوجود بيا هم دده نظر په پرَدی ښځه اُولږي يا يې ورسره اختلاط راشي نو شرعًا به دده مؤاخذه نه کيږي، خو په دې وخت کې به انسان خپل زړه د شهوَت او گنده خيالاتو نه صفا ساتي. (۲)

**دريم جواب**: د ټولو مفسّرينو په دې باندې اِجماع ده چې په مکه معظمه کې د ډير رَش په وجه د سړو او ښځو گډون د مکې معظمې خصوصيت دی، ځکه هلته بعضې داسې کارونه جائز دي چې هغه په نورو ځايونو کې جائز ندي، يو په هغې کې د ډير رَش په وجه د سړو او ښځو گډون هم دی. (۳)

الله ﷻ د مکې معظمې نه تعبير په "بَكَّة" سره کړی:

﴿ إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ ﴾. (۴)

---

(۱) (وَالْمَرْأَةُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ كَالرَّجُلِ) لِأَنَّهَا مُخَاطَبَةٌ كَالرَّجُلِ (غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَكْشِفُ رَأْسَهَا) لِأَنَّهُ عَوْرَةٌ (وَتَكْشِفُ وَجْهَهَا) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ «إِحْرَامُ الْمَرْأَةِ فِي وَجْهِهَا» (وَلَوْ سَدَلَتْ شَيْئًا عَلَى وَجْهِهَا وَجَافَتْهُ عَنْهُ جَازَ) هٰكَذَا رُوِيَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْإِسْتِظْلَالِ بِالْمَحْمَلِ (وَلَا تَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ) لِمَا فِيهِ مِنَ الْفِتْنَةِ (وَلَا تَرْمُلُ وَلَا تَسْعٰى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ) لِأَنَّهُ مُخِلٌّ بِسَتْرِ الْعَوْرَةِ .... وَلَا تَسْتَلِمُ الْحَجَرَ إِذَا كَانَ هُنَاكَ جَمْعٌ. لِأَنَّهَا مَمْنُوعَةٌ عَنْ مُمَاسَّةِ الرِّجَالِ إِلَّا أَنْ تَجِدَ الْمَوْضِعَ خَالِيًا. الهداية كتاب الحج باب الإحرام ج ۱ ۱۴۹ آپ کے مسائل اوران کا حل ج ۸ ص۱۷۹ تعليم.

(۲) فتاوی عثمانيه ج۴ ص ۳۵۰ كتاب الحج.

(۳) إنّ هذا من خصوصيات مكّة بإجماع المُفسّرين. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۷۰۸.

(۴) آل عمران آية ۹۶.

ترجمه : بيشکه د ټولو نه رومبې کور ( يعنى رومبى عبادت ګاه ) چې د خلقو د پاره مقرر کړې شوى دا هغه دى چې په مکه کې دى.

امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : إِنَّمَا سُمِّيَتْ بَكَّةَ ، لِأَنَّ النَّاسَ يَبُكُّ بَعْضُهُمْ بَعْضًا فِيهَا. وَإِنَّهُ يَحِلُّ فِيهَا مَالَا يَحِلُّ فِي غَيْرِهَا. (۱)

مکې معظمې ته "بَكَّة" وويل شوه ځکه په دې کې د ډير رَش په وجه د خلقو د يو بل سره اِزدحام وي ، او په دې کې داسې کارونه حلال دي چې هغه په نورو ځايونو کې حلال ندي.

د مکې معظمې يو خصوصيت دادى چې په دې کې د مونځ ګزار مخې ته د سُترې ضرورت نه وي . (۲)

**ځلورم جواب** : د نبي عليه السلام د بيبيانو طريقه هم دا وه چې د سړو نه شاته (يو څنډې ته ) به يې طواف کولو ، د سړو سره به يې اختلاط نه راتلو.

د بخاري شريف حديث ، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيبيانو په باره کې راځي :

لَمْ يَكُنَّ يُخَالِطْنَ . كَانَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تَطُوفُ حَجْرَةً مِنَ الرِّجَالِ . لَا تُخَالِطُهُمْ .

د نبي عليه السلام بيبيانو به (د طواف په دَوران کې) د سړو سره اختلاط نه کولو ،

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كِتَابُ الْحَجِّ فِي بَكَّةَ مَا هِيَ وَمَكَّةَ مَا هِيَ؟ رقم الحديث ۱۴۱۲۸ ، شعب الايمان رقم الحديث ۳۷۲۷ ، تفسير البغوي ج ۱ ص ۴۷۲ آل عمران آية ۹۶ ، تفسير الرازي ( تفسير كبير ) ج ۸ ص ۲۹۹ .

(۲) بل يُعفى عن السترة في مكّة ، ولا يُعفى عن غيرها . اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب . ص ۷۱۰ .

قَالَ بَعْضُهُمْ : رَأَيْتُ مُحَمَّدَ بْنَ عَلِيٍّ الْبَاقِرَ يُصَلِّي فَمَرَّتِ امْرَأَةٌ بَيْنَ يَدَيْهِ . فَذَهَبْتُ أَدْفَعُهَا . فَقَالَ : دَعْهَا فَإِنَّهَا سُمِّيَتْ بَكَّةَ لِأَنَّهُ يَبُكُّ بَعْضُهُمْ بَعْضًا ، تَمُرُّ الْمَرْأَةُ بَيْنَ يَدَيِ الرَّجُلِ وَهُوَ يُصَلِّي . وَالرَّجُلُ بَيْنَ يَدَيِ الْمَرْأَةِ وَهِيَ تُصَلِّي لَا بَأْسَ بِذٰلِكَ فِي هٰذَا الْمَكَانِ . التفسير الكبير ج ۸ ص ۲۹۹ سورة آل عمران آية ۹۶ .

عَنْ قَتَادَةَ .... فِي قَوْلِهِ : { إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا } قَالَ : إِنَّ اللهَ بَكَّ بِهِ النَّاسَ جَمِيعًا فَتُصَلِّي النِّسَاءُ أَمَامَ الرِّجَالِ ، وَلَا يَصْلُحُ ذٰلِكَ بِبَلَدٍ غَيْرِهِ . شعب الايمان رقم الحديث ۳۷۲۶ ، تفسير ابي حاتم ج ۳ ص ۷۰۹ ، الدر المنثور ج ۳ ص ۶۷۳ .

عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ ، قَالَ : « مَرَّتِ امْرَأَةٌ بَيْنَ يَدَيْ رَجُلٍ وَهُوَ يُصَلِّي . وَهِيَ تَطُوفُ بِالْبَيْتِ . فَدَفَعَهَا » قَالَ أَبُو جَعْفَرٍ : إِنَّهَا بَكَّةُ يَبُكُّ بَعْضُهَا بَعْضًا . تفسير الطبري ج ۵ ص ۵۹۵ آل عمران آية ۹۶ .

حضرت عائشې رضي الله عنها به د سړو نه جدا طواف کولو ، د هغوی سره به یې اختلاط (ګډون) نه کولو . (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله د " حَجْرَة " ترجمه په " نَاحِيَة " (یو طرف) سره کړې ده . (۲)

د نبي علیه السلام په زمانه کې به زنانهٔ د سړو سره په یو وخت کې طواف کولو خو د سړو سره به یې اختلاط نه کولو ، بلکې یو طرف ته به جدا وی . (۳)

**پنځم جواب** : صحابه کرامو رضي الله عنهم به هم په طواف کې د سړو او ښځو اختلاط نه خوښولو . ابراهیم نخعي رحمه الله فرمایي :

نَهٰى عُمَرُ رضي الله عنه أَنْ يَطُوْفَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ . قَالَ : فَرَأٰى رَجُلًا مَعَهُنَّ فَضَرَبَهُ بِالدِّرَّةِ . (۴)

حضرت عمر رضي الله عنه سړي د ښځو سره د یو ځای طواف کولو نه منع کړي وو ، یو ځل یې یو

---

(۱) عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ: إِذْ مَنَعَ ابْنُ هِشَامٍ النِّسَاءَ الطَّوَافَ مَعَ الرِّجَالِ. قَالَ: كَيْفَ يَمْنَعُهُنَّ وَقَدْ طَافَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ الرِّجَالِ؟ قُلْتُ: أَبَعْدَ الْحِجَابِ أَوْ قَبْلُ؟ قَالَ: إِيْ لَعَمْرِيْ لَقَدْ أَدْرَكْتُهُ بَعْدَ الْحِجَابِ. قُلْتُ: كَيْفَ يُخَالِطْنَ الرِّجَالَ؟ قَالَ: لَمْ يَكُنَّ يُخَالِطْنَ. كَانَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا تَطُوْفُ حَجْرَةً مِنَ الرِّجَالِ. لَا تُخَالِطُهُمْ .... صحيح البخاري كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ طَوَافِ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ رقم الحديث ١٦١٨ ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ٩٠١٨ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ٩٢٢٨

(۲) قَوْلُهُ (حَجْرَة) أَيْ نَاحِيَة . فتح الباري لابن حجر ج ۳ ص ۴۸۰ في تشريح حديث ۱۶۱۸ .

(۳) قال المهلب رحمه الله : قول عطاء: " قد طاف الرجال مع النساء " يريد أنهم طافوا في وقت واحد غير مختلطات بالرجال ؛ لأن سنتهن أن يطفن ويصلين وراء الرجال ويستترن عنهم ؛ لقوله عليه السلام: (طُوْفِيْ مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ) . شرح صحيح البخاري لابن بطال ج ۴ ص ۲۹۸ باب طواف النساء مع الرجال

قَوْلُهُ : (وَقَدْ طَافَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ الرِّجَالِ) أَيْ غَيْرَ مُخْتَلِطَاتٍ بِهِنَّ .... فتح الباري لابن حجر ج ۳ ص ۴۸۰ في تشريح حديث ۱۶۱۸ .

(۴) عَنْ إِبْرَاهِيْمَ رحمه الله قَالَ : نَهٰى عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنْ يَطُوْفَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ . قَالَ : فَرَأٰى رَجُلًا مَعَهُنَّ فَضَرَبَهُ بِالدِّرَّةِ . فَقَالَ الرَّجُلُ : لَئِنْ كُنْتُ أَحْسَنْتُ لَقَدْ ظَلَمْتَنِيْ ، وَلَئِنْ كُنْتُ أَسَأْتُ مَا عَلَّمْتَنِيْ . فَأَعْطَاهُ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ الدِّرَّةَ وَقَالَ : اِمْتَثِلْ . قَالَ : لَا أَعْفُو الرَّجُلُ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ . اخبار مكة في قديم الدهر وحديثه للفاكهي ج ۱ ص ۲۵۲ رقم ۴۸۴ ذِكْرُ أَوَّلِ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فِي الطَّوَافِ

كس د ښځو سره يو ځای اُوليد (چې طواف يې ورسره كولو) نو په دُرّه يې اووهل.

همدارنګې حضرت عائشې رضي الله عنها خپله هغه وينځه اُورټله چې د سړو سره يې ګډون راغلې وُ. (۱)

**شپږم جواب**: د تابعينو په زمانه کې د مکې معظمې امير " خالد قَسري " دا کار اوکړو چې دَ طواف په دَوران کې يې د سړو او ښځو په مينځ کې جدا والې راوست، ښځو به د سړو نه جدا طواف کولو، ټولو علماؤ په دې کار باندې د هغه صفت اوکړو. (۲)

د مذكوره جواباتو نه معلومه شوه چې په مكه معظمه کې د طواف په دَوران کې د سړو او ښځو اِختلاط د سخت ضرورت په وجه دی، يا دا د مکې معظمې خصوصيت دی، يا دا چې د نبي ﷺ صَحابه كرامو او اَسلافو په زمانه کې به ښځو د سړو نه جدا طواف كولو د سړو سره به يې اختلاط نه راتلو، لهذا په دې باندې د نن صبا په بازارونو کې د ښځو او سړو بې حِجابه اختلاط قياس كول ندي په كار، ځكه په دې دواړو کې ډير غټ فرق دی.

(۱) عَنْ مَنْبُوذِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَدَخَلَتْ عَلَيْهَا مَوْلَاةٌ لَهَا فَقَالَتْ لَهَا: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ! طُفْتُ بِالْبَيْتِ سَبْعًا وَاسْتَلَمْتُ الرُّكْنَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا. فَقَالَتْ لَهَا عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: لَا أَجَرَكِ اللهُ لَا أَجَرَكِ اللهُ تُدَافِعِينَ الرِّجَالَ، أَلَا كَبَّرْتِ وَمَرَرْتِ؟. السنن الكبرى للبيهقي جُمَّاعُ أَبْوَابِ دُخُولِ مَكَّةَ بَابُ الِاسْتِلَامِ فِي الزِّحَامِ. رقم الحديث ۹۲۶۸، مسند الشافعي ج ۱ ص ۱۲۷.

(۲) ذِكْرُ أَوَّلِ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فِي الطَّوَافِ. وَيُقَالُ عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ قَالَ: أَوَّلُ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فِي الطَّوَافِ خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْقَسْرِيُّ. اخبار مكة للفاكهي ج ۱ ص ۲۵۲.

ذكر الفاسي تبعًا للفاكهي أنّ مِن أعمال خالد القسري أمير مكة في زمن التابعين التي حمده الناس عليها قيامه بالتفريق بين الرّجال والنّساء في الطّواف حيث أجلس عند كلّ ركن حرسًا يفرّقون بين الرجال والنّساء. العقد الثمين الفاسي ۴/ ۱۵.

فمنعُ الاختلاط بين الرّجال والنّساء في الطواف معروف في زمن السّلف الصّالح، وأثنى أهلُ العلم والفضل على من قام به من الأمراء. اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ص ۷۱۲.

## چې نبي ﷺ د اختلاط نه منع کړې نو ګويا قرآن کريم هم منع کړې

بعضې خلق دا اعتراض کوي چې " په قرآن کريم د سړو او ښځو د اختلاط حُرمت نشته ".
نو ددې جواب دادی چې د اختلاط نه په احاديثو کې منع راغلې ده ، نو ګويا په قرآن کريم کې هم ددينه منع راغله .

ځکه احاديث خو د قرآن کريم تشريح ده . (۱)

نبي عليه السلام د ځان نه خبرې نه کولی ، الله تعالی فرمايي :

﴿ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى . إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحٰى ﴾ . (۲)

ترجمه : دا پيغمبر د خپل خواهش نفس نه خبرې نه کوي ( بلکه ) د دوی هره خبره وَحي ده چې په دوی نازلولې شي .

احاديث هم د الله ﷻ د طرفه وَحي ده ، خو ديته وَحي خفي ويلې شي .

الله تعالی د قرآن کريم په ډيرو ځايونو کې د احاديثو نه تعبير په "حِکمت" سره کړی . (۳)

پس معلومه شوه چې احاديث هم د الله ﷻ د طرفه وَحي ده . نو چې کله نبي عليه السلام د اختلاط نه منع کړې نو ګويا قرآن کريم هم منع کړې .

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ اوفرمايل :

لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوْتَشِمَاتِ . وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ .

---

(۱) قَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : كُلُّ مَا حَكَمَ بِهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهُوَ مِمَّا فَهِمَهُ مِنَ الْقُرْآنِ . ثُمَّ أَخْرَجَ مَا يُؤَيِّدُهُ وَهُوَ قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " « إِنِّي لَا أُحِلُّ إِلَّا مَا أَحَلَّ اللهُ فِي كِتَابِهِ وَلَا أُحَرِّمُ إِلَّا مَا حَرَّمَ اللهُ فِي كِتَابِهِ » " . وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : جَمِيْعُ مَا تَقُوْلُهُ الْأَئِمَّةُ شَرْحٌ لِلسُّنَّةِ . وَجَمِيْعُ السُّنَّةِ شَرْحٌ لِلْقُرْآنِ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۱ ص ۲۵۰ بَابُ الْاِعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ .

(۲) النجم آية ۳، ۴ .

(۳) ﴿ وَأَنْزَلَ اللهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ﴾ . النساء آية ۱۱۳ .

﴿ ... وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ ﴾ . البقرة آية ۱۲۹ .

﴿ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللهِ وَالْحِكْمَةِ ﴾ . الاحزاب آية ۳۴

الله تعالی لعنت لیږلی دی په هغه ښځو باندې چې ځانله یا بلې ښځې له په ځرمن باندې خالونه وَهي ، او په هغه ښځو باندې چې د ډَول د پاره د مخ ویښتان (وریځې) اُوباسي ، او په هغه ښځو باندې چې د ښائست د پاره د خپلو غاښونو په مینځ کې جدا والې پیدا کوي ، دا (مذکوره) ښځې د الله ﷻ په خِلقت کې تغیر راوستونکې دي .

د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دا خبره د بني اَسد قبیلې یوې ښځې " اُم یعقوب " ته اُورسیده هغه راغله او ابن مسعود رضي الله عنه ته یې ووېل :

ماته دا خبره رارسیدلې ده چې تا په فلاني فلانې ښځو باندې لعنت ویلې دی ؟

ابن مسعود رضي الله عنه ورته اوفرمایل :

وَمَا لِيَ أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَمَنْ هُوَ فِيْ كِتَابِ اللهِ .

زه به په هغه چا باندې لعنت ولې اُو نه وایم چې په چا باندې رسولُ الله ﷺ لعنت ویلې وي ، او چې په چا باندې په قرآن کریم کې لعنت ویل شوی .

هغې ښځې ووېل : ما خو قرآن کریم لوستلې دی لیکن په دې کې خو ما هغه خبرې (په صریحو الفاظو سره) ندي موندلې کومې چې ته وایې . ابن مسعود رضي الله عنه ورته اوفرمایل :

لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيْهِ لَقَدْ وَجَدْتِيْهِ . أَمَا قَرَأْتِ : { وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا }.

که چیرته تا قرآن کریم په غَور سره لوستلې وی نو تا به ضرور دا موندلې وی . آیا تا د قرآن کریم دا آیت ندې لوستلی چې الله تعالی فرمایي : (او رسول چې تاسو ته څه درکوي هغه واخلئ ، او د څه شي نه چې تاسو منع کړي د هغې نه منع شئ ) .

هغې ښځې ووېل : آو ، ما دا آیت لوستلې دی .

ابن مسعود رضي الله عنه ورته اوفرمایل : بیشکه نبي عليه السلام د دې کارونو نه منع کړیده (او د نبي علیه السلام منع کول داسې دي لکه قرآن کریم چې د دینه منع کړي وي) ..... (۱)

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه . قَالَ : « لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُوْتَشِمَاتِ . وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ » فَبَلَغَ ذٰلِكَ امْرَأَةً مِنْ بَنِيْ أَسَدٍ يُقَالُ لَهَا أُمُّ يَعْقُوْبَ . فَجَاءَتْ فَقَالَتْ : إِنَّهُ بَلَغَنِيْ ←←←←←←←

**فائده** : ددې حديث نه صراحةً معلومه شوه چې کله نبي عليه السلام د څه څيز نه منع اوکړي نو دا بِعَينه داسې دی لکه قرآن کريم چې ددينه منع کړې وي.

نو د پردو سرو او پردو ښځو د اختلاط نه پيغمبر عليه السلام منع کړيده نو دا داسې ده لکه قرآن کريم چې ددينه منع کړې وي.

ددې حديث نه يو څو نورې خبرې هم معلومې شوی هغه دا چې کومې ښځې د خپل مخ نه ويښتان د ښائست د پاره اُوباسي مثلاً وريزې نرۍ کوي نو په دوی باندې د الله تعالى لعنت دی. البته که د ښځې ګيره يا بريت رااُوخيجي نو دا ورله ويستل جائز دي.

همدارنګې ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چې کومې ښځې د ښائست د پاره خپل

---

←←←← عَنْكَ أَنَّكَ لَعَنْتَ كَيْتَ وَكَيْتَ. فَقَالَ: وَمَا لِيَ أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَمَنْ هُوَ فِي كِتَابِ اللهِ. فَقَالَتْ: لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ اللَّوْحَيْنِ فَمَا وَجَدْتُ فِيهِ مَا تَقُولُ. قَالَ: لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ. أَمَا قَرَأْتِ: { وَمَآ اٰتٰكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا } [ الحشر آية ۷ ]؟ قَالَتْ: بَلَى. قَالَ: فَإِنَّهُ قَدْ نَهَى عَنْهُ. قَالَتْ: فَإِنِّي أَرَى أَهْلَكَ يَفْعَلُونَهُ. قَالَ: فَاذْهَبِي فَانْظُرِي. فَذَهَبَتْ فَنَظَرَتْ فَلَمْ تَرَ مِنْ حَاجَتِهَا شَيْئًا. فَقَالَ: لَوْ كَانَتْ كَذَلِكَ مَا جَامَعْتُهَا. صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ القُرْآنِ بَابُ {وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ} رقم الحديث ۴۸۸۶، و رقم الحديث ۵۹۳۹ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ الْمُتَنَمِّصَاتِ. مشكوة المصابيح رقم الحديث ۴۴۳۱(۱۳)، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۵۰۴، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۹۴۶۹.

په مسلم شريف کې دا حديث داسې ذکر دی: عَنْ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه. قَالَ: «لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالنَّامِصَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ، وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ» قَالَ: فَبَلَغَ ذَلِكَ امْرَأَةً مِنْ بَنِي أَسَدٍ يُقَالُ لَهَا: أُمُّ يَعْقُوبَ وَكَانَتْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ. فَأَتَتْهُ فَقَالَتْ: مَا حَدِيثٌ بَلَغَنِي عَنْكَ أَنَّكَ لَعَنْتَ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ، وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ، لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ. فَقَالَ عَبْدُ اللهِ رضي الله عنه: « وَمَا لِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ وَهُوَ فِي كِتَابِ اللهِ » فَقَالَتِ الْمَرْأَةُ: لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ لَوْحَيِ الْمُصْحَفِ فَمَا وَجَدْتُهُ. فَقَالَ: " لَئِنْ كُنْتِ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ. قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: { وَمَآ اٰتٰكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا } [ الحشر آية ۷ ] " فَقَالَتِ الْمَرْأَةُ: فَإِنِّي أَرَى شَيْئًا مِنْ هَذَا عَلَى امْرَأَتِكَ الْآنَ. قَالَ: «اذْهَبِي فَانْظُرِي». قَالَ: فَدَخَلَتْ عَلَى امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ فَلَمْ تَرَ شَيْئًا. فَجَاءَتْ إِلَيْهِ فَقَالَتْ: مَا رَأَيْتُ شَيْئًا. فَقَالَ: « أَمَا لَوْ كَانَ ذَلِكَ لَمْ نُجَامِعْهَا». صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ تَحْرِيمِ فِعْلِ الْوَاصِلَةِ وَالْمُسْتَوْصِلَةِ... رقم الحديث ۱۲۰ (۲۱۲۵).

غابنونه نري کوي او فُرجې (جداوالې) په کې پيدا کوي نو په دوی باندې هم د الله تعالی لعنت دی. البته که علاج د پاره يا په غابنونو کې څه عيب وي د هغې د ختمولو د پاره غابنونه نري کوي نو دا خبره دی. (۱)

# د نبي عليه السلام حکم منل هم فرض دي

په مسلمان باندې لکه څرنګې چې د الله ﷻ حکم منل فرض دي نو همدغه شان وربانديې د رسولُ الله ﷺ حکم منل هم فرض دي.

په قرآن کريم کې ځای په ځای د الله ﷻ د اطاعت سره د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اِطاعت حکم هم شوی. الله تعالی فرمايي:

﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ﴾. (۲)

ترجمه: اې مؤمنانو! تاسو حکم اُومنئ د الله، او حکم اُومنئ (د هغه) د رسول.

د نبي عليه السلام اِطاعت د الله تعالی اِطاعت ګرځول شوی:

﴿ مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ﴾. (۳)

ترجمه: څوک چې د رسول (ﷺ) اِطاعت اوکړي (يعنی د هغه خبره اُومني) نو يقيناً

---

(۱) ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ په " مرقاة " کې د مذکوره حديث په تشريح کې ليکلي: (وَالْمُتَنَمِّصَاتِ): بِتَشْدِيدِ الْمِيمِ الْمَكْسُورَةِ هِيَ الَّتِي تَطْلُبُ إِزَالَةَ الشَّعْرِ مِنَ الْوَجْهِ بِالْمِنْمَاصِ أَيِ الْمِنْقَاشِ. وَالَّتِي تَفْعَلُهُ نَامِصَةٌ. قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: وَهُوَ حَرَامٌ إِلَّا إِذَا نَبَتَ لِلْمَرْأَةِ لِحْيَةٌ أَوْ شَوَارِبُ (وَالْمُتَفَلِّجَاتِ): بِكَسْرِ اللَّامِ الْمُشَدَّدَةِ. وَهِيَ الَّتِي تَطْلُبُ الْفَلَجَ. وَهُوَ بِالتَّحْرِيكِ فُرْجَةٌ مَا بَيْنَ الثَّنَايَا وَالرُّبَاعِيَاتِ. وَالْفَرْقُ بَيْنَ السِّنِينَ عَلَى مَا فِي النِّهَايَةِ. وَالْمُرَادُ بِهِنَّ النِّسَاءُ اللَّاتِي تَفْعَلُ ذٰلِكَ بِأَسْنَانِهِنَّ رَغْبَةً فِي التَّحْسِينِ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: هِيَ الَّتِي تُبَاعِدُ مَا بَيْنَ الثَّنَايَا وَالرُّبَاعِيَاتِ بِتَرْقِيقِ الْأَسْنَانِ بِنَحْوِ الْمِبْرَدِ. وَقِيلَ: هِيَ الَّتِي تُرَقِّقُ الْأَسْنَانَ وَتُزَيِّنُهَا. وَاللَّامُ فِي قَوْلِهِ: (لِلْحُسْنِ): لِلتَّعْلِيلِ. وَيَجُوزُ أَنْ يَكُونَ التَّنَازُعُ فِيهِ بَيْنَ الْأَفْعَالِ الْمَذْكُورَةِ. وَالْأَظْهَرُ أَنْ يَتَعَلَّقَ بِالْأَخِيرِ. قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: فِيهِ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ الْحَرَامَ هُوَ الْمَفْعُولُ لِطَلَبِ الْحُسْنِ. أَمَّا لَوِ احْتَاجَتْ إِلَيْهِ لِعِلَاجٍ أَوْ عَيْبٍ فِي السِّنِّ وَنَحْوِهِ فَلَا بَأْسَ بِهِ. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۷ ص ۲۸۱۹ في تشريح حديث ۴۴۱۹.

(۲) النساء آية ۵۹.

(۳) النساء آية ۸۰.

ده د الله تعالى اِطاعت اوكړو.

او لكه ځرنګې چې انسان د الله ﷻ په نافرمانۍ سره د جهنم مستحق ګرځي نو همدغه شان د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نافرمانۍ سره هم د جهنم مستحق ګرځي ، په قرآن كريم كې ددې بيان داسې شوى :

﴿ وَمَنْ يَعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ﴾ (۱)

ترجمه : او ځوک چې د الله او ده ده د رسول نافرماني اوكړي نو بيشكه دده د پاره اُور د جهنم دى ، دوى به په هغې كې هميشه وي تل تر تله.

﴿ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ﴾ . (۲)

ترجمه : او ځوک چې د الله او د هغه د رسول نا فرماني اوكړي نو بيشكه هغه ګمراه شو په ښكاره ګمراهۍ سره .

## د غونډ تقرير خلاصه

د غونډ تقرير خلاصه دا رااُووته چې بغير د ضرورتِ شرعيه نه د پردۍ ښځې سره خَلوَت يعنى ځانله ورسره كيناستل حرام دي ، په احاديثو مباركه ؤ كې ددينه سخته منع راغلې .

همدارنګې د غير مَحرَمه ښځو سره اِختلاط ( ګډون ) هم حرام دى ، د قرآن كريم ډير آيتونه ددې په حُرمت باندې دلالت كوي ، او په احاديثو كې خو صراحةً ددينه منع راغلې او ددې ډيرې سزاګانې ذكر شوي .

نبي عليه السلام به په ډير اهتمام سره سړي او ښځې د اختلاط نه منع كول ، تر دې چې د زَنانه ؤ د تعليم د پاره يې خاص ورځ مقرر كړې وه ، د زَنانه ؤ د پاره يې جُمات ته د راتلو خاص دَروازه مقرر كړې وه ، او په جُمات كې به هم د سړو نه ځانله ناستې وى ، دا ټول انتظام يې ددې د پاره كول چې د پردو سړو او پردو ښځو اختلاط رانشي .

(۱) الجن آية ۲۳ .

(۲) الاحزاب آية ۳٦

صحابه کرامو رضي الله عنهم به هم د اختلاط نه منع کوله ، حضرت عُمر رضي الله عنه اختلاط کوونکي سړي او ښځې په دُرّه اووهل. حضرت علي رضي الله عنه به هم د اِختلاط نه منع کوله.

د اختلاط په حُرمت باندې د ټولو علماؤ اجماع ده ، هيڅ معتمد عالم ددې په جواز باندې قول ندې کړی.

لهذا د اِختلاط د ټولو صورتونو نه ځان ساتل په کار دي : که هغه په تعليمي ادارو کې وي ، يا دَفترونو کې وي ، يا بازارونو کې وي ، يا وَدونو کې وي ، او يا په نورو ځايونو کې وي.

او کوم بې دِينه خلق چې د اِختلاط د جواز د پاره کمزوري دلائل پيش کوي هغې ته هيڅ توجّه نده پکار ، بلکې د قرآن کريم او احاديثو په صريحو احکاماتو باندې عمل پکار دی ، او په قرآن و حديث کې د اِختلاط نه منع راغلې.

## دُعا

الله تعالی دې مونږ ته د شريعت په ټولو احکاماتو باندې په صحيح طريقې سره د پوهيدو او بيا په دې باندې دعمل کولو توفيق رانصيبه کړي.

ربِ کائنات دې مونږ ټول د هر قِسمه ګناهونو نه محفوظ اُوساتي.

پَروردِګارِ عالَم دې زمونږ معاشره د فحاشۍ ، بې حيايۍ ، زِناکارۍ او نورو ګناهونو نه پاکه کړي.

اې ربه ! مونږ ټولو ته د رسولُ الله صلی الله عليه وسلم په نقشِ قدم باندې د تللو توفيق رانصيبه کړه ، او د ژوند په هره مرحله کې مو د غير مُسلمو د طريقو نه اُوساته.

آمِيۡن يَارَبَّ الۡعَالَمِيۡن

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

﴿ قُلۡ لِّلۡمُؤۡمِنِیۡنَ یَغُضُّوۡا مِنۡ اَبۡصَارِہِمۡ وَ یَحۡفَظُوۡا فُرُوۡجَہُمۡ ﴾ النور آیۃ ۳۰

# د بدنظری سزاګانې او د دینه د بچ کیدو طریقې

تالیف

اَبُو الشَّمۡس مولانا نُوۡرُالۡهُدٰی عُفِیَ عَنۡهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فیضُ القُرآن اکاخیل کالونی مردان

# نوټ

دا آئنده موضوع مې په درې غټو عنواناتو باندې تقسیم کړی :


**۱ . د بَدنظرۍ سزاګانې او نقصانات** صفحه ٨٣

(په دې کې د قرآن کریم او احادیثو په رڼا کې د بَدنظرۍ سزاګانې او نقصانات ذکر شوي )

**۲ . د بَدنظرۍ نه د بچ کیدو علاج او طریقې** صفحه ١٢٦

( په دې کې د بَدنظرۍ نه د بچ کیدو اُوولس ١٧ طریقې ذکر شوي )

**۳ . د فیس بُک او اِنټرنټ غلط استعمالولو نقصانات** صفحه ١٥١

(په دې کې د فیس بُک او اِنټرنټ غلط استعمالولو یوُولس نقصانات ذکر شوي)


که مُقرّرینو سره د تقریر د پاره وخت زیات وي ( یعنی اُوږد تقریر کول غواړي ) نو ټول تقریر په یو ځل هم بیانولې شي .

او که وخت ورسره کم وي نو بیا دې دا اول عنوان (د بَدنظرۍ سزاګانې او نقصانات ) په یوه جُمعه کې بیان کړي ، او دویم او دریم عنوان دې په بله جُمعه بیان کړي .

ابوالشمس عفي عنه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د بدنظرۍ سزاګانې او نقصانات

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ . وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهُ . وَلَارَسُوْلَ بَعْدَهُ . وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ . وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ . وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُ وَتَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ .

اَمَّابَعْدُ فَأَعُوْذُبِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۞ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾ . (۱)

وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿ يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْاَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ ﴾ . (۲)

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ..... فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ . (۳)

وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ : اَلنَّظْرَةُ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمَةٌ فَمَنْ تَرَكَهَا مِنْ

---

(۱) النور آية ۳۰ ، ۳۱ .

(۲) غافر آية ۱۹ .

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا . أَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ . فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ . وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ . وَالنَّفْسُ تَمَنّٰى وَتَشْتَهِيْ . وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ . صحيح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابُ زِنَا الْجَوَارِحِ دُوْنَ الْفَرْجِ رقم الحديث ۶۲۴۳ ، صحيح مسلم كتاب الْقَدَرِ بَابُ قُدِّرَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا وَغَيْرِهِ رقم الحديث ۲۰(۲۶۵۷) .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ . وَاللِّسَانُ يَزْنِيْ وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ . وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ . ... الْفَرْجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ . صحيح ابن حبان مخرجا كِتَابُ الْحُدُوْدِ بَابُ الزِّنٰى وَحَدِّهِ ذِكْرُ إِطْلَاقِ اسْمِ ... رقم الحديث ۴۴۱۹ ، المعجم الكبير رقم الحديث ۸۶۶۱ ، مسند احمد

خَوْفِ اللهِ أَثَابَهُ جَلَّ وَعَزَّ إِيمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِي قَلْبِهِ . (۱)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيمِ .

# سترګې لوي نعمت دی

عزت مندو مسلمانانو ورونو ! الله تعالی په انسان باندې هر وخت بې شماره نعمتونه رانازلوي ، که دا ددې نعمتونو شميرل او غواړي نو دا نشي شميرلی . په قرآن کريم کې ددې تذکره شته :

﴿ وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللهِ لَا تُحْصُوهَا ﴾ .(۲)

ترجمه : که چيرته تاسو د الله تعالی نعمتونه شميرل او غواړئ نو دا نشئ شميرلی .

په دې نعمتونو کې يو لوي نعمت سترګې هم دي ، دا په ظاهره وړوکې څيز معلوميږي خو که انسان ددې جوړښت ته ، ددې د حفاظت طريقو ته او ددې فوائدو ته سوچ اوکړي نو مکمل حيران پاتې کيږي .

اګر چې د انسان د وجود هر اندام ډير لوي نعمت دی ، ليکن بعضې اندامونه الله تعالی په خصوصي طريقې سره په طور د انعام ذکر کړي :

الله ﷻ فرمايي : ﴿ أَلَمْ نَجْعَلْ لَهُ عَيْنَيْنِ ۞ وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ﴾ . (۳)

---

(۱) المستدرک على الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۷۸۷۵ وقال الحاکم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ ، حلية الاولياء ج ٦ ص ۱۰۱ ، کنز العمال رقم الحديث ۱۳۰۷٦ .

وفي رواية : عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنَّ النَّظْرَةَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيسَ مَسْمُومٌ. مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِي أَبْدَلْتُهُ إِيمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِي قَلْبِهِ » . المعجم الکبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۳٦۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۳۸ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۲۹۴٦ باب غض البصر ، کنز العمال رقم الحديث ۱۳۰٦۷ ، تفسير ابن کثير ج ٦ ص ۴۰ سورة النور في تشريح آية ۳۰ ، اعراب القرآن وبيانه ج ٦ ص ۵۹۷ ، الزواجر ج ۲ ص ۴ .

(۲) النحل آية ۱۸

(۳) البلد آية ۸ ، ۹

ترجمه : آیا مونږ انسان ته دوه سترګې ، ژبه ، او دوه شونډې نه دي ورکړي ؟
بل ځای فرمايي :

﴿ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾. (۱)

ترجمه : او الله تعالی ستاسو د پاره غوږونه ، سترګې او زړونه جوړ کړل ددې د پاره چې تاسو شکر اداء کړئ.

حالانکه ډیر کم خلق ددې شکریه اداء کوي :

﴿ وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴾. (۲)

ترجمه : او الله تعالی هغه ذات دی چې ستاسو د پاره یې غوږونه ، سترګې او زړونه پیدا کړل خو تاسو ډیر لږ شکر اداء کوئ.

## په سترګو کې د الله ﷻ قدرتونه

که انسان د سترګو په جوړښت باندې سوچ او کړي نو په دې کې د الله ﷻ قدرتونه کتلو سره مکمل حیرانیږي :

د سترګې وزن عام طور باندې اووه ( ۷ ) ګرامه دی ، سترګه د اُووه ( ۷ ) پَردو نه جوړه شوی ، د هرې پَردې ځانله خاصیت او صفت دی ، که چیرته په دې کې یوه پرده هم خرابه شي نو سترګه بیا کار نه کوي.

الله ﷻ سترګې د نازکو پَردو او نازکو رګونو نه جوړې کړي ، بیا یې په کې قدرتي رَڼا اچولې ، ددې د حفاظت د پاره یې د پاسه پرې داسې پَردې پیدا کړي چې د څه ضَرَري څیز راتلو په وخت په خپله بندیږي او کلاویږي ، بیا یې د سترګو نه ګیر چاپیره د هډو عجیبه چاردیوالي جوړه کړې ، او هغوی ته یې تیز حرکت ورکړی ، ددې د پاره چې سترګه په آسانۍ سره د ضرري شي نه ځان بچ کړي ، ګویا بانړه د سترګو د حفاظت دروازې دي ، چې د ضرورت په وخت کلاویږي او بندیږي ، او ورسره ورسره د سترګو او مغ ښائست په کې هم دی.

(۱) النحل آیة ۷۸.

(۲) المؤمنون آیة ۷۸. و سورة الملک آیة ۲۳ ، و سورة السجدة آیة ۹.

بیا یې ددې بڼرو د وینښتانو غټیدو مقدار هم په ځای اوساتل ، د سَر د وینښتانو غوندې دیر نه غټیږي ، ګني بیا به انسان ته تکلیف ؤ .

بیا یې د بڼرو د پاسه پرې د وریزو وینښتان پیدا کړل چې د پورته نه خطرناک څیز دِارِک لاندې سترګې ته رانشي ، بیا یې په وجود کې په داسې سخت ځای کې فِټ کړي چې د پاسه پرې د سَر سخت هډوکي دی او لاندې د اَننګو سخت هډوکي دی ، دا ددې دپاره چې سترګې د مخامخ ګوزار نه محفوظې شي .

بیا یې په سترګو کې داسې مالګیجَنه ماده پیدا کړې چې دسترګو د وینځلو او صفایي کار و ,کوي .

بیا یې د سترګو دواړه طرفونه د مینځ په نسبت ښکته اوساتل ددې د پاره چې که چیرته په دې کې څه خطرناک شی اوغورځیږي نو په آسانۍ سره لاندې اُوخوییږي .

سترګې داسې یو مشین بلکه لویه کارخانه ده چې د پیدائش نه تر مرګه پورې دا خپل کار کوي ، مونږ و ,نه فائده اخلو ، دا نعمت الله تعالی مونږ ته مُفت راکړی ، مونږ ددې د پاره هیڅ محنت ندې برداشت کړی ، ځکه خو یې د مونږ سره پوره قدر نشته .

سترګې دومره نازکې دي چې په غونډ بدن کې ددې په شان بل نازک څیز نشته ، که په دې کې معمولي څیز اوغورځیږي نو انسان بې قراره وي ، خو الله تعالی ددې د حفاظت پوره انتظام کړی .

## په سترګو کې کیمرې

په هره یوه سترګه کې دیارلس کروړه ( ۱۳۰۰۰۰۰۰۰ ) کیمرې لږیدلې دي ، په دې کې شپیته لکهٔ ( ۶۰۰۰۰۰۰ ) کیمرې صرف د رنګ پیژندلو دي ، دولس کروړه ( ۱۲۰۰۰۰۰۰۰ ) کیمرې صرف د تور او سپین رنګونو خودلو د پاره دي .

او د شپې په تیاره کې د کار کولو واله کیمرې ځانله دي ، چې هغې ته راډز ( Rods ) وایي . ( دغه وجه ده چې د بعضې خلقو نظر د ماښام نه روستو کار نه کوي ، یعنی د شَمکورتیا بیماري یې وي ، داځکه چې دشپې کار کولو واله کیمرې یې خرابې وي ) .

د سترګو ماهر ډاکټران وایي چې کله انسان په رڼا کې وي نو د سترګو دا تور کسي خواره شي ، او چې تیارې ته راشي نو دا راټول شي ، په دې خوَریدو او راټولیدو کې د

سترګو پټې اووه (۷) میله مقدار فاصله وهي ، خو دا انتظام الله تعالی اتومیتک په سترګو کې جوړ کړې دی انسان ورنه خبر هم نه وي او دا مشین خپل کار کوي ، که چیرته دا کار انسان ته حواله شوې وی نو ډیر زر به یې سترګې خرابې کړې وی .

د انسان په سترګو کې د رڼا قبلولو د پاره د یو کرَب نه زیاتې ریښې دي ، چې هغه رڼا قبلوي .

بیا که انسان د سترګو په لینزونو باندې نظر واچوي چې څومره صفا او شفاف دي ، او په کومې طریقې سره لیدل کوي نو انسان حیران پاتې شي چې د سترګو دومره ناآشنا باریک نظام ، او په دې وړه سترګه کې د هغې راوستل صرف او صرف د هغه ذات کار دی چې د قدرتونو او حکمتونو خاوند دی .

چې کله په سترګه کې څه فرق راشي نو هغه ډاکټر چې پنځه ویشت (۲۵) کاله یې تعلیم کړې وي ، د سترګو سپیشلِست وي ، اوږده تَجربه یې وي ، هغه صرف په دې پوهه شي چې په دې سترګه کې دا فرق دی او علاج یې کوي ، او دده دا علاج هم د کارَنټۍ واله نه وي .

نو چې کله صرف د فرق معلومولو د پاره دومره ډیر تعلیم او تجربه ضروري ده نو نوې سترګه پیدا کول خو صرف د خالقِ کائنات نه علاوه د بل هیچا کار نه دی .

دغه وجه ده چې که د چا سترګې ختمې شي هغه په کروړنو او اَربونو روپو ورکولو ته تیاروي خو د دُنیا یو ډاکټر هم ده ته سترګې نشي اچولی .

معلومه شوه چې سترګې د الله ﷻ د طرفه لوي نعمت دی ، او ددې صحیح استعمال په کار دی . (۱)

ددې نِعمت د قدر پوښتنه د هغه چا نه اوکړئ چې هغوی سره دا نه وي (پیدائشي نابینا وي ، یا یې روستو نظر ختم شوې وي ) ، چې دا نعمت د چا سره نه وي هغه ته ټوله دُنیا تیاره معلومیږي ، هغه ټول دولت په دې باندې خرچ کول غواړي خو دا نشي حاصلولی .

---

(۱) أنعم الله سبحانه على عباده بالعديد من النعم، منها نعمة البصر التي قد تؤدي بالعبد إلى طريقين. فإمّا نيل رضى الله باستغلالها فيما أمر الله به مع شكره عليها. وإمّا باستحقاق غضبه بالنظر إلى المحرمات والفواحش. ويُحسن بالمسلم شكر الله تعالى على ما أنعم عليه. واستغلال تلك النعم في أداء أمور وشؤون الحياة . من ثمرات غض البصر

اګر چې په نن دَور کې داکټرانو ډیره ترقي کړې خو تر اوسه دوی د سترګو په شان بل داسې مشین ندې تیار کړی چې هغه د سترګو په ځای باندې کار او کړي.

## اَفسوس، چې مونږ خپلې سترګې غلطې استعمالوو

الله تعالی چې مونږ ته دا لوي نعمت راکړی نو ددې اجازت یې هم راته کړی چې تاسو دا په صحیح ځای کې استعمال کړی.

که مونږ په دې سترګو باندې آسمانونو، دریابونو، غرونو، ګلانو، او نورو ښائسته مناظرو ته ګورو او مزې حاصلوو نو مونږ ته ددې اجازت شته، خو الله تعالی صرف د دوه شیانو نه منع کړي یو چې دیته مه ګورئ:

اول. پرَدی ښځو ته د شهوت په نظر مه ګورئ (په دې کې اَمرد هم داخل دی، یعنی بې ګیرې هلک ته هم د شهوت په نظر کتل ناجائز دي).

دویم: انسان ته د سپکاوي په نظر مه ګورئ.

خو افسوس دا چې مونږ دا سترګې غلطې استعمالوو، هغه ځایونو ته وریاندې ګورو چې شریعت هغې ته د کتلو نه منع کړې ده.

دا ډیره نمَک حرامي ده چې الله تعالی مونږ ته دا لوي نعمت مُفت راکړی خو مونږ یې بیا هم د هغه د مرضۍ خلاف استعمالوو.

حالانکه په آخرت کې به ددې نعمتونو متعلق خاص تپوس کولې شي چې دا دې څنګه استعمال کړي وو؟ الله تعالی فرمایي:

﴿ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا ﴾. (۱)

ترجمه: بیشکه د غوږ، سترګې، او زړه ددې ټولو به د هریو نه تپوس کولې شي.

## الله تعالی مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی

په قرآن کریم کې الله ﷻ مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی

(۱) بني اسرائیل (الاسراء) آیة ۳۶

﴿ قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ۝ وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ ﴾. (۱)

ترجمه : اې پیغمبره ! ته مؤمنانو سړو ته اُووایه چې خپلې سترګې (نظرونه) ښکته ساتي ، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي ، دا ددوی د پاره ډیره پاکیزه (او بهتره) خبره ده ، بیشکه الله تعالی د خلقو په هغه کارونو ښه خبر دار دی کوم چې دوی کوي . او ته مؤمنانو ښځو ته اُووایه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي ، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي .

**د آیت تشریح** : په دې آیت کې الله تعالی مؤمنانو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی . د نظرونو ښکته کولو مطلب دادی چې هغه ځایونو ته اُو نه ګوري کوموته چې شریعت کتل حرام کړي دي . (۲)

علامه ابن حبان رَحِمَهُ اللَّهُ هم ددې تفسیر دا کړی چې پردی ښځې ته په خراب نظر سره کتل حرام دي ، او هسې ورته (بِلا ضرورت) کتل مکروه دي . (۳)

د شرمګاهو د حفاظت مطلب دادی چې په هغه ځای کې شهوت پوره نکړي چې هلته شریعت ده ته شهوت پوره کول حرام کړي وي ، په دې کې زِنا ، لِواطت ، او مُشت زَني (موټې وهل) ټول داخل دي .

ددې آیت نه معلومه شوه چې په حرامې طریقې سره شهوت پوره کول او ددې ټول اَسباب حرام دي ، خو په دې آیت کې الله تعالی ددې اِبتداء او اِنتهاء واضحه کړه او دا مینځنی

---

(۱) النور آیة ۳۰ ، ۳۱ .

(۲) ( يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ) أَيْ: عَنِ النَّظَرِ إِلَى مَا لَا يَحِلُّ النَّظَرُ إِلَيْهِ . تفسير البغوي ج ۳ ص ۴۰۱
( يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ) هٰذَا أَمْرٌ مِنَ اللهِ تَعَالَى لِعِبَادِهِ الْمُؤْمِنِينَ أَنْ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ عَمَّا حَرَّمَ عَلَيْهِمْ . فَلَا يَنْظُرُوا إِلَّا إِلَى مَا أَبَاحَ لَهُمُ النَّظَرَ إِلَيْهِ ، وَأَنْ يَغُضُّوا أَبْصَارَهُمْ عَنِ الْمَحَارِمِ . تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۴۸ سورة النور آية ۳۰ .

(۳) تفسير معارف القرآن سورة النور آية ۳۰ .

اَسباب په کې پخپله داخل شو .

ځکه په حرامې طریقې سره د شهوت پوره کولو اولنې سبب بَدنظري ده او آخرنې سبب یې زِنا ده چې دا په دې آیت کې صریح ذکر شو ، او مینځنې اسباب لکه د پردې ښځې سره (بې ضرورته) خبرې کول ، لاس وَرِوړل ، (ورتلل) وغیره په کې پخپله داخل شو . (۱)

حضرت عبیده فرمایي :

كُلُّ مَا عُصِيَ اللهُ بِهِ فَهُوَ كَبِيْرَةٌ ، وَقَدْ ذَكَرَ الطَّرَفَيْنِ .

په کوم څیز سره چې د الله ﷻ د حکم نافرماني کیږي هغه ګناهِ کبیره ده ، او په دې آیت کې الله تعالی دواړه طرفونه ذکر کړل ( چې اول یې بَدنظري ده ، اوآخریې زِنا ده ) . (۲)

## د نظر حفاظت واجب دی

په مذکوره آیتونو ﴿ قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ ... وَقُلْ لِلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ ...﴾ کې الله تعالی مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته اَمر کړی چې خپل نظرونه ښکته کړي ، او اَمر چې مطلق ذکر شي او د قرینې نه خالي وي نو د وجوب د پاره وي . (۳)

---

(۱) تفسیر معارف القرآن سورة النور آیة ۳۰ .

(۲) تفسیر ابن کثیر ج ٦ ص ۴۹ سورة النور ۳۰ .

(۳) حكم غض البصر : أمر الله سبحانه وتعالى عباده ممن آمنوا به من المؤمنين والمؤمنات بغض البصر عن الأمور التي حرم النظر إليها، والأمر في اللغة يعني الوجوب إلا إن ورد ما يصرفه إلى أمر آخر ، و ورد ذلك الأمر صريحًا في القرآن الكريم في قوله تعالى : (قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ أَبْصَارِهِمْ)، والمعنى الإجمالي الذي تشير إليه الآية الكريمة النداء من الله تعالى لرسوله عليه الصلاة والسلام بأن يخبر من آمن به من الناس بوجوب غض البصر . فالفعل يغضوا فعل أمرٍ من الله تعالى ، وهو بمعنى إنقاص النظر . وفي ذلك قال الإمام الطبري: يقول تعالى ذكره لنبيه محمد صلى الله عليه وسلم : (قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ بالله) وبك يا محمد (يَغُضُّوْا مِنْ أَبْصَارِهِمْ) يقول: يكفُّوا من نظرهم إلى ما يشتهون النظر إليه. مما قد نهاهم الله عن النظر إليه . حكم غض البصر

# د نظر حفاظت ته په عربۍ کې " غَضُّ البَصَر " . او بې ځایه نظر استعمالولو ته " إِطْلَاقُ البَصَر " وایي

د نظر حفاظت ته په عربۍ کې " غَضُّ البَصَر " وایي ، ددې لغوي معنٰی ده :

" نظر ښکته کول او بندول" . (۱)

او په اصطلاح کې یې تعریف دادی :

أَنْ يُغْمِضَ الْمُسْلِمُ بَصَرَهُ عَمَّا حُرِّمَ عَلَيْهِ ، وَلَا يَنْظُرُ إِلَّا لِمَا أُبِيحَ لَهُ النَّظَرُ إِلَيْهِ . (۲)

چې مسلمان خپل نظر د هغه څه نه بَند کړي چې کوم ته کتل دده د پاره حرام کړې شوي وي ، او صرف هغه څه ته ګوري چې کوم ته دده د پاره کتل مباح کړې شوي وي .

او بې ځایه نظر استعمالولو ته په عربۍ کې " إِطْلَاقُ البَصَر " وایي .

د " إِطْلَاقُ البَصَر " تعریف دادی :

چې بغیر د څه یَرې نه د انسان نظر په هر ځای باندې لږي ، کومو ځایونو ته چې الله ﷻ

---

(۱) اَلْغَضُّ لُغَةً : مَصْدَرُ قَوْلِهِمْ : غَضَّ بَصَرَهُ يَغُضُّهُ غَضًّا ، وَهُوَ مَأْخُوذٌ مِنْ مَادَّةِ ( غ ض ض ) اَلَّتِيْ تَدُلُّ عَلَى مَعْنَيَيْنِ : أَحَدُهُمَا : الْكَفُّ وَالنَّقْصُ ، وَالْآخَرُ : الطَّرَاوَةُ ، وَغَضُّ الْبَصَرِ مِنَ الْمَعْنَى الْأَوَّلِ ، وَكُلُّ شَيْءٍ كَفَفْتَهُ فَقَدْ غَضَضْتَهُ ، وَمِنْهُ قَوْلُهُمْ تَلْحَقُهُ فِيْ ذٰلِكَ غَضَاضَةٌ ، أَيْ أَمْرٌ يَغُضُّ لَهُ بَصَرَهُ .

وَقَالَ بَعْضُهُمْ : اَلْغَضُّ : الْخَفْضُ ، وَالْكَفُّ وَالْكَسْرُ ، وَأَصْلُ الْكَلِمَةِ : غَضَّ يَغُضُّ غِضًّا ( بِالْكَسْرِ ) وَغَضًّا وَغَضَاضَةً وَغَضَاضًا ( بِالْفَتْحِ ) . فَقَوْلُكَ : غَضَّ طَرْفَهُ أَيْ خَفَضَهُ ، وَكَذَا غَضَّ صَوْتَهُ ، وَكُلُّ شَيْءٍ غَضَضْتَهُ كَفَفْتَهُ .

نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۷ ص ۳۰۷۰ غض البصر .

( غَضَّ ) الْغَيْنُ وَالضَّادُ أَصْلَانِ صَحِيْحَانِ ، يَدُلُّ أَحَدُهُمَا عَلَى كَفٍّ وَنَقْصٍ ، وَالْآخَرُ عَلَى طَرَاوَةٍ . فَالْأَوَّلُ الْغَضُّ : غَضُّ الْبَصَرِ ، وَكُلُّ شَيْءٍ كَفَفْتَهُ فَقَدْ غَضَضْتَهُ ، وَمِنْهُ قَوْلُهُمْ : تَلْحَقُهُ فِيْ ذٰلِكَ غَضَاضَةٌ ، أَيْ أَمْرٌ يَغُضُّ لَهُ بَصَرَهُ .

معجم مقاييس اللغة ج ۴ ص ۳۸۳ ( غض ) .

(۲) نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۷ ص ۳۰۷۱ غض البصر . تفسير ابن كثير ۵۹۸/۲ ( بتصرف )

کتل حرام کړي دي د هغې هيڅ پرواه نه ساتي. (۱)

**دوه اقسام** بيا د "إِطْلَاقُ الْبَصَر" دوه اَقسام دي:

اول قِسم: مَنْهِيٌ عَنْه. دا هغه ځايونو ته کتل دي کوموته چې الله تعالى کتل حرام کړي دي، دا د قرآن کريم ددې آيت ﴿ يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْأَعْيُنِ ﴾ په وجه ممنوع دي.

دويم قِسم: جائز ځايونو ته کتل دي. (ددې بيا ځانله اُوږد تفصيل دی). (۲)

## الله تعالى د سترګو په خِيانت باندې پوهيږي

که انسان په هر څومره بندو دَروازو کې پټ وي خو بيا هم د الله تعالى نه نشي پټيدی، د انسان د معمولي معمولي حرکت نه هم خبريږي. په قرآن کريم کې ذکر دي:

﴿ يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ ﴾. (۳)

ترجمه: الله تعالى پوهيږي د سترګو په خِيانت او څه چې سينې پټوي.

يعنى الله تعالى د سترګو په غلا او په زړونو کې چې کوم پټ رازونه دي په دې ټولو باندې پوهيږي.

---

(۱) إِطْلَاقُ الْبَصَرِ اِصْطِلَاحًا: تَخْلِيَتُهُ مِنْ قَيْدِ الْخَوْفِ وَالْمُرَاقَبَةِ فَيَذْهَبُ وَيَقَعُ عَلَى كُلِّ مَا يَرَاهُ. فَلَا يَرْعَوِيْ عَنْ حَرَامٍ وَلَا يَقِفُ عِنْدَ حَدٍّ. نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۹ ص ۳۹۰۵ اطلاق البصر.

(۲) إِطْلَاقُ الْبَصَرِ نَوْعَانِ: اَلْأَوَّلُ: مَنْهِيٌّ عَنْهُ وَهُوَ إِطْلَاقُهُ نَحْوَ مَا حَرَّمَ اللهُ النَّظَرَ إِلَيْهِ مِنَ الْمَحَارِمِ وَغَيْرِهَا. وَيَنْدَرِجُ هٰذَا النَّوْعُ تَحْتَ قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْأَعْيُنِ﴾ (غافر/ ۱۹) .....

اَلثَّانِيْ: إِطْلَاقُ النَّظَرِ فِيْمَا يَنْبَغِيْ أَنْ يُتَخَلَّقَ بِهِ مِنَ الْبَصَرِ. يَقُوْلُ الْعِزُّ بْنُ عَبْدِ السَّلَامِ: وَأَمَّا التَّخَلُّقُ بِهِ فَنَظَرُنَا ضَرْبَانِ: أَحَدُهُمَا: ضَرُوْرِيٌّ. وَهُوَ النَّظَرُ الْإِتِّفَاقِيُّ. وَالثَّانِيْ: كَسْبِيٌّ. وَتَتَخَلَّقُ مِنْهُ بِكُلِّ نَظَرٍ أَوْجَبَهُ اللهُ تَعَالَى عَلَيْكَ. أَوْ نَدَبَكَ إِلَيْهِ. كَالْحِرَاسَةِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ. وَالنَّظَرِ فِيْ مَصْنُوْعَاتِ اللهِ الدَّالَّةِ عَلَى كَمَالِ قُدْرَتِهِ. وَتَمَامِ حِكْمَتِهِ. وَشُمُوْلِ عِلْمِهِ. وَنُفُوْذِ إِرَادَتِهِ نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۹ ص ۳۹۰۵ اطلاق البصر

(۳) غافر (المؤمن) آية ۱۹

**د سترګو د خیانت مطلب** : امام مجاهد رَحِمَهُ اللهُ د سترګو د خیانت مطلب دا بیان کړی :

وَهُوَ نَظَرُ الْأَعْيُنِ إِلَى مَا نَهَى اللهُ عَنْهُ. (۱)

یعنی کومو ځایونو ته چې الله تعالی کتل حرام کړي دي هغه ځایونو ته کتل.

په تفسیر معارف القرآن کې ذکر دي : د سترګو د خیانت مطلب دا دی چې څوک په غلا سره داسې څیز ته ګوري چې هغې ته کتل ده د پاره حرام او ناجائز وي ، لکه یو کس پردۍ ښځې ته د شهوت په نظر ګوري خو چې کله نور خلق دا او ګوري نو نظر ترې راواړوي.

یا په داسې طریقې سره ورته ګوري چې نور خلق ورباندې نه پوهیږي . (یا بار بار ورته ګوري) نو په دې ټولو باندې الله تعالی ښه خبردار دی . (۲)

## بَدنظري د سترګو زنا ده

بَدنظرۍ ته په احادیثو کې د سترګو زِنا ویل شوی.

د بخاري شریف حدیث دی ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي :

فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ. د سترګو زِنا غلط نظر دی . (۳)

---

(۱) {يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ} أَيْ: خِيَانَتَهَا وَهِيَ مُسَارَقَةُ النَّظَرِ إِلَى مَا لَا يَحِلُّ. قَالَ مُجَاهِدٌ رَحِمَهُ اللهُ : وَهُوَ نَظَرُ الْأَعْيُنِ إِلَى مَا نَهَى اللهُ عَنْهُ. تفسير البغوي (معالم التنزيل في تفسير القرآن) ج ۷ ص ۱۴۴ سورة غافر آية ۱۹ تفسير الطبري ج ۲۰ ص ۳۰۴ سورة غافر آية ۱۹.

قوله عز وجل: {يعلم خائنة الأعين} فيه خمسة أوجه: أحدها: أَنَّهُ الرَّمْزُ بِالْعَيْنِ . قاله السدي. الثاني: هِيَ النَّظْرَةُ بَعْدَ النَّظْرَةِ. قاله سفيان. الثالث: مُسَارَقَةُ النَّظَرِ . قاله ابن عباس. الرابع: اَلنَّظَرُ إِلَى مَا نُهِيَ عَنْهُ. قاله مجاهد. الخامس: هُوَ قَوْلُ الْإِنْسَانِ مَا رَأَيْتُ وَقَدْ رَأَى . أَوْ رَأَيْتُ وَمَا رَأَى . قاله الضحاك. وفي تسميتها خائنة الأعين وجهان: أحدهما: لأنها أخفى الإشارات فصارت بالاستخفاء كالخيانة. الثاني: لأنها باستراق النظر إلى المحظور خيانة. تفسير الماوردي (النكت والعيون) ج ۵ ص ۱۵۰ سورة غافر آية ۱۹.

(۲) تفسير معارف القرآن سورة غافر في تشريح آية ۱۹.

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا أَدْرَكَ ذٰلِكَ لَا مَحَالَةَ. فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ . وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ . وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي . وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ ←←←←←←←←

په يو حديث کې راځي : فَالْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ وَ زِنَاهُمَا النَّظَرُ . (۱)
سترګې هم زِنا کوي او د سترګو زِنا بَدنظري ده .
بَدنظرۍ ته د سترګو زِنا ځکه ويل شوی چې دا کله سبب ګرځي د زِنا د پاره ، نو مبالغةً ورته د سترګو زِنا ويل شوی . (۲)

## پرَدو ښځو ته کتل ګناه کبيره او حرام دي

د بخاري شريف د حديث (فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ) نه معلومه شوه چې پرَدو ښځو ته کتل حرام دي . (۳)

---

←←← . كُلَّهُ وَيُكَذِّبُهُ . صحيح البخاري كِتَابُ الِاسْتِئْذَانِ بَابُ زِنَا الْجَوَارِحِ دُونَ الْفَرْجِ رقم ۶۲۴۳ ، صحيح مسلم كتاب الْقَدَرِ بَابُ قُدِّرَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا وَغَيْرِهِ رقم الحديث ۲۰(۲۶۵۷) . سنن ابي داؤد رقم الحديث ۲۱۵۲ .
وفي رواية : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ . وَاللِّسَانُ يَزْنِي . وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ . وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ . وَيُحَقِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ . صحيح ابن حبان مخرجا كِتَابُ الْحُدُودِ بَابُ الزِّنَى وَحَدِّهِ ذِكْرُ إِطْلَاقِ اسْمِ الزِّنَى عَلَى الْأَعْضَاءِ إِذَا جَرَى مِنْهَا بَعْضُ شُعَبِ الزِّنَى رقم الحديث ۴۴۱۹ ، المعجم الكبير رقم الحديث ۸۶۶۱ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۵۳۹ .

(۱) پوره حديث داسې دی : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « لِكُلِّ ابْنِ آدَمَ حَظُّهُ مِنَ الزِّنَا، فَالْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ، وَ زِنَاهُمَا النَّظَرُ، وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ وَ زِنَاهُمَا الْبَطْشُ . وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ وَزِنَاهُمَا الْمَشْيُ ، وَالْفَمُ يَزْنِي وَ زِنَاهُ الْقُبَلُ . وَالْقَلْبُ يَهِمُّ أَوْ يَتَمَنَّى وَيُصَدِّقُ ذَلِكَ الْفَرْجُ أَوْ يُكَذِّبُهُ » شَهِدَ عَلَى ذَلِكَ أَبُو هُرَيْرَةَ سَمْعُهُ وَبَصَرُهُ . السنن الصغير للبيهقي كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ غَضِّ الْبَصَرِ إِذَا لَمْ يَكُنْ سَبَبٌ يُبِيحُ النَّظَرَ رقم الحديث ۲۳۵۹ .

(۲) ( فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ ) لِأَنَّ النَّظَرَ قَدْ يَجُرُّ إِلَى الزِّنَا فَتَسْمِيَةُ مُقَدِّمَةِ الزِّنَا بِالزِّنَا مُبَالَغَةٌ . أَوْ إِطْلَاقٌ لِلْمُسَبَّبِ عَلَى السَّبَبِ . مرقاة المفاتيح ج ۱ ص ۱۵۸ رقم الحديث ۸۶ .

(۳) « فَزِنَى الْعَيْنِ النَّظَرُ » . فَإِطْلَاقُ اسْمِ الزِّنَى عَلَى نَظَرِ الْعَيْنِ إِلَى مَا لَا يَحِلُّ دَلِيلٌ وَاضِحٌ عَلَى تَحْرِيمِهِ وَالتَّحْذِيرِ مِنْهُ . وَالْأَحَادِيثُ بِمِثْلِ هَذَا كَثِيرَةٌ مَعْلُومَةٌ . وَمَعْلُومٌ أَنَّ النَّظَرَ سَبَبُ الزِّنَى فَإِنَّ مَنْ أَكْثَرَ مِنَ النَّظَرِ إِلَى جَمَالِ امْرَأَةٍ مَثَلًا قَدْ يَتَمَكَّنُ بِسَبَبِهِ حُبُّهَا مِنْ قَلْبِهِ تَمَكُّنًا يَكُونُ سَبَبَ هَلَاكِهِ ، وَالْعِيَاذُ بِاللهِ . فَالنَّظَرُ بَرِيدُ الزِّنَى . اضواء البيان في ايضاح القرآن بالقرآن ج ۵ ص ۵۱۰ سورة النور آية ۳۱ .

بلکه علماوُ دیته ګناهِ کبیره ویلی.

علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په " الزواجر " کې پردو ښځو ته په شهوت سره کتل مستقله ګناهِ کبیره شمار کړې، او ددې په باره کې یې ډیر احادیث راوړي دي.(۱)

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي: بَدنظري په هر اعتبار سره حرام او ګناهِ کبیره ده.(۲)

## مؤمن په خپل فِراست سره د بَدنظرۍ په ګناه باندې پوهیږي

بَدنظرۍ داسې بَدترینه بیماري ده چې څوک په دې کې مبتلاء وي نو د هغه په سترګو کې ظُلمت وي، مؤمن سړی په خپل فِراست سره دا معلوملې شي چې دا کس د سترګو په زِنا کې مبتلاء دی.

**د حضرت عثمان رضي الله عنه فِراست**: یو ځل حضرت عثمان رضي الله عنه ته یو کس راغی چې په لاره کې یې خپل نظر غلط استعمال کړې وُ، حضرت عثمان رضي الله عنه چې دده سترګو ته اُوکتل نو وریاندې پوهه شو چې ده خپل نظر غلط استعمال کړې دی، نو دوی خاص هم هغه ته خطاب اونکړو بلکه عامه خبره یې اوکړه:

مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَتَرَشَّحُ الزِّنَا عَنْ أَعْيُنِهِمْ.

په دې خلقو باندې څه شوي چې زِنا د دوی د سترګو نه څڅیږي. (یعنی دوی غلط نظر استعمالوي).

حضرت عثمان رضي الله عنه هماغه کس ته خطاب اونکړو ددې د پاره چې هغه رَسوا نشي، بلکه عامه خبره یې اوکړه نو هغه هم وریاندې پوهه شو.(۳)

---

(۱) علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: اَلْكَبِيرَةُ الثَّانِيَةُ وَالْأَرْبَعُونَ وَالثَّالِثَةُ وَالْأَرْبَعُونَ وَالرَّابِعَةُ وَالْأَرْبَعُونَ بَعْدَ الْمِائَتَيْنِ: نَظَرُ الْأَجْنَبِيَّةِ بِشَهْوَةٍ مَعَ خَوْفِ فِتْنَةٍ، وَلَمْسُهَا كَذَلِكَ. وَكَذَا الْخَلْوَةُ بِهَا بِأَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُمَا مَحْرَمٌ لِأَحَدِهِمَا يَحْتَشِمُهُ. وَلَوْ امْرَأَةٌ كَذَلِكَ وَلَا زَوْجَ لِتِلْكَ الْأَجْنَبِيَّةِ ... الزواجر عن اقتراف الكبائر ج ۲ ص ۳

(۲) وعظ غض البصر ص ۱۸، بد نظری کا علاج ص ۲۲.

(۳) وعظ غض البصر ص ۷. بد نظری کا علاج ص ۱۵، حیاء اور پاکدامنی ص ۲۵.

حضرت عثمان ﷛ په خپل فِراست (نُورِ ايماني) سره دا معلومه كړه چې دې كس نظر غلط استعمال كړې دى.

په حديث كې هم راځي: اِتَّقُوا فِرَاسَةَ الْمُؤْمِنِ فَإِنَّهُ يَنْظُرُ بِنُوْرِ اللهِ. (۱)

تاسو د مؤمن سړي د فِراست نه اُويرېږئ ځكه دا د الله ﷻ په نُور سره ليدل كوي.

(علماؤ د مؤمنانو د فِراست څه نور واقعات هم رانقل كړي). (۲)

## بَد نظري د زنا اوله پوړۍ ده

علماؤ ليكلي چې د نظرحفاظت د شرمګاه نه ډير ضروري دى؛ ځكه لكه څرنګې چې د اُور شروع د اُور د سپَرغۍ (بڅركي) نه كيږي نو همدغه شان د زِنا اِبتداء هم د بَدنظرۍ نه كيږي.

(۱) مجمع الزوائد و منبع الفوائد كِتَابُ الزُّهْدِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْفِرَاسَةِ رقم الحديث ۱۷۹۴۰ ، وقال الهيثمي: رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ وَإِسْنَادُهُ حَسَنٌ. المعجم الاوسط رقم الحديث ۳۲۵۴ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابٌ: وَمِنْ سُورَةِ الْحِجْرِ رقم الحديث ۳۱۲۷ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۴۹۷ ، احياء علوم الدين ج ۲ ص ۲۹۴ ، صفة الصفوة ج ۱ ص ۵۲۲ ، تفسير الرازي ج ۱ ص ۱۱۷ ، و ج ۲۳ ص ۳۹۰ ، كنز العمال رقم الحديث ۳۰۷۳۰ .

(۲) وقد حكى أن رجلاً من المجوس كان يدور على المسلمين ويقول: ما معنى قول النبي صلى الله عليه وسلم: اِتَّقُوا فِرَاسَةَ الْمُؤْمِنِ؟ فكان يذكر له تفسيره فلا يقنعه ذلك حتى انتهى إلى بعض المشايخ من الصوفية. فسأله. فقال له: معناه: أن تقطع الزنار الذي على وسطك تحت ثوبك. فقال: صدقت هذا معناه وأسلم وقال الآن عرفتُ أنك مؤمن وأن إيمانك حق.

وكما حكى عن إبراهيم الخواص قال كنتُ ببغداد في جماعة من الفقراء في الجامع فأقبل شاب طيب الرائحة حسن الوجه. فقلت لأصحابي: يقع لي أنه يهودي. فكلهم كرهوا ذلك. فخرجتُ وخرج الشاب ثم رجع إليهم وقال: أي شيء قال الشيخ فيّ؟ فاحتشموه فألح عليهم فقالوا له قال إنك يهودي. قال فجاءني وأكب على يدي وقبل رأسي وأسلم. وقال نجدُ في كتبنا أنّ الصديق لا تخطىء فراسته. فقلتُ امتحن المسلمين فتأملتهم فقلتُ إن كان فيهم صديق ففي هذه الطائفة لأنهم يقولون حديثه سبحانه ويقرءون كلامه فلبستُ عليكم فلما اطلع على الشيخ وتفرس فيّ علمتُ أنه صديق. قال وصار الشاب من كبار الصوفية.

احياء علوم الدين ج ۲ ص ۲۹۴

ځکه اول سړې پردې ښځې ته اوګوري ، بیا یې په زړه کې خراب خیالات شروع شي ، بیا خبرې ورسره شروع کړي ، او آخر خبره زِنا ته اورسي .(۱)

د حضرت یحیٰی بن زکریا علیهما السلام نه خلقو پوښتنه اوکړه : زِنا د کوم ځای نه پیدا کیږي ؟ ده ورته اوفرمایل : د سترګو نه .(۲)

شیخ التفسیر مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله فرمايي : بَدنظري د زِنا اوله پوړۍ ده ، په دې سره د غټو غټو ګناهونو دَروازه کلاویږي .

قرآن کریم د بَدکارۍ او بې حیايۍ بندولو د پاره اول همدغه سُورې بند کړي ، یعنی

(۱) علامه ابن قیم رحمه الله لیکي : اَلنَّظَرُ أَصْلُ عَامَّةِ الْحَوَادِثِ الَّتِيْ تُصِيْبُ الْإِنْسَانَ فَالنَّظْرَةُ تُوَلِّدُ خَطْرَةً ثُمَّ تُوَلِّدُ الْخَطْرَةُ فِكْرَةً . ثُمَّ تُوَلِّدُ الْفِكْرَةُ شَهْوَةً . ثُمَّ تُوَلِّدُ الشَّهْوَةُ إِرَادَةً ثُمَّ تَقْوٰى فَتَصِيْرُ عَزِيْمَةً جَازِمَةً فَيَقَعُ الْفِعْلُ وَلَا بُدَّ . مَا لَمْ يَمْنَعْ مِنْهُ مَانِعٌ وَفِيْ هٰذَا قِيْلَ: اَلصَّبْرُ عَلٰى غَضِّ الْبَصَرِ أَيْسَرُ مِنَ الصَّبْرِ عَلٰى أَلَمِ مَا بَعْدَهُ . قَالَ الشَّاعِرُ: كُلُّ الْحَوَادِثِ مَبْدَاهَا مِنَ النَّظَرِ ❁ وَمُعْظَمُ النَّارِ مِنْ مُسْتَصْغَرِ الشَّرَرِ

كَمْ نَظْرَةٌ بَلَغَتْ فِيْ قَلْبِ صَاحِبِهَا ❁ كَمَبْلَغِ السَّهْمِ بَيْنَ الْقَوْسِ وَالْوَتَرِ

الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي ( الداء والدواء ) ص ۱۵۳ فَصْلٌ مَدْخَلُ الْمَعَاصِي النَّظْرَةُ

قَالَ ابْنُ الْقَيِّمِ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالٰى : إِنَّ النَّظَرَ يُوَلِّدُ الْمَحَبَّةَ فَتَبْدَأُ عَلَاقَةً يَتَعَلَّقُ بِهَا الْقَلْبُ بِالْمَنْظُوْرِ إِلَيْهِ . ثُمَّ تَقْوٰى فَتَصِيْرُ صَبَابَةً يَنْصَبُّ إِلَيْهِ الْقَلْبُ بِكُلِّيَّتِهِ . ثُمَّ تَقْوٰى فَتَصِيْرُ غَرَامًا يَلْزَمُ الْقَلْبَ كَلُزُوْمِ الْغَرِيْمِ الَّذِيْ لَا يُفَارِقُ غَرِيْمَهُ . ثُمَّ تَقْوٰى فَيَصِيْرُ عِشْقًا وَهُوَ الْحُبُّ الْمُفْرِطُ . ثُمَّ يَقْوٰى فَيَصِيْرُ شَغَفًا وَهُوَ الْحُبُّ الَّذِيْ قَدْ وَصَلَ إِلٰى شِغَافِ الْقَلْبِ وَدَاخِلِهِ . ثُمَّ يَقْوٰى فَيَصِيْرُ تَتَيُّمًا وَهُوَ التَّعَبُّدُ فَيَصِيْرُ الْقَلْبُ عَبْدًا لِمَنْ لَا يَصْلُحُ أَنْ يَكُوْنَ هُوَ عَبْدًا لَهُ وَهٰذَا كُلُّهُ جِنَايَةُ النَّظَرِ فَحِيْنَئِذٍ يَصِيْرُ الْقَلْبُ أَسِيْرًا بَعْدَ أَنْ كَانَ مَلِكًا وَمَسْجُوْنًا بَعْدَ أَنْ كَانَ مُطْلَقًا . فَيَتَظَلَّمُ مِنَ الطَّرْفِ وَيَشْكُوْهُ وَالطَّرْفُ يَقُوْلُ أَنَا رَائِدُكَ وَرَسُوْلُكَ وَأَنْتَ بَعَثْتَنِيْ . فَيُبْتَلٰى بِطَمْسِ الْبَصِيْرَةِ فَلَا يَرٰى بِهِ الْحَقَّ حَقًّا وَلَا الْبَاطِلَ بَاطِلًا وَهٰذَا أَمْرٌ يُحِسُّهُ الْإِنْسَانُ مِنْ نَفْسِهِ فَإِنَّ الْقَلْبَ كَالْمِرْآةِ . وَالْهَوٰى كَالصَّدَإِ فِيْهَا . فَإِذَا خَلَصَتِ الْمِرْآةُ مِنَ الصَّدَإِ انْطَبَعَتْ فِيْهَا صُوَرُ الْحَقَائِقِ كَمَا هِيَ وَإِذَا صَدِئَتْ لَمْ تَنْطَبِعْ فِيْهَا صُوَرُ الْمَعْلُوْمَاتِ . إغاثة اللهفان من مصائد الشيطان ج ۱ ص ۴۷ بتصرف . نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۹ ص ۳۹۰۶ اطلاق البصر

(۲) كيمياء السعادة ص ۲۹۸ . د نظر ناطاني ص ۳۷

مسلمانانو سړو او ښځو ته يې دا حکم کړی چې د بَدنظرۍ نه ځان اُوساتي او خپل خواهشات قابو کړي . البته که غير اختياري يې نظر په پردۍ ښځه اُولګي نو سمدستي به ورنه مخ راړوي او دوباره به ورته نه ګوري . (۱)

مجدّد الف ثاني رَحِمَهُ اللّٰهُ په خپلو مکتوباتو کې ليکلي دي چې د چا نظر په کنټرول کې نه وي نو د هغه خپل زړه هم په کنټرول کې نه وي ، او چې د چا زړه په کنټرول کې نه وي نو د هغه شرمګاه هم په کنټرول کې نه وي . (۲)

## بَدنظري د شيطان زَهريله غشې دی

بد نظري د شيطان زهريله غشې دی ددې په وجه مسلمانان په ډيرو ناجائزو کارونو کې مبتلاء کيږي . حديثِ قدسي دی ، الله تعالى فرمايي :

إِنَّ النَّظْرَةَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمٌ . مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِيْ أَبْدَلْتُهُ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ . (۳)

يېشکه بَدنظري د ابليس په غشو کې زهريله غشې دی ، څوک چې زما د يَرې دا پرېږدي نو زه به ورته ددې په عِوض کې داسې اِيمان ورکړم چې دا به په خپل زړه کې د هغې خوږوالي محسوسوي .

## په بَدنظرۍ سره د شيطان طمع پيدا کيږي

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي :

---

(۱) فوائد عثماني ، بدنظری کا علاج ص ۱۰ .

(۲) حياء اور پاکدامنی ص ۷۳ .

(۳) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۳۶۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۳۸ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۲۹۴۶ باب غضّ البصر ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۶۷ ، تفسير ابن كثير ج ۶ ص ۴۰ سورة النور في تشريح آية ۳۰ ، اعراب القرآن وبيانه ج ۶ ص ۵۹۷ ، الزواجر ج ۲ ص ۴ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اَلنَّظْرَةُ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمَةٌ فَمَنْ تَرَكَهَا مِنْ خَوْفِ اللهِ أَثَابَهُ جَلَّ وَعَزَّ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ » المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۸۷۵ ، وقال الحاكم : هَذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخْرِجَاهُ ، حلية الاولياء ج ۶ ص ۱۰۱ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۷۶ .

مَاكَانَ مِنْ نَظْرَةٍ فَلِلشَّيْطَانِ فِيهَا مَطْمَعٌ وَالإِثْمُ حَوَازُ الْقُلُوبِ .(۱)

کوم نظر چې غلط استعمال شي ( یعنی پرَدو ښځو ته اُوکتل شي ) نو د شیطان په دې کې طمع وي، او ګناهونه په زړونو باندې تسلّط حاصلوي.

**تشریح** مطلب یې دادی چې څوک نظر غلط استعمال کړي نو د شیطان طمع پیدا شي چې اوس د انسان ګمراه کول آسان دي؛ ځکه پرَدو ښځو ته په کتلو سره د انسان په زړه کې خرابې وَسوسې پیدا شي او آخر خبره زِنا ته اُورسي.

او چې کله انسان خپل نظر کنټرول کړي نو د شیطان طمع ختمه شي.

## د بَدنظرۍ په وجه مخ بې نوره کیدل

بَدنظرۍ سره مخ بې نُوره کیږي او رونق یې ختمیږي. اګر چې دا کس به د ورځې مخ څو پیرې په صابون وینځي خو بیا به هم بې نُوره وي.

په حدیث کې هم راځي، رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي:

لَتغضنّ أبصاركم ولتحفظنّ فروجكم أَو ليكسفنّ اللهُ وُجُوهَكُم . (۲)

تاسو خامخا خپل نظرونه ښکته ساتي، او د خپلو شرمګاهو حفاظت کوي، ګنې الله تعالی به ستاسو مخونه بدل کړي.

د شکل بدلیدو شروع د مخ بې نُوره کیدو نه کیږي.

## بدنظري د ګناهونو جرړه ده

علامه ابن قیم رَحِمَهُ اللّٰه لیکلي: فَفِتْنَةُ النَّظَرِ أَصْلُ كُلِّ فِتْنَةٍ (۳)

د بَدنظرۍ فِتنه د ټولو فِتنو جرړه ده.

امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰه فرمایي:

(۱) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۸۷۴۹، مجمع الزوائد كِتَابُ العِلْمِ بَابٌ فِي البِرِّ وَالإِثْمِ رقم الحديث ۸۱۹ وقال الهيثمي: رَوَاهُ الطَّبَرَانِيُّ كُلَّهُ بِأَسَانِيدَ رِجَالُهَا ثِقَاتٌ. صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۱۹۰۷ كتاب النكاح و مايتعلق به، شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۵۱، الزهد لابي داؤد رقم الحديث ۱۲۵، كنزالعمال رقم الحديث ۷۳۲۰.

(۲) الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۲۹۳۳ كتاب النكاح ومايتعلق به.

(۳) روضة المحبين ونزهة المشتاقين لابن القيم ص ۹۶ الباب السادس: في أحكام النظر وغائلته وما يجني على صاحبه

ثُمَّ عَلَيْكَ وَفَّقَكَ اللّٰهُ وَ إِيَّانَا بِحِفْظِ الْعَيْنِ فَإِنَّهَا سَبَبُ كُلِّ فِتْنَةٍ وَ آفَةٍ .(۱)

بیا په تا باندې د سترګو حفاظت لازم دی الله تعالی دې تاته او مونږ ته توفیق راکړي ځکه بَدنظري د هرې فِتنې او هر آفت سبب دی .

بد نظری سره په زړه کې شهوت پیدا کیږي .(۲)

که انسان خپل نظر کنټرول نکړي نو دا بیا د ګناهونو جَرړه ده ، ددې په وجه بیا په معاشره کې عُریاني او فحشي خوَریږي ، د همدې د وجې مُحققینو علماؤ بَدنظری ته " اُمُّ الْخَبَائِث " ویلی .

که مونږ اوګورو نو په معاشره کې چې څوک په بَدنظری کې مبتلاء وي نو دا آخر هم په فحاشی کې اَخته کیږي .

## د بدنظرۍ په وجه آخره خاتمه خرابیدل

بَدنظري دومره خطرناکه ګناه ده چې ددې په وجه دا خطره شته چې د انسان آخره خاتِمه خرابه شي ، ځکه دا اګر چې په ظاهره وړه ګناه معلومیږي خو دا د غټو ګناهونو سبب ګرځي .

**د مصر د مؤذن واقعه** علامه ذهبي رَحِمَهُ الله په " الکبائر " کې ، او علامه ابن حجر رَحِمَهُ الله په " الزواجر " کې یوه واقعه رانقل کړې :

په مصر کې یو کس ؤ ، د ډیر وخت نه په جُمات کې اوسیدو ، په جُمات کې به یې اَذانونه کول ، او په جَمعې سره به یې مونځونه کول ، په مخ باندې یې د عبادت اَنوار ښکاره کیدل ، یوه ورځ د خپل عادت موافق د آذان د پاره د جُمات مُنارې ته اُوخَت ، د جمات د منارې لاندې د یو عیسائي کور ؤ ، ده هغه کور ته اُوکتل ، د عیسائي په لور باندې دده نظر اولږید ، هغه ډیره ښائسته وه ، د هغې حُسن او ښائست په ده دومره اثر وکړو چې آذان یې په ځای پریښود او نیغ ددې عیسائي کور ته لاړ ، هغه جینۍ ورنه پوښتنه اوکړه :

(۱) منهاج العابدين ص ۲۸ ، جیواهر پاره ص ۴۹

(۲) قَالَ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ لَا تُتْبِعْ بَصَرَكَ حُسْنَ رِدَاءِ الْمَرْأَةِ فَإِنَّ النَّظَرَ يَجْعَلُ الشَّهْوَةَ فِي الْقَلْبِ . الورع لابن ابي الدنيا ج ۶۸

څه خبره ده ؟ څه اراده دې ده ؟ ده ورته وویل : زما ته مقصود یې . هغې ورته وویل : زه دا غلط کار نه کوم . ده ورته وویل : زه تاسره نکاح کول غواړم .

هغې ورته وویل : ته مسلمان یې ( او زه عیسائي مذهب واله یم ) زما پلار به ما تاله درنکړي . دې سړي ورته وویل : زه هم عیسایي مذهب قبلوم . هغې وویل : بیا صحیح ده .

فَتَنَصَّرَ لِيَتَزَوَّجَ بِهَا . نو دا سړې عیسائي شو ، صرف ددې د پاره چې ددې جینۍ سره نکاح اوکړي .

تراوسه یې نکاح نه وه شوې ، دا سړې په دې کور کې ؤ ، په همدې ورځ باندې دا سړې ددې عیسائي په کور کې پاس چت ته ختلو نو خپه یې اُوخویده ، لاندې رااوغورځید ، څټ یې مات شو او په هماغه ځای کافر مړ شو . دین هم ورنه لاړ او د جینۍ سره یې نکاح هم اُو نه شوه . (۱)

(۱) دا واقعه په " الکبائر " کې داسې ذکر ده : وَرُوِيَ أَنَّهُ كَانَ رَجُلٌ بِمِصْرَ مُلْتَزِمُ الْمَسْجِدِ لِلْأَذَانِ وَالصَّلَاةِ وَعَلَيْهِ بَهَاءُ الْعِبَادَةِ وَأَنْوَارُ الطَّاعَةِ . فَرَقِيَ يَوْمًا الْمَنَارَةَ عَلَى عَادَتِهِ لِلْأَذَانِ وَكَانَتْ تَحْتَ الْمَنَارَةِ دَارٌ لِنَصْرَانِيٍّ ذِمِّيٍّ . فَاطَّلَعَ فِيهَا فَرَأَى ابْنَةَ صَاحِبِ الدَّارِ وَكَانَتْ جَمِيلَةً . فَافْتُتِنَ بِهَا ، وَتَرَكَ الْأَذَانَ وَنَزَلَ إِلَيْهَا . فَقَالَتْ لَهُ : مَا شَأْنُكَ وَمَا تُرِيدُ ؟ فَقَالَ أَنْتِ أُرِيدُ . قَالَتْ لَا أُجِيبُكَ إِلَى رِيبَةٍ . قَالَ لَهَا أَتَزَوَّجُكِ . قَالَتْ لَهُ : أَنْتَ مُسْلِمٌ وَأَبِي لَا يُزَوِّجُنِي بِكَ . قَالَ : أَتَنَصَّرُ . قَالَتْ لَهُ : إِنْ فَعَلْتَ أَفْعَلُ . فَتَنَصَّرَ لِيَتَزَوَّجَ بِهَا . وَأَقَامَ مَعَهُمْ فِي الدَّارِ . فَلَمَّا كَانَ فِي أَثْنَاءِ ذَلِكَ الْيَوْمِ رَقِيَ إِلَى سَطْحٍ كَانَ فِي الدَّارِ فَسَقَطَ . فَمَاتَ . فَلَا هُوَ فَازَ بِدِينِهِ وَلَا هُوَ تَمَتَّعَ بِهَا . نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ مَكْرِهِ وَسُوءِ الْعَاقِبَةِ وَسُوءِ الْخَاتِمَةِ . الکبائر للذهبي الْكَبِيرَةُ الثَّالِثَةُ وَالسِّتُّونَ الأَمْنُ من مكر الله ص ۲۲۸ .

دا واقعه په " الزواجر " کې داسې ذکر ده : وَكَانَ بِمِصْرَ مُؤَذِّنٌ عَلَيْهِ سِيمَا الصَّلَاحِ . فَرَأَى نَصْرَانِيَّةً مِنَ الْمَنَارَةِ فَافْتُتِنَ بِهَا فَذَهَبَ إِلَيْهَا فَامْتَنَعَتْ أَنْ تُجِيبَهُ لِرِيبَةٍ . فَقَالَ : النِّكَاحُ . فَقَالَتْ : أَنْتَ مُسْلِمٌ وَلَا يَرْضَى أَبِي . فَقَالَ إِنَّهُ يَتَنَصَّرُ . فَقَالَتْ : الْآنَ يُجِيبُكَ . فَتَنَصَّرَ وَوَعَدُوهُ أَنْ يُدْخِلُوهُ عَلَيْهَا . فَفِي أَثْنَاءِ ذَلِكَ الْيَوْمِ رَقِيَ سَطْحًا لِحَاجَةٍ فَزَلَّتْ قَدَمُهُ . فَوَقَعَ مَيِّتًا ، فَلَا هُوَ بِدِينِهِ وَلَا هُوَ بِهَا . فَنَعُوذُ بِاللهِ مِنْ مَكْرِهِ . وَنَعُوذُ بِهِ مِنْهُ وَبِمُعَافَاتِهِ مِنْ عُقُوبَتِهِ وَبِرِضَاهُ مِنْ سَخَطِهِ . الزواجر عن اقتراف الكبائر ص ۱۴۷ الْكَبِيرَةُ التَّاسِعَةُ وَالثَّلَاثُونَ الْأَمْنُ مِنْ مَكْرِ اللهِ بِالِاسْتِرْسَالِ فِي الْمَعَاصِي .

**عبرت** : محترمو ! تاسو واوريدل چې صرف د بَدنظرۍ په وجه يې آخري اَنجام عيسائي کيدل شو ، او د دُنيا نه بې اِيمانه لاړ .

## د بَد نظرۍ په وجه د مرګ په وخت کلمه شهادت په خُله نه جاري کيدل

شيخ الحديث مولانا زکريا رَحِمَهُ اللهُ دا واقعه رانقل کړې چې د يو کس د وفات کيدو وخت نزدې شو خلقو هغه ته د کليمې تلقين کولو خو هغه به دا ويل چې زما ژبه په دې باندې نه چليږي ، خلقو ورنه ددې د سبب پوښتنه اوکړه ، نو هغه وويل :

يوه ښځه ماته د تَوليه اخيستلو د پاره راغلې وه ، هغه زما خوَښه شوه او ما هغې ته د شهوت په نظر کتل ( نو ځکه مې اوس په خُله باندې کلِمه شهادَت نه راځي ) . (۱)

## د بَد نظرۍ په وجه د قيامت سخته سزا

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

مَنْ نَظَرَ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَجْنَبِيَّةٍ عَنْ شَهْوَةٍ صُبَّ فِيْ عَيْنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . (۲)

څوک چې د پرَدۍ ښځې مَحاسنو ته د شهوت په نظر سره اوګوري نو د قيامت په ورځ به دده په دواړو سترګو کې ويلې کړې شوې تانبه واچولې شي .

## بَدنظرۍ سره قوّتِ حافظه کمزورې کيږي

مولانا خليل احمد سهارنپوري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې پرَدو ښځو ته يا بې ګيرې ښائسته هلکانو ته د شهوت په نظر باندې کتلو سره قوّتِ حافظه کمزورې کيږي .

او ددې د تصديق دپاره دا خبره کافي ده چې کوم حافظان په بَدنظرۍ کې مبتلاء وي هغوی ته قرآن کريم صحيح نه ياديږي .

ځکه بَدنظري ګناه ده ، او هرې ګناه سره حافظه کمزورې کيږي .

---

(۱) آپ بيتی ج ٦ ص ۴۲۰ .

(۲) الهداية في شرح بداية المبتدي كتاب الكراهية فصل: في الوطء والنظر واللمس ج ۴ ص ۳٦۸ ، المبسوط للسرخسي ج ۱۰ ص ۱۵۳ كِتَابُ الِاسْتِحْسَانِ النَّظَرُ إلَى الْأَجْنَبِيَّاتِ . البحر الرائق ج ۸ ص ۲۱۸ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَاللَّمْسِ .

## د امام شافعي رَحِمَهُ الله خپل استاذ ته د حافظې د کمزورتیا شکایت

امام شافعي رحمه الله فرمایي : چې ما خپل استاذ وکیع رَحِمَهُ الله ته د حافظې د کمزورتیا شکایت اوکړو ، نو هغه راته دا وصیت اوکړو : چې ګناهونه پرېږده نو حافظه به دې مضبوطه شي ، په اشعارو کې یې دا خبره بیان کړې :

شَكَوْتُ إِلَى وَكِيعٍ سُوْءَ حِفْظِي ❁ فَأَرْشَدَنِي إِلَى تَرْكِ الْمَعَاصِي

وَأَخْبَرَنِي بِأَنَّ الْعِلْمَ نُوْرٌ ❁ وَنُوْرُ اللهِ لَا يُعْطَى لِعَاصِي .(۱)

ما خپل استاذ وکیع رَحِمَهُ الله ته د حافظې د خرابۍ (کمزورتیا) شکایت اوکړو ، نو هغه راته وصیت اوکړو چې ګناهونه پرېږده (نو حافظه به دې صحیح شي) .

او دا خبر یې راکړو (چې د ګناهونو سره ځکه حافظه کمزوري کیږي) چې علم یو نور دی ، او ګناهګار ته د الله ﷻ نور نشي ورکولی .

## د بد نظرۍ په وجه قرآن کریم هیرېدل

۱. علامه ابن جوزي رَحِمَهُ الله په خپل کتاب " تلبیس ابلیس " کې دا واقعه رانقل کړې : ابوعبدالله بن جلاء فرمایي چې زه (په یو ځای کې) ولاړ وُوم او یو ښائسته نصراني هلک ته مې کتل ، په دې وخت کې د ما سره څنګ کې ابوعبدالله بلخي رَحِمَهُ الله تیریدو ، هغه د مانه پوښتنه اوکړه : دلته څنګه ولاړ یې ؟ ما ورته وویل :

يَا عَمِّ ! أَمَا تَرَى هٰذِهِ الصُّوْرَةَ كَيْفَ تُعَذَّبُ بِالنَّارِ ؟

اې تره ! آیا ته دا ښائسته صورت ګورې ده ته به څنګه (د جهنم) عذاب ورکړې شي ؟

هغه زه د اُولې په مینځ کې اُووهلم او راته وې ویل :

ته به خامخا ددې (بدنظرۍ) خرابه نتیجه اوګورې .

ابوعبدالله بن جلاء وایي :

فَوَجَدْتُ غِبَّهَا بَعْدَ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً أَنْ أُنْسِيْتُ الْقُرْآنَ .

---

(۱) دیوان الامام الشافعي رحمه الله قافیة الصاد ترک المعاصي .

دا دویم شعر داسې هم نقل دی ، فَإِنَّ الْعِلْمَ نُوْرٌ مِنْ إِلٰهِيْ ❁ وَنُوْرُ اللهِ لَا يُعْطَى لِعَاصِيْ

پس ما څلویښت (۴۰) کاله پس ددې خرابه نتیجه اُولیده هغه دا چې د مانه قرآن کریم هیر شو . (۱)

۲ . علامه ابن جوزي رَحِمَهُ اللهُ همدا سې یوه بله واقعه هم رانقل کړی :

ابوالادیان وایي چې زه د خپل اُستاذ سره ووم ، په مونږ باندې یو ځوان (نباشسته) هلک تیر شو ، ما هغه ته (په خراب نظر) کتل ، زه خپل اُستاذ په دې کتلو باندې اُولیدم ، راته وې ویل : یَا بُنَيَّ ! لَتَجِدَنَّ غِبَّةً وَلَوْ بَعْدَ حِيْنٍ .

اې بچیه ! ته به ددې خرابه نتیجه اوګوری اګرچې څه وخت پس وي .

دا کس وایي چې ما شل (۲۰) کاله انتظار اوکړو خو ما ددې خرابه نتیجه اُو نه لیدله ، یوه شپه ما همدا سوچ کولو ، اُوده شوم :

فَأَصْبَحْتُ وَقَدْ أَنْسَيْتُ الْقُرْآنَ كُلَّهُ .

زه چې کله سهر راپاڅیدم نو د ما نه ټول قرآن کریم هیر شوې وُ . (۲)

## بَدنظرۍ سره په دُنیا کې د غیب ځپیړه

د ډیرو ګناهونو سزا آخرت ته روستو کیږي خو کله کله الله تعالی د نورو خلقو د عبرت د پاره په دُنیا کې د یوې ګناه سزا هغه کس ته ورکړي :

د یو بزرګ په باره کې راځي چې د هغه یوه سترګه روغه وه او بله یې ړنده وه ، طواف یې

---

(۱) عَنْ أَبِي عَبْدِ اللهِ بْنِ الجلاء قَالَ كنتُ أنظرُ إِلَى غلام نصراني حسن الوجه . فَمَرَّ بِيْ أَبُو عَبْدِ اللهِ البلخي فَقَالَ: أيش وقوفك ؟ فقلتُ : يَا عَمِّ ! أَمَا تَرَى هَذِهِ الصُّوْرَةَ كَيْفَ تُعَذَّبُ بِالنَّارِ ؟ فضرب بيده بين كتفي وقال: لَتَجِدَنَّ غِبَّهَا وَلَوْ بَعْدَ حِيْنٍ . قَالَ : فَوَجَدْتُ غِبَّهَا بَعْدَ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً أَنْ أُنْسِيْتُ الْقُرْآنَ . تلبيس إبليس ذكر تلبيس إبليس عَلَى كثير من الصوفية في صحبة الأحداث فصل: في عقوبة النظر إلى المردان ص ۲۴۶ .

(۲) عَنْ أَبِي الأديان قَالَ كنت مَعَ أُستاذي وأبي بَكْر الدقاق فمرّ حدث فنظرتُ إليه فرآني أُستاذي وأنا أنظرُ إليه . فَقَالَ : يَا بُنَيَّ ! لَتَجِدَنَّ غِبَّةً وَلَوْ بَعْدَ حِيْنٍ . فبقيتُ عشرينَ سنةً وأنا أراعي فما أجدُ ذلك الغبّ . فنمتُ ذات ليلة وأنا مفكر فيه فَأَصْبَحْتُ وَقَدْ أُنْسِيْتُ الْقُرْآنَ كُلَّهُ . تلبيس إبليس ذكر تلبيس إبليس عَلَى كثير من الصوفية في صحبة الأحداث فصل: في عقوبة النظر إلى المردان ص ۲۴۶ .

کولو او په طواف کې يې همدا ويل : اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِکَ مِنْ غَضَبِکَ

اې الله ! زه پناه غواړم په تا سره ستا د غضب نه .

چا ورنه پوښتنه اوکړه : دا څه وجه ده چې ته د الله ﷻ نه دومره يريږې؟

هغه ووېل : ما يو ځل يو هلک ته په غلط نظر باندې اوکتل نو سمدستي په غيبي څپېړه باندې زما سترګه اُولړېده او ړنده شوه ، اوس يريږم چې دوباره په غيبي څپېړه او نه نړه او دا بله سترګه مې ړنده نشي .(۱)

## بدنظرۍ سره زخم نور هم تازه کيږي

حافظ ابن قيم رحمه الله فرمايي : چې د بدنظرۍ غشي چا طرف ته اُوويشتې شي نو هغې نه مخکې دا ويشتونکې قتلوي : ځکه بدنظرۍ والـه کس د کمان کوي چې په دې کتلو کې به زما د زړه زخم جوړ شي حالانکه په دې سره د دې زخم نور هم تازه کيږي .

## په زړه کې ظلمت پيدا کيدل . او د عبادت مزه ختميدل

بدنظرۍ سره په زړه کې ظلمت پيدا کيږي ، او زړه پريشانه کيږي .

بيا اکثره د انسان نه د عبادت توفيق سلب شي ، يا کم از کم د عبادت خوند او مزه خو ورسره ضرور ختميږي .

بزرګانو دا خبره ليکلې چې بدنظرۍ سره د ذکر و اذکار مزه هم ختميږي .

همدارنګې په بدنظرۍ سره په سترګو کې ظلمت هم پيدا کيږي او بې نوره کيږي .

## بد نظرۍ سره د ژوند برکت ختميږي

د بدنظرۍ يو نقصان دادې چې د انسان په ژوند ، رزق او وخت کې برکت ختميږي . د ورو ورو کارونو نه ورته غټې غټې مسئلې جوړې شي ، او ټول ژوند يې پريشانه وي .

## بد نظرۍ سره په جسم کې بدبوئي پيدا کيږي

مولانا زکريا رحمه الله فرمايي چې بدنظري داسې بيکاره ګناه ده چې د دې په وجه په جسم

(۱) غض البصر ص ۱۶ بدنظري ... ص ۵۱

(۲) بيهقي ج ۶ ص ۲۱۷

او کېږو کې بَدبُوئي پیدا کيږي .

او کوم خلق چې د خپل نظر حفاظت کوي (ناجائزو ځایونو ته نه ګوري) او د پاکدامنۍ ژوند تیروي نو د دوی د جسم نه قدرتي خوشبوئي ځي .

## په دې ګناه کې هر قسمه خلق مبتلاء دي

د بَدنظرۍ ګناه عامه ده ، په دې کې هر قِسمه خلق مبتلاء دي ، تر دې چې بُوډاګان او بعضې په ظاهره دِینداره خلق هم ددې ګناه نه بچ ندي .

د زِنا نه ډیر خلق محفوظ دي ځکه د زِنا د پاره شرائط او موانع زیات دي : اول پردۍ ښځه راضي کول ضروري وي ، بیا د روپو خرچ کول ضروري وي ، بیا مناسب ځای پیدا کول ضروري وي ، بیا د انسان سره دا یَره وي چې نور څوک راباندې خبر نشي ، حیاء او عزت ته مې نقصان اُو نه رسي ، د هغه نه راته اِیدز یا بله خطرناکه بیماري اُو نه لږي .

لیکن د بَدنظرۍ د پاره شرائط او موانِع نه وي ، په دې کې نه روپۍ خرچ کول شته ، نه د بَدنامۍ خطره شته ، هر کس بغیر د شرائطو او موانعو نه دا ګناه په آسانه کولې شي ، نو ځکه په دې ګناه کې ډیر خلق اَخته دي ، تر دې چې د بعضې بُوډاګانو خپې په قبر کې زوړندې وي خو بیا هم په دې ګناه کې اَخته وي .

## ځان ساتل بیا هم ضروري دي

بعضې خلق په دې باندې دُهوکه شي : "چې کُنې دا ګناه عامه ده هر سړې په کې اَخته دی نو که زه یې هم اوکړم نو دا خبر دی"

خو دا سوچ غلط دی ځکه که یوه ګناه هر څومره عامه شي خو بیا هم ددینه ځان ساتل لازمي دي .

**د مثال په ذریعه وضاحت** : که په یوه علاقه باندې سیلاب راشي او ټول خلق اُوبه ویسي نو که چیرته په دوی کې یو کس ته لامبو ورځي یا په بله طریقه باندې ځان بچ کولې شي نو آیا دا به دا سوچ اوکړي چې : ټول خلق اُوبه وړي پریږده چې ما هم ویسي ؟ هرګز نه ، بلکه دا به ځان بچ کوي . همدغه شان که د بدنظرۍ په ګناه کې ډیر خلق اَخته وي خو بیا به هم انسان ددینه د بچ کولو کوشش کوي .

## بَدنظرۍ نه زړه نه مړیږي

نور ګناهونه داسې دي چې د هغې نه د انسان زړه آخر يوه ورځ موړ شي او توبه ورنه اُوباسي ليکن بَدنظري دومره خطرناکه بيماري ده چې ددينه د انسان زړه بالکل نه مړيږي ، که يو کس تروله ورځ پرَدۍ ښځو ته ګوري خو بيا هم په دې سره دده زړه نه مړيږي ، بلکه همداسې يې دا شوق نور هم زياتيږي.

په دې وخت کې په دې کس باندې د الله تعالی لعنت راوريږي ، او د الله تعالی د رحمت نه لرې وي.

## دا مرض تر مرګه پورې وي

بَدنظري دومره خطرناکه ګناه ده چې دا په چا کې پيدا شي نو بيا تر مرګه پورې وي ، ځکه نور ګناهونه (لکه زِنا ، غلا وغيره) داسې دي چې دا قوّت غواړي ، صرف ځوان کس يې کولې شي ، بُوډا يې نشي کولی ، او د بَدنظري بيماري په بُوډا ګانو کې هم وي ، او تر مرګه پورې په دې کې اَخته وي.

## بَدنظري وړه ګناه ګنړل ندي پکار

بعضې خلقو ته بَدنظري وړه ګناه ښکاري او ددې هيڅ پرواه نه ساتي حالانکه دا د انسان د پاره ډيره نقصاني ده ، او ددې د نقصاني کيدو يو څو وجوهات دي :

۱. چې ډير صغيره ګناهونه په انسان باندې جمع شي نو دا دده د هلاکت سبب ګرځي.

۲. په دې سره شيطان خوشحاليږي او خپل مقصد کې کامياييږي ؛ ځکه شيطان د انسان اَزلي دُښمن دی ، هميشه کوشش کوي چې انسان ګمراه کړي :

کله چې الله تعالی شيطان ته تر قيامته پورې مهلت ورکړو نو هغه قسَم اوکړو چې اوس به زه په هرې طريقې سره انسان ګمراه کوم ، الله تعالی د شيطان خبره رانقل کړې :

﴿ قَالَ فَبِمَآ اَغۡوَيۡتَنِيۡ لَاَقۡعُدَنَّ لَهُمۡ صِرَاطَكَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ ۝ ثُمَّ لَاٰتِيَنَّهُمۡ مِّنۡۢ بَيۡنِ اَيۡدِيۡهِمۡ وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ وَعَنۡ اَيۡمَانِهِمۡ وَعَنۡ شَمَآئِلِهِمۡ وَلَا تَجِدُ اَكۡثَرَهُمۡ شٰكِرِيۡنَ ﴾ (۱)

---

(۱) الاعراف آية ۱۶ ، ۱۷

ترجمه: شیطان (الله ﷻ ته) وویل: په دې وجه چې تا زه ګمراه کړم نو زه به خامخا دې خلقو ته ستا په نبغه لار کې کینم، بیا به خامخا دوی ته د دوی د وړاندې طرف، شا طرف، خي طرف او چپ طرف نه راځم (یعنی دوی به په هرې طریقې سره ګمراه کوم)، او ته به په دوی کې اکثر خلق شکرګزار او نه مومې.

اوس چې انسان بَدنظري یا نور ګناهونه کوي نو په دې سره شیطان خوشحالیږي او په خپل مقصد کې کامیابیږي.

۳. چې کله انسان وړه ګناه بار بار کوي نو په دې دده د زړه نه د ګناه قباحت اُوځي تر دې چې بیا په ګناه کبیره کې اخته کیږي.

۴. انسان چې په کومو سترګو بَدنظري اوکړي یا د بدن په نورو اَندامونو باندې ګناه اوکړي نو د قیامت په ورځ به همدا اَندامونه دده خلاف ګواهي کوي، الله تعالی فرمایي:

﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا مَا جَآءُوهَا شَهِدَ عَلَيۡهِمۡ سَمۡعُهُمۡ وَأَبۡصَٰرُهُمۡ وَجُلُودُهُم بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ، وَقَالُواْ لِجُلُودِهِمۡ لِمَ شَهِدتُّمۡ عَلَيۡنَاۖ قَالُوٓاْ أَنطَقَنَا ٱللَّهُ ٱلَّذِيٓ أَنطَقَ كُلَّ شَيۡءٖۚ وَهُوَ خَلَقَكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةٖ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ﴾.(۱)

ترجمه: تر دې چې کله دا د الله دُښمان جهنم ته (نزدې) راشي نو په دوی باندې به د دوی غوږونه، د دوی سترګې، او د دوی څرمنې د هغه کارونو په باره کې ګواهي ورکړي کوم به چې دوی په دُنیا کې کول. دوی به خپلو څرمنو ته اووایي چې: تاسو په مونږ باندې ولې ګواهي ورکړه؟ هغوی به اووایي: مونږ هغه الله ګویا کړو کوم چې هر څیز ګویا کړې دی، او هغه تاسو په اول ځل پیدا کړي یَی، او هم هغه طرف ته به تاسو واپس ورګرځولې شی.

یقیني چې دا به سخت حالت وي چې په انسان باندې د الله ﷻ د وړاندې خپل اَندامونه ګواهي اوکړي " چې ده په ما باندې دا دا کارونه کړي دي ". (۱)

---

(۱) فصلت (حم السجدة) آیة ۲۰، ۲۱.

# بَدنظرۍ خلقو ته ګناه نه معلومیږي نو ددېنه د توبې توفیق هم ورته نه نصیبه کیږي

نن صبا په بَدنظرۍ کې ډیر خلق مبتلاء دي ، دا خلقو ته هیڅ ګناه نه معلومیږي ، حالانکه دا ډیره خطرناکه خبره ده . ځکه د ټولو نه غټه ګمراهي همداده چې یو سړی په ګناه کې اخته وي ، خو دده سره دا احساس هم نوي چې زه ګناه کوم ، نو په دې سره په ده باندې د الله ﷻ قهر او غضب نازلیږي ، او داسې کس ته الله ﷻ د توبې توفیق هم نه ورکوي .

البته که یو کس ګناه کوي خو دده سره دا احساس هم وي چې زه د الله ﷻ نافرماني کوم ، په خپل زړه کې ورباندې پښیمانه وي ، نو اُمید شته چې داسې کس ته الله ﷻ د توبې توفیق هم ورکړي .

# د مثال په ذریعه وضاحت

که چیرته یو کس مریض وي خو ده ته دا احساس وي چې زه مریض یم ، علاج طرفته متوجه وي او دوائې خوري نو اُمید شته چې دا روغ شي ، او مرض یې ختم شي .

---

(۱) إياك والصغائر: قد تدعوك نفسك للتساهل ببعض الصغائر ( النظر . المقدمات... ) وقد يتطور إلى الخلوة المحرمة . ولا شك أنّ الصغائر ليست كالفواحش الكبيرة لكن : أ. الصغائر يحتقرها المرء وحين يجتمع بعضها على العبد تهلكه. ب . لا تنس أنك في معركة دائمة مع عدو لدود يدعوك للهلاك من كل سبيل. ويسلك لإغوائك كل مسلك. إنه القائل ﴿ ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم مِّنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَٰنِهِمْ وَعَن شَمَآئِلِهِمْ ۖ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَٰكِرِينَ ﴾ ( الاعراف آية ۱۷ ) فأنت يا أخي حين تتساهل بالمعصية تفرح هذا العدو الحاقد . وتمده بالسلاح الذي يقاتلك به . ج . إن وقوعك في المعصية الصغيرة وتساهلك بها . يزيل استقباح المعصية من قلبك فتعتاد عليها . حتى تقع فيما هو أكبر منها . د . احذر من أن تشهد عليك جوارحك: هل تستطيع يوما من الأيام أن تقارف معصية دون أن تستخدم جوارحك؟ ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا مَا جَآءُوهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ وَأَبْصَٰرُهُم... ﴾ ( فصلت آية ۲۰ ، ۲۱ ) إنه مشهد رهيب وموقف عصيب يوم تنطق هذه الجوارح التي هي أول ما يتمتع بلذة المعصية . يوم تنطق على المرء بما كان يعمل . تعلم كيف تغض بصرك

خو که ده ته د سره دا احساس هم نه وي چې ګني زه مريض يم ، او علاج نه کوي ، نو داسې يو وخت به راشي چې دده دا مرض به زيات شي ، او دده د مرګ سبب به او ګرځي .

دغه شان که يو انسان ګناه کوي خو ده ته د ګناه احساس وي او پرې پښيمانه هم وي ، نو يو ورځ به ورته الله ﷻ د توبې توفيق ورکړي ، او ګناهونه به يې معاف کړي .

خو که ده ته د سره د ګناه احساس هم نوي ، توبه نه اُوباسي ، نو دا ددې انسان دپاره د هلاکت سبب ګرځي ، داسې کس ته الله ﷻ د توبې توفيق هم نه ورکوي .

## د بَدنظرۍ نقصانات

بَدنظري د زِنا اوله پوړۍ ده ، ددې په وجه خواهشات راپورته کيږي ، دا انسان حرامو طرف ته راکاږي ، زړه او اخلاق خرابوي ، بَدنظري علامه ددې ده چې په دې کس کې حياء او تميز نشته . بَدنظري په معاشره کې د بې حيايۍ خورولو ذريعه ده . (۱)

## د بدنظرۍ د جواز د پاره غلط دليل

۱ . بعضې جاهله خلق د بَدنظرۍ د جواز د پاره دا دليل پيش کوي چې :

" مونږ ښاسته مخونو ته ځکه ګورو چې په دې کې مونږ ته د الله ﷻ قدرتونه ښکاري او زمونږ په ايمان کې پرې زيادت راځي " .

ددې جواب دادی چې دا اِنتهائي د بې وقوفتيا خبره او شيطاني دُهوکه ده ، ځکه الله تعالى خو د عبرت د پاره نور ډير شيان پيدا کړي دي ، په قرآن کريم کې د هغې تذکره شته ، الله تعالى فرمايي :

﴿ وَفِيٓ أَنفُسِكُمۡۚ أَفَلَا تُبۡصِرُونَ ﴾ .(۲)

---

(۱) مِنْ مَضَارِ إِطْلَاقِ الْبَصَرِ : إِطْلَاقُ الْبَصَرِ بَرِيدُ الزِّنَا وَرَسُولُهُ الْأَوَّلُ . لَوْعَةُ الْقَلْبِ وَهِيَاجُ الشَّوْقِ فَيَجُرُّ إِلَى الْحَرَامِ . يُفْسِدُ الْقَلْبَ وَالْخُلُقَ . دَلِيلُ قِلَّةِ الْحَيَاءِ وَفَقْدِ الْحِشْمَةِ . مِنْ أَسْبَابِ شُيُوعِ الْفَاحِشَةِ فِي الْمُجْتَمَعَاتِ فَتَسْقُطُ وَتَنْهَارُ . نضرة النعيم ج ۹ ص ۳۹۱۱ إطلاق البصر .

(۲) الذاريات آية ۲۱ .

ترجمه : او پخپله ستاسو په ځانونو کې هم (ډیرې نخې دي) ، نو آیا تاسو دا په غور سره نه ګورئ ؟ (او تاسو ته نه ښکاري ؟).

بل ځای فرمایي :

﴿ اَفَلَا يَنْظُرُوْنَ اِلَى الْاِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ۝ وَاِلَى السَّمَآءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ۝ وَاِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ۝ وَاِلَى الْاَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ ﴾ .(۱)

ترجمه : پس آیا دوی اُوښ ته نه ګوري چې څنګه پیدا کړې شو ؟ آسمان ته نه ګوري چې څنګه اُوچت کړې شو ؟ غرونو ته نه ګوري چې څنګه (ټینګ) اُودرولې شو ؟ او زمکې ته نه ګوري چې څنګه اُوغوړولې شوه ؟

بل ځای فرمایي : ﴿ اَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِيْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ .(۲)

ترجمه : آیا دوی چیرته د آسمانونو او زمکې په حکومت کې (په غور) ندي کتلي ؟

(د دینه علاوه په نورو آیتونو کې هم ددې حکم شوی) .(۳)

عجیبه داده چې کومو څیزونو ته الله تعالی د عبرت په نظر د کتلو حکم کړی دا جاهل خلق هغې ته نه ګوري ، او کومو څیزونو ته چې الله تعالی د کتلو نه منع کړی دوی هغې ته ګوري او بهانه دا جوړوي چې په دې کې مونږ د الله تعالی قدرتونه ګورو .(۴)

---

(۱) الغاشية آية ۱۷ تا ۲۰ .

(۲) الاعراف آية ۱۸۵ .

(۳) ﴿ اُنْظُرُوْٓا اِلٰى ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴾ الانعام آية ۹۹ .

ترجمه : تاسو ددې اُونو میوو ته اوګورئ چې کله دا (اُونې) میوه اُونیسي ، او ددې پخیدو ته اوګورئ ، بیشکه په دې کې (د الله د قدرت ښکاره) نخې دي د هغه قوم د پاره چې هغوی ایمان لري

﴿ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴾ النمل آية ٦٩ .

ترجمه : (اې پیغمبره !) ته ورته اووایه چې تاسو په زمکه کې اوګرځئ بیا اوګورئ چې د مجرمانو اَنجام څنګه شو ؟

(۴) علامه ابن جوزي رحمه الله په خپل کتاب " تلبیس ابلیس " کې دا خبره داسې رانقل کړی :

أَخْبَرَنَا أَبُو القاسم الحريري أَنْبَأَنَا أَبُو الطيب الطَّبَرِيّ قَالَ بلغني عَنْ هذه الطائفة التي تسمع السماع أنها تضيف إليه النظر إلى وجه الأمرد وربما زينته بالحلي والمصبغات من الثياب والحواشي ← ← ← ← ←

د الله تعالی قدرتونه خو په نورو ډیرو شیانو کې موجود دي : انسان دې رَنګا رَنګ ښائسته ګلانو او ددې خوشبوئي ته سوچ اوکړي ، دې ښائسته میوو ته دې سوچ اوکړي ، دې ښائسته مرغانو او ددې خوَږو آوازونو ته دې سوچ اوکړي ، غرونو او ښائسته چینو ته دې سوچ اوکړي ، دې ښائسته بُوټو ته دې سوچ اوکړي ، دَریابونو او په دریاب کې ښائسته ماهیانو ته دې سوچ اوکړي ، آسمان او په آسمان کې موجود ښائسته ستورو ، نمر او سپوږمۍ ته دې سوچ اوکړي .

دا خوعجیبه ده چې دې جاهِل خلقو ته صرف په ښائسته مخونو کې د الله ﷻ قدرتونه ښکاري او نورو ورته په هیڅ شي کې نه ښکاري .

داسې بَدتمیزه خلقو ته الله ﷻ یا ددې ګناه نه د توبې توفیق هم نه ورکوي .

**د تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ عجیبه جواب** : یو کس د مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ مخې ته ولاړ وُ ، او نظر یې غلط استعمالول ، تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ ورنه پوښتنه اوکړه چې ناجائز ځایونو ته ولې ګورې ؟ هغه ورته په جواب کې وویل :

زه په دې ښائسته مخونو کې د الله تعالی قدرتونه ګورم .

تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته د عبرت نه ډک جواب ورکړو چې : بیا خو ته د خپلې مور شرمګاه ته

---

←←← وتزعم أنها تقصد به الازدياد في الإيمان بالنظر والاعتبار والاستدلال بالصنعة عَلَى الصانع وهذه النهاية فِي متابعة الهوى ومخادعة العقل ومخالفة العلم قَالَ الله تعالى: ﴿ وَفِي أَنفُسِكُمْ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴾ وقال: ﴿ أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ﴾ وقال: ﴿ أَوَلَمْ يَنظُرُوا فِي مَلَكُوتِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ فعدلوا عما أمرهم الله به من الاعتبار إِلَى مَا نهاهم عنه وإنما تفعل هذه الطائفة مَا ذكرناه بعد تناول الألوان الطيبة والمآكل الشهية فَإِذَا استوفت منها نفوسهم طالبتهم بما يتبعها من السماع والرقص والاستمتاع بالنظر إِلَى وجوه المرد ولو أنهم تقللوا من الطعام لم يحنوا إِلَى سماع ونظر ..... وكل من قَالَ أنا أجد من الصور المستحسنة عبرا كذبناه وكل من ميز نفسه بطبيعة تخرجه عَنْ طباعنا بالدعوى كذبناه وإنما هذه خدع الشيطان للمدعين القسم الخاص قوم صحبوا المردان ومنعوا أنفسهم من الفواحش يعتقدون ذلك مجاهدة وما يعلمون أن نفس صحبتهم والنظر إليهم بشهوة معصية . تلبيس إبليس ذكر تلبيس إبليس عَلَى كثير من الصوفية في صحبة الأحداث ص ۲۳۸ .

ګوره او دا سوچ کوه چې څنګه الله تعالی ته ددې ورېږ لارې نه پيدا کړې يی ؟ (۱)

(دا جواب اګر چې په ظاهره ډير سخت معلومېږي خو بې غيرته سړي ته همداسې جواب ورکول پکار دي).

۲ . علامه ابن عقيل رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: څوک چې دا وايي چې :

" که زه ښائسته مخونو ته ګورم نو څه پروا نشته ځکه زما په خپل ځان باندې کنټرول حاصل دی، او د ما نه څه خطره نشته"

نو دداسې کس خبرې ته هيڅ اعتبار نشته ، ځکه د شريعت حکم عام دی ټولو خلقو ته دی ، هيڅوک ددينه مستثنی ندي ، بل دا چې دده دا خبره د قرآن کريم د صريحو آيتونو مخالف ده ، ځکه الله تعالی ټولو مؤمنانو ته د نظر ښکته کولو حکم کړی . (۲)

۳ . د يو عالم نه چا پوښتنه اوکړه : بعضې خلق د پردیو (غير مَحرَم) ښځو سره ناست وي او بيا دوی وايي چې :

" زمونږ نظر پاک دی ، مونږ چې دوی ته ګورو نو په غلط نظر باندې ورته نه ګورو "

دې عالِم ورته ووېل : ترڅو پورې چې د انسان جسم باقي وي نو آمر او نهي به هم باقي وي ، او دا کس به د حلال و حرام مخاطب وي . (۳)

---

(۱) حیاء اور پاکدامنی ص ٦٥ .

(۲) قَالَ ابن عقيل قول من قَالَ لا أخاف من رؤية الصور المستحسنة ليس بشيء فَإِنّ الشريعة جاءت عامة الخطاب لا تميز الأشخاص وآيات القرآن تنكر هذه الدعاوى قَالَ الله تعالى: { قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ } وقال: { أَفَلَا يَنْظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ . وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ . وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ } فلم يحل النظر إلا عَلَى صور لا ميل للنفس إليها ولا حظ فيها بل عبرة لا يمازجها شهوة ولا تعتريها لذة فأما صور الشهوات فإنها تعبر عَن العبرة بالشهوة . وكل صورة ليست بعبرة لا ينبغي أن ينظر إليها لأنها قد تكون سببا للفتنة ولذلك مَا بعث الله تعالى امرأة بالرسالة ولا جعلها قاضيا ولا إماما ولا مؤذنا كل ذلك لأنها محل فتنة وشهوة . وربما قطعت عما قصدته الشريعة بالنظر . تلبيس إبليس ذكر تلبيس إبليس عَلَى كثير من الصوفية في صحبة الأحداث ص ٢٣٩ .

(۳) عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السلمي قَالَ قيل لأبي نصر النصرا باذي : إن بعض الناس يجالس ←←←←

# قصدًا پردې ښځې ته کتونکي باندې د الله ﷻ لعنت راوريږي

څوک چې بِلا عُذره قصدًا پرَدې ښځې ته ګوري نو په داسې کس باندې د الله تعالی لعنت راوريږي ، او کومه ښځه چې قصدًا بِلاضرورته پرَدو سړو ته خپل زِينت ښکاره کوي نو په داسې ښځه هم د الله تعالی لعنت راوريږي .

رسولُ الله ﷺ فرمايي : لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُوْرَ إِلَيْهِ . (١)

الله تعالی په کتونکي باندې او څه ته چې کتلې شي په هغوی باندې لعنت ليږلې دی .

يعنی کوم کس چې بِلاعُذره پرَدې ښځې ته يا بل هغه ځای ته ګوري چې شريعت هغې ته کتل حرام کړي وي نو په داسې سړي د الله تعالی لعنت وي ، همدارنګې کومه ښځه چې قصدًا بِلا عُذره پرَدو سړو ته خپل ښائست ښکاره کوي نو په دې باندې هم د الله ﷻ لعنت راوريږي . (٢)

ددينه معلومه شوه چې کومه ښځه بازار ته بې پَردې لاړه شي او ديته کوم کس بِلاعُذره قصدًا ګوري نو په دې دواړو باندې د الله تعالی لعنت راوريږي .

همدارنګې که غير مَحرَم کس کور ته ننوځي او زَنانه ورنه پَرده نه کوي ، دواړه يو بل ته ګوري نو په دوی باندې هم د الله ﷻ لعنت راوريږي ؛ ځکه په دې حديث کې د قاعده کُليه په طور باندې هر حرام نظر مستحق د لعنت ګرځول شوی . (٣)

---

←←← النسوان ويقول أنا معصوم في رؤيتهن . فقَالَ : مَا دامت الأشباح قائمة فَإِن الأمر والنهي باق والتحليل والتحريم مخاطب به ولن يجترىء عَلَى الشبهات إلا من يتعرض للمحرمات . تلبيس إبليس بيان جملة مروية عَلَى الصوفية من الأفعال المنكرة ص ٣٢٥ .

(١) شعب الايمان رقم الحديث ٧٣٩٩ ، مشكوة المصابيح كتاب النِكَاح بَابُ النظر إلَى المَخطوبة وَبيَان العورات الفصل الثالث رقم الحديث ٣١٢٥(٢٨) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ١٣٥٦٦ ، كنز العمال رقم الحديث ١٩١٦٢ ، و رقم الحديث ٢٦٦٣٤ .

(٢) (لَعَنَ اللهُ النَّاظِرَ) أَيْ بِالْقَصْدِ وَالإِخْتِيَارِ (وَالْمَنْظُوْرَ إِلَيْهِ) أَيْ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ وَاضْطِرَارٍ. وَحُذِفَ الْمَفْعُوْلُ لِيَعُمَّ جَمِيْعَ مَالَا يَجُوْزُ النَّظَرُ إِلَيْهِ تَفْخِيْمًا لِشَأْنِهِ . مرقاة المفاتيح ج ٥ ص ٢٠٥٩ في تشريح حديث ٣١٢٥ .

(٣) شرعي پرده لمولانا عاشق الهي بلند شهري ص ٥٣ .

# چې د فتنې يره وي نو بيا بالاتفاق د پردۍ ښځې مخ ته کتل ناجائز دي

په دُرِّ مختار کې ذکر دي:

(فَإِنْ خَافَ الشَّهْوَةَ) أَوْ شَكَّ (اِمْتَنَعَ نَظَرُهُ إِلىٰ وَجْهِهَا) فَحِلُّ النَّظَرِ مُقَيَّدٌ بِعَدَمِ الشَّهْوَةِ وَإِلَّا فَحَرَامٌ . وَهٰذَا فِيْ زَمَانِهِمْ، وَأَمَّا فِيْ زَمَانِنَا فَمَنَعَ مِنَ الشَّابَّةِ . (إِلَّا) النَّظَرَ لَا الْمَسَّ (لِحَاجَةٍ) كَقَاضٍ وَشَاهِدٍ يَحْكُمُ (وَيَشْهَدُ عَلَيْهَا). (۱)

که د شهوت يره يا شک وُ نو بيا د پردۍ زنانه مخ ته کتل منع دي، پس د کتلو جواز مُقيد دی په دې سره چې د شهوت يره نه وي، او که د شهوت يره وه نو بيا ورته کتل حرام دي، او دا په کتلو سره د شهوت نه راپيدا کيدل به د پخواني بزرګانو په زمانه کې کيدې شو خو اوس زمونږ په دې زمانه کې ځوانې ښځې ته کتل مطلقًا منع دي (ځکه دا د فتنې زمانه ده) البته د ضرورت په وخت ورته کتل جائز دي لکه قاضي چې د زنانه په باره کې فيصله کوي، يا ګواه ورباندې ګواهي کوي، خو په دې صورت کې هم د پردۍ ښځې مسه کول ناجائز دي.

په بحر الرائق کې ذکر دي:

وَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا مُلَازَمَةَ بَيْنَ كَوْنِهِ لَيْسَ بِعَوْرَةٍ وَجَوَازِ النَّظَرِ إِلَيْهِ فَحِلُّ النَّظَرِ مَنُوْطٌ بِعَدَمِ خَشْيَةِ الشَّهْوَةِ مَعَ انْتِفَاءِ الْعَوْرَةِ، وَلِذَا حَرُمَ النَّظَرُ إِلىٰ وَجْهِهَا وَوَجْهِ الْأَمْرَدِ إِذَا شَكَّ فِي الشَّهْوَةِ وَلَا عَوْرَةَ . قَالَ مَشَايِخُنَا تُمْنَعُ الْمَرْأَةُ الشَّابَّةُ مِنْ كَشْفِ وَجْهِهَا بَيْنَ الرِّجَالِ فِيْ زَمَانِنَا لِلْفِتْنَةِ. (۲)

په دې ځان پوهه کړه چې کله يو اندام عورت نه وي نو ددې دا مطلب ندی چې ګني ديته کتل هم جائز دي، بلکه د کتلو اجازت هله دی چې د شهوت يره نه وي او ورسره دا عورت

---

(۱) الدر المختار كِتَابُ الْحَظْرِ وَالإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ج ٦ ص ۳۷۰. وهكذا في احكام القرآن للجصاص ج ۳ ص ٥۴٦ سورة الاحزاب.

(۲) البحر الرائق شرح كنز الدقائق بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ ج ۱ ص ۲۸۴، رد المحتار على الدر المختار مَطْلَبٌ فِيْ سَتْرِ الْعَوْرَةِ ج ۱ ص ۴۰۷.

نه وي ، لهذا چې کله د پردې زنانه یا د بې ګیرې هلک مخ ته کتلو کې د شهوت شک وي نو دیته کتل حرام دي اګر چې دا عورت ندی . زمونږ مشائخو ویلي چې په دې زمانه کې به ځوانه ښځه د پردو سرو د وړاندې د مخ ښکاره کولو نه منع کولې شي ځکه د فتنې یره ده .

علامه سرخسي رَحِمَهُ اللهُ په مبسوط کې په دې مسئله باندې تفصیلي بحث کړی ، د هغې په آخر کې یې لیکلي دي :

وَهٰذَا كُلُّهُ إِذَا لَمْ يَكُنِ النَّظَرُ عَنْ شَهْوَةٍ . فَإِنْ كَانَ يَعْلَمُ أَنَّهُ إِنْ نَظَرَ اِشْتَهٰى لَمْ يَحِلَّ لَهُ النَّظَرُ إِلٰى شَيْءٍ مِنْهَا . (۱)

دا د پردې زنانه مخ او لاسونو ته د کتلو جائز کیدل هله دي چې دا کتل په شهوت سره نه وي ، او که کتونکې په دې باندې پوهیږي چې که دا هغې ته اوګوري نو شهوت یې راولاړیږي نو بیا ده ته د پردې زنانه هیڅ اندام ته کتل جائز ندي .

په تفسیر معارف القرآن کې ذکر دي : په دې خبره د ټولو فقهاوو اتفاق دی چې کله د زنانه د پاره د مخ په ښکاره کولو سره د فتنې یره وي نو بیا یې ښکاره کول ناجائز دي ، او دیته کتل هم ناجائز دي .

دا ښکاره خبره ده چې د زنانهٔ د ښائست اصلي مرکز مخ دی ، او نن صبا د فتنې او فساد زمانه ده ، د شهوت غلبه ده ، لهذا د سخت ضرورت نه بغیر زنانه د پاره د پردو سرو د وړاندې مخ او لاسونه ښکاره کول منع دي ، او پردو سړو د پاره هم دیته بغیر د ضرورت شرعیه نه کتل منع دي . (۲)

په کشف الباري کې ذکر دي : چې کله د فتنې یره وي نو بیا بِالاتفاق د پردې ښځې مخ ته کتل ناجائز دي ، او چونکه غالب احوالو کې د فتنې یره وي نو ځکه متأخرینو احنافو دا فتوی ورکړی چې مطلقًا پردې ښځې ته کتل ناجائز دي . (۳)

---

(۱) المبسوط للسرخسي ج ۱۰ ص ۱۵۳ النَّظَرُ إِلَى الْأَجْنَبِيَّاتِ. وهكذا في تفسير معارف القرآن سورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ .

(۲) معارف القرآن سورة النور في تشريح آية ۳۱ . وسورة الاحزاب في تشريح آية ۵۳ .

(۳) كشف الباري كتاب الاستيذان ص ۵۰ .

# بلا ضرورت د پردې ښځې مخ ته کتل ګناه ده

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي : إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمْ امْرَأَةً فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا إِذَا كَانَ إِنَّمَا يَنْظُرُ إِلَيْهَا لِخِطْبَةٍ وَإِنْ كَانَتْ لَا تَعْلَمُ . (١)

کله چې په تاسو کې څوک يوې ښځې ته د نکاح پيغام ورليږي نو په ده باندې څه ګناه نشته چې هغې ته اوګوري خو شرط دادی چې دا هغې ته د نکاح کولو په غرض ګوري اګر چې هغه پوهه نه وي . (خو د لذت حاصلولو په غرض به نه ورګوري )

**فائده** : په دې حديث کې ذکر شو چې څوک د کومې ښځې سره د نکاح کولو اراده لري نو " فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ " دده د پاره هغې ته په کتلو کې ګناه نشته ، ددينه معلومه شوه چې که څوک ديته د لذت حاصلولو په اراده ، يا د نورو ښځو مخونو ته بلا ضرورته ګوري نو داسې کس ګناهګار دی . (٢)

---

(١) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ٢٣٦٠٢ ، و رقم الحديث ٢٣٦٠٣ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ٩١١ ، مجمع الزوائد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ إِلَى مَنْ يُرِيدُ تَزْوِيجَهُ رقم الحديث ٧٤٥٥ وقال الهيثمي: رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالطَّبَرَانِيُّ فِي الْأَوْسَطِ، وَالْكَبِيرِ، وَرِجَالُ أَحْمَدَ رِجَالُ الصَّحِيحِ . شرح معاني الآثار رقم الحديث ٤٢٧٩٠ .

(٢) إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمْ امْرَأَةً.... وجه الدلالة منه أن النبي صلى الله عليه وسلم، نفى الجناح وهو الإثم عن الخاطب خاصة إذا نظر من مخطوبته بشرط أن يكون نظره للخطبة، فدلّ هذا على أن غير الخاطب آثم بالنظر إلى الأجنبية بكل حال، وكذلك الخاطب إذا نظر لغير الخطبة مثل أن يكون غرضه بالنظر التلذذ والتمتع به نحو ذلك. رسالة الحجاب ص ١٧ .

وكما أن الأحاديث التي ذكرت آنفًا قد دلّت بمنطوقها على جواز نظر الرجل إلى المرأة إذا أراد أن يتزوجها، فكذلك هي دالة بمفهومها على أنه لا يجوز النظر إلى غيرها من سائر الأجنبيات . ويوضح ذلك قوله في حديث أبي حميد رضي الله عنه: إذا كان إنما ينظر إليها لخطبة. فدل على أنه لا يجوز النظر إلى الأجنبية لغير خاطب. وأيضا فوضع البأس والجناح على الخاطب إذا نظر إلى مخطوبته يدل على أنه لا يجوز النظر لغير خاطب، وأن عليه في نظره إلى الأجنبية بأسا وجناحًا. والله أعلم. عودة الحجاب ج ٣ ص ٣٥٧ ، اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ج١ ص١٩٦ .

په **فتاوی محمودیه** کې ذکر دي چې پرَدی ښځې ته د شهوت په نظر سره کتل حرام دي (۱) ځکه دا د سترګو زِنا ده (۲) ، ددینه توبه ویستل په کار دي ، او څوک چې ددینه توبه نه اُوباسي نو دا په ګناه باندې اِصرار کول دي ( او په کومه ګناه باندې چې اِصرار اوشي نو هغه ګناهِ کبیره ګرځي ) .(۳)

په آپ کے مسائل اور اُن کا حل کې ذکر دي : کومې ښځې چې ځان سِینګار کړي او بې پَردې په بازار کې ګرځي نو دوی ګناهګارې دي ، او څوک چې دوی ته قصدًا ګوري دوی هم ګناهګار دي .... (۴)

بهرحال ، (بِلا ضرورت) قصدًا پرَدی ښځې ته کتل حرام دي ، البته ناڅاپي نظر معاف دی .(۵)

---

←←←← قال السندي : وأما المفهوم المخالف لهذا الحديث فإنه لا يجوز لغير الخاطب أن ينظر إليها ولا يتحقق ذلك إلا إذا كانت المرأة محجبة وأما في حالة كشف الوجه والكفين فلا معنى لهذا الحديث بالمفهوم، فهذا أيضًا دليل على عدم جواز كشف الوجه والكفين . عودة الحجاب ج ۳ ص ۳۵۷ ، رسالة الحجاب ص ۴۲ ، اظهار الحق والصواب في حكم الحجاب ج۱ ص ۱۹۶ .

فجواز أو إباحة إظهار التزين ـ الذي يعده البعض كشف الوجه ـ للمخطوبة دليل على تحريم إظهار تلك الزينة في عامة الأحوال . عودة الحجاب ج۳ ص ۳۵۶ .

(۱) فإن كان لا يأمن علي نفسه الشهوة لم ينظر الي وجهها الا لحاجة ضرورية . الفقه الحنفي وادلته ج ۲ ص ۳۸۷ كتاب الحظروالاباحة النظر الي المرأة فقه المعاملات القسم الاول ، زيلعي شرح كنز ج ۶ ص ۱۷ كتاب الكراهية فصل في النظر والمس ، مجمع الانهر ج ۴ ص ۲۰۲ كتاب الكراهية فصل في النظر ونحوه .

(۲) بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ : اَلْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ وَ زِنَاهُمَا النَّظَرُ . وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ وَ زِنَاهُمَا الْبَطْشُ . وَالرِّجْلَانِ تَزْنِيَانِ وَ زِنَاهُمَا الْمَشْيُ ، وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ كُلَّهُ أَوْ يُكَذِّبُهُ . تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق ج ۶ ص ۱۹ كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ، و ج ۳ ص ۱۶۳ و ص ۱۶۵ .

(۳) وكلّ معصيةٍ اصرّ عليه العبدُ فهي كبيرةٌ ، وكلّ ما استغفر عنها فهي صغيرةٌ . شرح العقائد النسفية مع النبراس ص ۲۲۵ بحث الكبيرة والصغيرة . فتاوی محمودیه ج ۲۸ ص ۸۳ .

(۴) آپ کے مسائل اور اُن کا حل ج ۸ ص ۵۱ بدله.

(۵) حَرَّمت الشريعة الإسلامية النظر إلى الأجنبيات فلا يحل لرجل أن ينظر إلى امرأة غير ←←←←

## نابالغه مُشتهاتې جينۍ ته کتل هم صحيح ندي

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ د امام زهري رَحِمَهُ اللَّهُ په حوالې سره ليکلي دي چې کومه جينۍ نابالغه وي خو مُشتَهاته وي نو اګرچې داوړه وي، خو بيا هم ديته کتل صحيح ندي (ځکه ديته په کتلو کې د فِتنې خطره ده). (۱)

## د پردۍ ښځې کتلو په وخت نظر ښکته کول

زمونږ أسلافو به ډير احتياط کولو، پردو ښځو ته به يې بالکل نه کتل.

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي:

إِذَا مَرَّتْ بِكَ امْرَأَةٌ فَغَمِّضْ عَيْنَيْكَ حَتَّى تُجَاوِزَكَ. (۲)

چې کله په تا باندې پردۍ ښځه تيريږي نو خپلې سترګې پټې (يعنې ښکته يې) کړه، تر دې چې هغه د تا نه تيره شي (نو بيا يې کلاوٚ کړه).

امام بخاري رحمه الله دا خبره رانقل کړې: حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ هم خپل ورور ته ويلې وو چې ته کله د عجَمو ښځې أووينې چې خپلې سينې او سرونه يې ښکاره کړي وي نو خپل نظر ورنه أړوه (ځکه الله تعالى دوى ته د کتلو نه منع کړې). (۳)

---

←←← زوجته أو محارمه من النساء. أما نظرة الفجأة فلا إثم فيها ولا مؤاخذة لأنها خارجة عن إرادة الإنسان... روائع البيان تفسير آيات الأحكام ج ۲ ص ۱۵۱ آيات الحجاب والنظر.

(۱) وَقَالَ الزُّهْرِيُّ رحمه الله: فِي النَّظَرِ إِلَى الَّتِي لَمْ تَحِضْ مِنَ النِّسَاءِ: لَا يَصْلُحُ النَّظَرُ إِلَى شَيْءٍ مِنْهُنَّ مِمَّنْ يُشْتَهَى النَّظَرُ إِلَيْهِ وَإِنْ كَانَتْ صَغِيرَةً. صحيح البخاري كِتَابُ الِاسْتِئْذَانِ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا....﴾، نضرة النعيم ج ۷ ص ۳۰۷۵ غض البصر، و ج ۹ ص ۳۹۱۰ اطلاق البصر

(۲) الورع لابن ابي الدنيا ص ٦٦ بَابُ الْوَرَعِ فِي النَّظَرِ.

(۳) وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ أَبِي الْحَسَنِ لِلْحَسَنِ: إِنَّ نِسَاءَ الْعَجَمِ يَكْشِفْنَ صُدُورَهُنَّ وَرُءُوسَهُنَّ؟ قَالَ: «اصْرِفْ بَصَرَكَ عَنْهُنَّ». قَوْلُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: {قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ} [النور آية ۳۰] وَقَالَ قَتَادَةُ: "عَمَّا لَا يَحِلُّ لَهُمْ {وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ} [النور آية ۳۱] {خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ} [غافر آية ۱۹]: مِنَ النَّظَرِ إِلَى مَا نُهِيَ عَنْهُ. صحيح البخاري كِتَابُ الِاسْتِئْذَانِ قَوْلِ اللهِ تَعَالَى: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا....﴾، نضرة النعيم ج ۹ ص ۳۹۰۸ اطلاق البصر.

# د بل چا د کور دَروازې په سُوري کې کتل سخت منع دي

اسلام د مسلمان د حیاء او عزت دومره لحاظ ساتلی چې که څوک د بل چا د کور د دَروازې په سُوري کې پټ ګوري نو دداسې کس د پاره يې سخت وعيد ذکر کړی :

۱ . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی چې يو سړي د رسول الله صلی الله عليه وسلم د کور د دَروازې په سُوري کې کتل ، او په دې وخت کې د نبي عليه السلام سره په لاس کې د ګومَنزې په شان اُوسپنه وه چې په هغې باندې خپل سَر ګَرول ، نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : لَوْ أَعْلَمُ أَنَّكَ تَنْتَظِرُنِي، لَطَعَنْتُ بِهِ فِي عَيْنَيْكَ .

که چیرته ماته دا یقیني معلومه وی چې ته ماته ( قصدًا ) راګوری نو ما به دا اُوسپنه ستا په سترګو کې ټومبلې وه .

بيارسولُ الله صلی الله عليه وسلم اوفرمايل : إِنَّمَا جُعِلَ الإِذْنُ مِنْ قِبَلِ البَصَرِ .

بیشکه ( د بل چا کور ته د راتلو په وخت ) دا اجازت د همدې د پاره مقرر شوی چې په غیر مَحرَم باندې نظر او نه لږي . (۱)

---

(۱) عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ، أَخْبَرَهُ : أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ فِي جُحْرٍ فِي بَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِدْرًى يَحُكُّ بِهِ رَأْسَهُ، فَلَمَّا رَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «لَوْ أَعْلَمُ أَنَّكَ تَنْتَظِرُنِي، لَطَعَنْتُ بِهِ فِي عَيْنَيْكَ» قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّمَا جُعِلَ الإِذْنُ مِنْ قِبَلِ البَصَرِ» . صحيح البخاري كِتَابُ الدِّيَاتِ مَنِ اطَّلَعَ فِي بَيْتِ قَوْمٍ فَفَقَئُوا عَيْنَهُ، فَلاَ دِيَةَ لَهُ رقم الحديث ٦٩٠١ .

وفي رواية ..... لَوْ أَعْلَمُ أَنَّكَ تَنْظُرُ لَطَعَنْتُ بِهِ فِي عَيْنِكَ، إِنَّمَا جُعِلَ الإِسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ البَصَرِ . صحيح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابٌ: الإِسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ البَصَرِ رقم الحديث ٦٢٤١ . صحيح مسلم كتاب الآداب بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ فِي بَيْتِ غَيْرِهِ رقم الحديث ٤٠ (٢١٥٦) . مشكوة المصابيح كتاب القصاص بَاب مَا لا يضمن من الجِنَايَات الفصل الأول رقم الحديث ٣٥١٥ (٦) .

( تنتظرني ) تنظرني. ( من قبل البصر ) بسبب النظر إلى البيوت لئلا يطلع على عورة أهلها . تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري .

( تنتظرني ) هكذا هو في أكثر النسخ أو كثير منها . وفي بعضها تنظرني بحذف التاء الثانية قال القاضي الأول رواية الجمهور قال والصواب الثاني ويحمل الأول عليه . شرح محمد فؤاد عبد الباقي على صحيح مسلم

۲ . د بخاري شریف او مسلم شریف په یو بل حدیث کې ذکر دي : حضرت انس ﷺ فرمایي چې یو سړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو کور د دَروازې په سُوري کې کتل نو نبي علیه السلام ورپاڅید یو غشې یا ډیر غشي یې د ځان سره واخیستل.

حضرت انس ﷺ فرمایي : ګویا زه اوس هم هغه منظر ګورم چې رسول الله ﷺ هغه ته په قلار قلار وَرروان وُ چې هغه په غفلت کې اُومومي او په نیزه باندې یې اُووهي . (۱)

۳ . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

لَوِ اطَّلَعَ فِيْ بَيْتِكَ أَحَدٌ، وَلَمْ تَأْذَنْ لَهُ، خَذَفْتَهُ بِحَصَاةٍ، فَفَقَأْتَ عَيْنَهُ مَاكَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ . (۲)

که یو کس ستا د کور په دَروازه کې پټ راګوري او تا هغه ته اجازت نه وي کړی بیا تا هغه په ګیټۍ (وړوکي کاڼي) باندې اُوویشت او د هغه سترګه دې رااُوویسته نو په تا باندې څه ګناه نشته.

**نوټ** : اګر چې د احنافو په نزد باندې دا احادیث په زَجر محمول دي خو بیا هم ددینه عبرت اخیستل په کار دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دداسې کس د پاره څومره سخت وعید ذکر کړی . (۳)

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ ﷺ أَنَّ رَجُلًا اِطَّلَعَ مِنْ حُجْرٍ فِيْ بَعْضِ حُجَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَامَ إِلَيْهِ بِمِشْقَصٍ، أَوْ بِمَشَاقِصَ. وَجَعَلَ يَخْتِلُهُ لِيَطْعُنَهُ . صحیح البخاري كِتَابُ الدِّيَاتِ مَنِ اطَّلَعَ فِيْ بَيْتِ قَوْمٍ فَفَقَئُوا عَيْنَهُ. فَلَا دِيَةَ لَهُ رقم ٦٩٠٠. صحیح مسلم كتاب الآدَابِ بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ فِيْ بَيْتِ غَيْرِهِ رقم ۴۲ (۲۱۵۷) . سنن ابي داؤد رقم ۵۱۷۱

(۲) صحیح البخاري كِتَابُ الدِّيَاتِ بَابُ مَنْ أَخَذَ حَقَّهُ أَوِ اقْتَصَّ دُونَ السُّلْطَانِ رقم الحديث ٦٨٨٨ ، صحیح مسلم كتاب الآدَابِ بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ فِيْ بَيْتِ غَيْرِهِ رقم الحديث ۴۴ (۲۱۵۸) .

وفي رواية : عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنِ اطَّلَعَ فِيْ بَيْتِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ. فَقَدْ حَلَّ لَهُمْ أَنْ يَفْقَئُوا عَيْنَهُ . صحيح مسلم كتاب الآدَابِ بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ فِيْ بَيْتِ غَيْرِهِ رقم الحديث ۴۳ (۲۱۵۸)

(۳) ( مَاكَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ ) : أَيْ: عَيْبٍ ... قَالَ ابْنُ الْمَلَكِ أَيْ: إِثْمٍ. عَمِلَ بِهِ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ . وَأَسْقَطَ عَنْهُ ضَمَانَ الْعَيْنِ. قِيْلَ: هٰذَا بَعْدَ أَنْ زَجَرَهُ فَلَمْ يَنْزَجِرْ . وَأَصَحُّ قَوْلَيْهِ أَنَّهُ لَا ضَمَانَ مُطْلَقًا لِإِطْلَاقِ الْحَدِيْثِ. وَقَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ : عَلَيْهِ الضَّمَانُ. فَالْحَدِيْثُ مَحْمُوْلٌ عَلَى الْمُبَالَغَةِ فِي الزَّجْرِ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ٦ ص ٢٢٩٨ في تشريح حديث ٣٥١٤ .

## أمرد (بې ګیرې هلک) د پاره احتیاط

د کومو خلقو نه چې د فِتنې یَره وي اَمرد به د هغوی نه ځان ساتي . علماؤ تر دې پورې لیکلي دي چې که د فِتنې یره وي نو بیا د اَمرد سره د خط و کتابت نه هم پرهیز په کار دی.(۱)

## بې ګیرې هلکانو ته د شهوت په نظر کتل هم حرام دي

حافظ ابن کثیر رَحِمَهُ اللهُ په خپل تفسیر کې لیکلي دي : د اَسلافو نه دا نقل دي چې بې ګیرې هلک ته د شهوت په نظر سره کتل هم حرام دي ؛ ځکه د دینه هم د فِتنې پیدا کیدو یَره ده . (۲)

فقهاء کرامو هم دا لیکلي چې : کوم بې ګیرې هلک قابلِ التفات او قابلِ شهوت وي نو هغه هم د ښځو په حکم کې دی : هغه ته د شهوت په نظر کتل ، لاس ورسره ملاوول ، خبرې ورسره کول او ځانله ورسره کیناستل حرام دي .

---

←←←← (لَطَعَنْتُ بِهِ فِيْ عَيْنِكَ) : قَالَ الطِّيْبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : دَلَّ عَلَى أَنَّ الْإِطِّلَاعَ مَعَ غَيْرِ قَصْدِ النَّظَرِ لَا يَتَرَتَّبُ عَلَيْهِ الْحُكْمُ كَالْمَارِّ .... وَقَالَ ابْنُ الْمَلَكِ: أَيْ: إِنَّمَا احْتِيْجَ إِلَى الْإِسْتِئْذَانِ فِي الدُّخُوْلِ لِئَلَّا يَقَعَ النَّظَرُ مَنْ هُوَ خَارِجٌ إِلَى دَاخِلِ الْبَيْتِ. فَيَكُوْنُ بِلَا اسْتِئْذَانٍ كَالدُّخُوْلِ بِلَا اسْتِئْذَانٍ. قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : فِيْهِ جَوَازُ رَمْيِ عَيْنِ الْمُتَطَلِّعِ بِشَيْءٍ خَفِيْفٍ. وَلَوْ فُقِئَتْ لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ إِذَا نَظَرَ فِيْ بَيْتٍ لَيْسَ فِيْهِ مَحْرَمٌ لَهُ. كَذَا نَقَلَهُ الطِّيْبِيُّ هُنَا. لٰكِنَّ قَوْلَهُ بِشَيْءٍ خَفِيْفٍ إِنَّمَا يُلَائِمُ الْحَدِيْثَ الْأَوَّلَ فَتَأَمَّلْ. وَأَمَّا هٰذَا الْحَدِيْثُ فَالظَّاهِرُ أَنَّهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى إِرَادَةِ الزَّجْرِ وَالتَّغْلِيْظِ. كَمَا هُوَ مَذْهَبُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْحَدِيْثَيْنِ. وَالْفَرْقُ عِنْدَهُ بَيْنَهُمَا عَلَى فَرْضِ الْوُقُوْعِ أَنَّ فِي الْأَوَّلِ الدِّيَةَ. وَفِي الثَّانِي الْقِصَاصَ. هٰذَا هُوَ مُقْتَضَى مَذْهَبِهِ . وَاللهُ تَعَالَى أَعْلَمُ. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ٦ ص ٢٢٩٩ في تشريح حديث ٣٤١٥ .

(۱) وَإِنْ كَانَ صَبِيْحًا فَحُكْمُهُ حُكْمُ النِّسَاءِ . وَهُوَ عَوْرَةٌ مِنْ قَرْنِهِ إِلَى قَدَمِهِ لَا يَحِلُّ النَّظَرُ إِلَيْهِ عَنْ شَهْوَةٍ . رد المحتار على الدر المختار كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ج ٦ ص ٣٦٥ ، الفتاوى الهندية كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ الثَّامِنُ فِيْمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ ج ٥ ص ٣٣٠ . فتاوی محموديه ج ۲۸ ص ۱۵۹ اسلامی آداب واخلاق

(۲) وَقَدْ قَالَ كَثِيْرٌ مِنَ السَّلَفِ : إِنَّهُمْ كَانُوْا يَنْهَوْنَ أَنْ يُحِدَّ الرَّجُلُ بَصَرَهُ إِلَى الْأَمْرَدِ . وَقَدْ شَدَّدَ كَثِيْرٌ مِنْ أَئِمَّةِ الصُّوْفِيَّةِ فِيْ ذٰلِكَ . وَحَرَّمَهُ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ لِمَا فِيْهِ مِنَ الْإِفْتِتَانِ . وَشَدَّدَ آخَرُوْنَ فِيْ ذٰلِكَ كَثِيْرًا جِدًّا. تفسير ابن كثير ج ٦ ص ٤٠ سورة النور في تشريح آية ٣٠ .

لیکن که چاته په خپل نفس باندې پوره کنټرول حاصل وي او د خوېدو نه محفوظ وي نو بیا دده د پاره هغه ته کتل او د هغه سره خبرې کول جائز دي ، خو لیکن بیا هم اِحتیاط په دې کې دی چې پرهیز ورنه اوکړې شي . (۱)

ځکه کله په اول ځل کتو سره د انسان په طبعیت کې د شهوت اَثر نه وي نو دا په خپل ځان باندې دا ګمان اوکړي " چې ګني زما نظر د شهوت نه خالي دی نو که زه ورګورم دا خېر دی " خو لیکن په بار بار کتلو سره څو ورځې پس دده په زړه کې د هغه محبت ننوځي نو اِرادې یې خرابې شي . لهذا احتیاط په دې کې دی چې بې ږیرې ښائسته هلک ته بِلاضرورت د کتلو نه پرهیز اوکړې شي .

## د امام اعظم ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ احتیاط

امام اعظم ابو حنیفه رَحِمَهُ اللّٰهُ ډیر لوي عالِم او بزرګ ؤ خو بیا یې هم دومره کلک اِحتیاط کولو چې کله امام محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په اول ځل باندې دده دَرس ته د سبق د پاره راغی نو دده په مخ باندې ګیره نه وه ، امام صاحب ورته ووېل : چې تر څو پورې ستا ګیره نه وي راغلې ته شاته کینه .

نو دا به په دَرس کې شاته کیناستلو ، ډیره زمانه پس اِتفاقًا ورباندې د امام صاحب نظر پریوت نو په تعجّب سره یې ورنه پوښتنه اوکړه : آیا ستا ګیره هم راغلې ده ؟

سبحان الله . دواړه پاکې هَستۍ وی لیکن بیا یې هم کلک احتیاط کول . په نن دَور کې خود امام صاحب نه لوي عالِم او لوي بزرګ نشته نو بیا څوک دا دعوٰی کولې شي چې ماته د احتیاط ضرورت نشته ؟ (۲)

---

(۱) وَالْغُلَامُ إِذَا بَلَغَ مَبْلَغَ الرِّجَالِ وَلَمْ يَكُنْ صَبِيحًا فَحُكْمُهُ حُكْمُ الرِّجَالِ . وَإِنْ كَانَ صَبِيحًا فَحُكْمُهُ حُكْمُ النِّسَاءِ . وَهُوَ عَوْرَةٌ مِنْ قَرْنِهِ إِلَى قَدَمِهِ لَا يَحِلُّ النَّظَرُ إِلَيْهِ عَنْ شَهْوَةٍ . فَأَمَّا الْخَلْوَةُ وَالنَّظَرُ إِلَيْهِ لَا عَنْ شَهْوَةٍ لَابَأْسَ بِهِ . وَلِهٰذَا لَا يُؤْمَرُ بِالنِّقَابِ . الفتاوى الهندية كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ اَلْبَابُ الثَّامِنُ فِيمَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَيْهِ وَمَا لَا يَحِلُّ لَهُ ج ٥ ص ٣٣٠ رد المحتار على الدر المختار كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي النَّظَرِ وَالْمَسِّ ج ٦ ص ٣٦٥ ، فتاوى عثمانيه ج ١٠ ص ١٠٩ ، و ص ٨٤ المحتاب .

(۲) ندائے منبر و محراب ج ۲ ص ۲۹۲ .

## د علماؤ وَصيت خپلو شاګردانو ته

لويو لويو علماؤ به خپلو شاګردانو ته دا خصوصي وصيت کولو چې د بې ږيرو هلکانو سره د مجلس نه ځان ساتئ.

فتح موصلي رَحِمَهُ الله فرمايي چې ما د ديرش (۳۰) آبدالو ( لويو لويو علماؤ ) سره ملاقات کړی، کله به چې زه د هغوی نه رارُخصتيدم نو هغوی ټولو ماته دا وصيت کړی چې د بې ږيرې هلکانو د مجلس نه ځان ساته. (۱)

امام غزالي رَحِمَهُ الله د يو صوفي خبره نقل کړی، چې: که زما په يو مريد باندې شلوُونکې زمرې حمله اوکړي نو زه وربانديې دومره نه ويريږم لکه څومره چې د بې ږيرې ښائسته هلک نه وربانديې ويريږم. (۲)

علماؤ دا هم ليکلي چې د بې ږيرې ښائسته هلکانو سره مه کيني ځکه د ځوانو پرَدو جينکو سره کيناستلو کې دومره فِتنه نشته څومره چې دې بې ږيرې ښائسته هلکانو سره په کيناستلو کې ده، وجه دا ده چې د ځوانې پرَدې جينۍ سره هر کس نشي کيناستی، په دې کې ډير رُکاوټونه دي، او د هلکانو سره خو هر کس کيناستې شي نو فِتنه ورنه زر پيدا کيږي. (۳)

## چې الله تعالی څوک ذليل کول اوغواړي نو په زړه کې ورله د هلکانو مِينه پيدا کړي

چې الله تعالی څوک ذليل کول او رَسوا کول اوغواړي نو د هغه په زړه کې د بې ږيرې ښائسته هلکانو مِينه پيدا کړي. بيا ټوله ورځ د هغوی په مجلسونو کې ناست وي، او هغوی ته د شهوت په نظر ګوري.

---

(۱) وَمَا زَالَ أَئِمَّةُ الْعِلْمِ وَالدِّينِ كَأَئِمَّةِ الْهُدٰى وَشُيُوخِ الطَّرِيقِ يُوصُونَ بِتَرْكِ صُحْبَةِ الْأَحْدَاثِ حَتّٰى يُرْوٰى عَنْ فَتْحِ الْمُوصِلِيِّ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ قَالَ: صَحِبْتُ ثَلَاثِيْنَ مِنَ الْأَبْدَالِ كُلُّهُمْ يُوصِيْنِيْ عِنْدَ فِرَاقِهِ بِتَرْكِ صُحْبَةِ الْأَحْدَاثِ.
مجموع الفتاوی لابن تيمية ج ۱۵ ص ۴۲۰. و ج ۲۱ ص ۲۵۲

(۲) کيمیائی سعادت ص ۲۹۸. بد نظری کا علاج ص ۳۷

(۳) حياء اور پاکدامنی ص ۶۹.

بعضې علماؤ فرمايلي دي : مَا سَقَطَ عَبْدٌ مِنْ عَيْنِ اللهِ إِلَّا ابْتَلَاهُ بِصُحْبَةِ هٰؤُلَاءِ الْأَنْتَانِ.

کوم کس چې د الله ﷻ د نظر نه اُوغورځيږي (او دا رَسواء کول او غوارې) نو دا په ګنده يعنی د بې کيرې خرابو هلکانو په مجلس باندې مبتلاء کړي. (۱)

شيخ واسطي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

إِذَا أَرَادَ اللهُ هَوَانَ عَبْدٍ أَلْقَاهُ إِلٰى هٰؤُلَاءِ الْأَنْتَانِ وَالْجِيَفِ . يُرِيْدُ بِهِ صُحْبَةَ الْأَحْدَاثِ. (۲)

چې کله الله تعالی د يو بنده د ذلت اراده اوکړي نو هغه ددې ګنده او مردارو خلقو مجلس ته اُوولي، ددينه مراد د بې ګيرو خرابو هلکانو سره مجلس کول دي.

(يعنی دداسې کس په زړه کې بناښته هلکانو ته د کتلو عادت پيدا کړي).

## لوی عابِد هغه دی چې خپل ځان د ګناه نه ساتي

بعضې خلق عابِد هغه چاته وايي چې ډير نوافل کوي، ډير وظائف او تسبيحات وايي حالانکه لوی عابد هغه کس دی چې د ګناهونو نه خپل ځان ساتي.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابو هريره رضي الله عنه ته اوفرمايل :

اِتَّقِ الْمَحَارِمَ تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ. (۳)

ته ځان د هر قسمه ګناهونو نه اُوساته نو په ټولو خلقو کې به لوی عابِد جوړ شې.

عوام خلق د مستحباتو و فضائلو لحاظ ساتي خو د ګناه نه بچ کيدو اهتمام نه کوي، او فرائضو لحاظ هم نه ساتي، حالانکه آهم څيز دادی چې انسان د هر قسمه ګناهونو نه ځان اُوساتي او د فرائضو آداء کولو پابندي اوکړي نو داسې کس رغت عبدت ګزار دی. (۴)

---

(۱) مجموع الفتاوى لابن تيمية ج ۱۵ ص ۴۲۰ . و ج ۲۱ ص ۲۵۲.

(۲) شريعت وطريقت ص ۳۵۰، بدنظری کا علاج ص ۳۸ .

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ الزُّهْدِ بَابٌ: مَنِ اتَّقَى الْمَحَارِمَ فَهُوَ أَعْبَدُ النَّاسِ رقم الحديث ۲۳۰۵ ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۴۲۱۷ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۸۰۹۵ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۷۰۵۴ ، مشكاة المصابيح كِتَابُ الرِّقَاقِ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۵۱۷۱(۱۷) .

(۴) (اِتَّقِ الْمَحَارِمَ): وَهِيَ شَامِلَةٌ لِجَمِيعِ الْمُحَرَّمَاتِ مِنْ فِعْلِ الْمَنْهِيَّاتِ وَتَرْكِ الْمَأْمُورَاتِ (تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ) إِذْ لَا عِبَادَةَ أَفْضَلُ مِنَ الْخُرُوجِ عَنْ عُهْدَةِ الْفَرَائِضِ . وَعَوَامُّ النَّاسِ يَتْرُكُونَهَا وَيَعْتَنُونَ ←←←←←←

# د بدنظرۍ نه د بچ کېدو علاج او طریقې

په دې دَور کې د اِنټرنټ، فیس بُک، ټي وي او وي سي ډ په وجه فحاشي ډېره زیاته شوې ده، ځوانې ښځې په بازارونو او کوڅو کې بې پردې ښکاره مخ ګرځي، ځای په ځای په بُوردونو باندې د ښځو بې حیاء تصویرونه په نظر راځي، په اَخبارونو کې د ښځو د فحاشۍ تصویرونه چاپ کېږي، نو اګر چې په داسې دَور کې په ظاهره باندې د نظرونو حفاظت مشکل معلومېږي خو چې د چا په زړه کې اِیمان وي او په قرآن کریم او احادیثو کې چې ده ته د کومو احکاماتو حکم شوې وي په هغې باندې عمل کوي نو هغه په آسانه ددې بَدنظرۍ نه بچ کېدې شي.

ځکه په قرآن و حدیث کې ددې علاج او ددینه د بچ کېدو طریقې شته، همدارنګې بزرګانو هم ددینه د بچ کېدو طریقې بیان کړې دي.

زه درته د بَدنظرۍ نه د بچ کېدو اُوولس (۱۷) طریقې ذکر کوم:

## ۱. نظر ښکته ساتل

د بَدنظرۍ نه د بچ کېدو بهترینه طریقه داده چې انسان خپل نظر ښکته ساتي.

الله تعالی مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظر ښکته کولو حکم کړی:

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۝ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾.(۱)

ترجمه: اې پیغمبره! ته مؤمنانو سړو ته اُووایه چې خپلې سترګې (نظرونه) ښکته ساتي، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي، دا ددوی د پاره ډېره پاکیزه (او بهتره) خبره

←←←← بِكَثْرَةِ النَّوَافِلِ. فَيُضَيِّعُوْنَ الْأُصُوْلَ وَيَقُوْمُوْنَ بِالْفَضَائِلِ. فَرُبَّ يَكُوْنُ عَلَى شَخْصٍ قَضَاءُ صَلَوَاتٍ وَيَغْفُلُ عَنْ أَدَائِهَا وَيَطْلُبُ عِلْمًا أَوْ يَجْتَهِدُ عَمَلًا فِيْ صَلَوَاتٍ وَعِبَادَاتٍ نَفْلٍ أَوْ يَكُوْنُ عَلَى أَحَدٍ مِنَ الزَّكَاةِ أَوْ حُقُوْقِ النَّاسِ فَيُطْعِمُ الْفُقَرَاءَ أَوْ يَبْنِي الْمَسَاجِدَ وَالْمَدَارِسَ وَنَحْوَهُ. مرقاة المفاتيح ج ۸ ص ۳۲۳۷ في لشريح حديث ۵۱۷۱

(۱) النور آية ۳۰، ۳۱.

ده ، بيشکه الله تعالی د خلقو په هغه کارونو ښه خبر دار دی کوم چې دوی کوي . او ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي ، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي .

**فائده** : لهذا مسلمان ته په کار دي چې کله په لاره باندې پېدل روان وي نو لاندې لارې ته دې ګوري ، خو که په سورلۍ باندې روان وي نو بيا دې د ضرورت په مقدار مخې ته ګوري .

البته که د څه ضرورت په وجه يې د پردو ښځو سره د خبرو کولو ضرورت راشي نو بيا دې ورسره د ضرورت په مقدار خبرې اوکړي خو هغوی ته دې نيغ نيغ نه ګوري .

## ۲ . واده کول . يا نفلي روژې نيول

د بدنظرۍ نه د بچ کيدو دويمه طريقه داده چې چاته الله تعالی قدرت ورکړې وي هغه دې واده اوکړي ، ځکه په واده سره سړې او ښځه په حرامو کارونو کې د مبتلاء کيدو نه بچ کيږي ، نبي عليه السلام ځوانانو ته د واده ترغيب ورکړی .

او چې د چا د واده وس نه وي نو بيا يې ورته بله طريقه خودلې چې نفلي روژې دې نيسي نو په دې سره به دا د ناجائزو کارونو نه بچ شي .

**۱** . د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ ! مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ، وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ . (۱)

اې د ځوانانو ټولګيه ! څوک چې په تاسو کې د نکاح طاقت لري نو هغه دې نکاح اوکړي ؛ ځکه د نکاح په وجه نظر محفوظ کيږي او د شرمګاه حفاظت راځي ، او څوک چې د نکاح طاقت نلري نو هغه دې (نفلي) روژې نيسي ؛ ځکه په دې سره شهوت دفع کيږي .

(۱) صحيح مسلم كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ اسْتِحْبَابِ النِّكَاحِ لِمَنْ تَاقَتْ نَفْسُهُ إِلَيْهِ ، وَوَجَدَ مُؤَنَهُ ، وَاشْتِغَالِ مَنْ عَجَزَ عَنِ الْمُؤَنِ بِالصَّوْمِ رقم الحديث ۱۴۰۰ . صحيح البخاري كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ البَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ ، لِأَنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ » رقم الحديث ۵۰۶۵ ،

۲ . د نکاح په وخت ځوانان خپل شهوت په جائزې طريقې سره پوره کوي او په دې ورته اجر هم ملاويږي .

د مسلم شريف حديث دی ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

وَفِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ .

په تاسو کې چې څوک په حلالې طريقې سره کور والې کوي نو په دې کې هم صدقه ده .

صحابه کرامو پوښتنه او کړه :

يَا رَسُولَ اللهِ ! أَيَأْتِي أَحَدُنَا شَهْوَتَهُ وَيَكُونُ لَهُ فِيهَا أَجْرٌ ؟

اې د الله رسوله ! په مونږ کې چې څوک خپل شهوت پوره کوي نو آيا دده د پاره په دې کې هم اجر دی ؟

نبي عليه السلام ورته او فرمايل :

أَرَأَيْتُمْ لَوْ وَضَعَهَا فِي حَرَامٍ أَكَانَ عَلَيْهِ فِيهَا وِزْرٌ ؟ فَكَذَلِكَ إِذَا وَضَعَهَا فِي الْحَلَالِ كَانَ لَهُ أَجْرٌ .

تاسو ماته دا اُووايئ که چيرته دې کس دا شهوت په حرام ځای کې پوره کړې وی نو آيا په ده باندې به ګناه نه وه ؟ (ضرور به وه) ، نو چې کله يې په حلال ځای کې خپل شهوت پوره کړو نو اوس به دده د پاره (ضرور) اجر وي . (۱)

**هر جائز کار په ښه نيت سره کول عبادت دی** : ددې حديث نه دا معلومه شوه چې هر

---

(۱) پوره حديث داسې دی : عَنْ أَبِي ذَرٍّ رضي الله عنه أَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا رَسُولَ اللهِ! ذَهَبَ أَهْلُ الدُّثُورِ بِالأُجُورِ. يُصَلُّونَ كَمَا نُصَلِّي. وَيَصُومُونَ كَمَا نَصُومُ. وَيَتَصَدَّقُونَ بِفُضُولِ أَمْوَالِهِمْ. قَالَ: " أَوَلَيْسَ قَدْ جَعَلَ اللهُ لَكُمْ مَا تَصَّدَّقُونَ ؟ إِنَّ بِكُلِّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةً. وَكُلِّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةً. وَكُلِّ تَحْمِيدَةٍ صَدَقَةً. وَكُلِّ تَهْلِيلَةٍ صَدَقَةً. وَأَمْرٌ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ. وَنَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ صَدَقَةٌ. وَفِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ . قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ ! أَيَأْتِي أَحَدُنَا شَهْوَتَهُ وَيَكُونُ لَهُ فِيهَا أَجْرٌ ؟ قَالَ: « أَرَأَيْتُمْ لَوْ وَضَعَهَا فِي حَرَامٍ أَكَانَ عَلَيْهِ فِيهَا وِزْرٌ ؟ فَكَذَلِكَ إِذَا وَضَعَهَا فِي الْحَلَالِ كَانَ لَهُ أَجْرٌ » . صحيح مسلم كِتَاب الزَّكَاةِ بَابُ بَيَانِ أَنَّ اسْمَ الصَّدَقَةِ يَقَعُ عَلَى كُلِّ نَوْعٍ مِنَ الْمَعْرُوفِ رقم الحديث ۵۳ (۱۰۰۶) .

جائز کار په ښه نيت سره کول عبادت دی ، تر دې چې که يو کس د خپلې بي بي سره کور والې په دې نيت باندې کوي چې زما د بي بي حق پوره شي ، يا زه او هغه د ناجائزو کارونو نه بچ شو ، يا زمونږ نظر محفوظ شي ، يا يې د نېک بچي اِراده وي نو دا هم عبادت دی ، په دې هم ورته اَجر ملاويږي . (۱)

## ۳ . د الله تعالى د مَعيَت سوچ کول

د بَدنظرۍ نه د بچ کېدو دريمه طريقه داده چې انسان به هر وخت د ځان سره دا سوچ کوي چې الله تعالى ما ګوري: ﴿ أَلَمْ يَعْلَمْ بِأَنَّ اللَّهَ يَرَىٰ ﴾ . (۲)

ترجمه : آيا دا نه پوهيږي چې الله تعالى هر څه ګوري .

الله تعالى د انسان په هر عمل باندې خبردار دی : ﴿ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴾ . (۳)

ترجمه : بيشکه الله تعالى د خلقو په هغه کارونو ښه خبردار دی کوم چې دوی کوي .

بل ځای فرمايي : ﴿ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ . (۴)

ترجمه او الله تعالى ښه خبردار دی په هغه کارونو باندې چې تاسو يې کوئ .

الله تعالى د انسان په پټو رازونو باندې هم خبردار دی :

---

(۱) (وَفِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ) هو بضم الباء ويطلق على الجماع ويطلق على الفرج نفسه وكلاهما تصح إرادته هنا وفي هذا دليل على أن المباحات تصير طاعات بالنيات الصادقات فالجماع يكون عبادة إذا نوى به قضاء حق الزوجة ومعاشرتها بالمعروف الذي أمر الله تعالى به أو طلب ولد صالح أو إعفاف نفسه أو إعفاف زوجته ومنعهما جميعا من النظر إلى حرام أو الفكر فيه أو الهم به أو غير ذلك من المقاصد الصالحة . شرح محمد فؤاد عبد الباقي على صحيح مسلم .

(۲) العلق آية ۱۴ .

(۳) النور آية ۳۰ .

(۴) المنافقون آية ۱۱ . و آل عمران آية ۱۵۳ ، و التوبة آية ۱٦ . المجادلة آية ۱۳ . الحشر آية ۱۸ .

همدا مضمون په نورو آيتونو کې هم ذکر دی ، ﴿ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ . المائدة آية ۸ ، النور آية ۵۳ .

﴿ إِنَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَفْعَلُونَ ﴾ . النمل آية ۸۸ .

﴿ يَعْلَمُ خَآئِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِى الصُّدُورُ ﴾.(۱)

ترجمه : الله تعالی پوهیږي د سترګو په خیانت او څه چې سینې پټوي.

انسان د الله تعالی نه په هیڅ ځای کې نشي پټیدی :

﴿ وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾.(۲)

ترجمه : او الله تعالی د تاسو سره وي هر چیرته چې تاسویئ ، او الله تعالی ټول هغه کارونه ګوري کوم چې تاسو کوی.

نو چې کله انسان ددې آیتونو دا مضمون ذهن ته راولي نو په دې سره به دده په زړه کې یَره پیدا شي او د بَدنظری نه به منع شي.

**د مثال په ذريعه وضاحت** : که په یو ځای کې د یوې ښځې سره خپل خاوند یا خپل پلار وغیره ولاړ وي نو هیڅوک هغې ته په بَدنظر نه ګوري ځکه دده سره دا یره وي چې که زه وَراُوګورم نو هسې نه چې د هغې خاوند یا پلار راته ضرر راأورسوي او یا رانه خفه شي.

یا د یو سړي سره خپل پلار ولاړ وي نو دا به هیڅ کله ددې خپل پلار په مخکې پرَدۍ ښځې ته اُو نه ګوري ، ځکه دې دا ګمان کوي چې ما ته پلار راګوري.

همدغه شان مسلمان ته دا سوچ په کار دی چې که زه پرَدۍ ښځې ته ګورم نو الله تعالی ما وینې ، هغه زه ددې ګناه نه منع کړې یم ، نو هسې نه چې سمدستي سزا راکړي.

## ٤. د الله ﷻ د عذاب نه ویریدل

په دې کې شک نشته چې بَدنظري ګناه او حرام ده ، اوس چې څوک دا ګناه کوي نو الله ﷻ ده ته څه مهلت ورکوي خو چې د حَد نه تجاوز اوکړي نو بیا د هغه ګرفت هم ډیر سخت دی : ﴿إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ﴾.(۳)

ترجمه : بیشکه ستا د رَب نیول ډیر سخت دي.

(۱) غافر (المؤمن) آیة ۱۹.

(۲) الحدید آیة ۴.

(۳) البروج آیة ۱۲.

او الله تعالى چې څوک ذليل کړي نو بيا هغه ته بل څوک عزت نشي ورکولی :

﴿ وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ﴾ .(۱)

ترجمه : او څوک چې الله تعالى ذليل کړي نو هغه له څوک عزت، ورکوونکې نشته .

## د مخکيني قومونو د تباهۍ وجه " د الله ﷻ نافرماني کول وو "

الله تعالى مخکيني غټ غټ قومونه تباه کړي دي د هغې واحد سبب د الله ﷻ نافرماني کول، او د الله ﷻ د حکمونو نه مخ اړول وو .

الله ﷻ د بني اسرائيلو د هلاک شوي يو قوم (أصحابُ السّبت) په باره کې فرمايي :

﴿ فَلَمَّا عَتَوْا عَنْ مَّا نُهُوْا عَنْهُ قُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِئِيْنَ ﴾ .(۲)

ترجمه : هر کله چې دوی سرکشي اوکړه د هغې شي نه د کوم نه چې دوی منع شوي وو (يعنى د الله جل جلاله حکم يې أو نه منل ) ، نو مونږ دوی ته وويل : چې تاسو ذليله بيزوګان شئ .

بل ځای الله ﷻ د فرعون او دده د ملګرو په باره کې فرمايي :

﴿ فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴾ .(۳)

ترجمه : هر کله چې دوی زه ناراضه کړم ، نو مونږ د هغوی نه بدله واخيسته ، بيا مو ټول غرق کړل .

**د بعضې هلاک شوو قومونو اجمالي تذکره :** الله ﷻ د حضرت لوط عليه السلام ټول قوم (بغير د يو څه کسانو نه ) د آسمانه پورې اوچت کړو، بيا يې الټه ( پړ مخ ) را اوغورځول ، او د پاسه يې پرې د کاڼرو باران اوکړو .

د حضرت نوح عليه السلام ټول قوم يې (بغير د يو څه کسانو نه نور ټول) په طوفان کې غرق کړل .

---

(۱) الحج آية ۱۸ .

(۲) الاعراف آية ۱٦٦ .

(۳) الزخرف آية ٥٥ .

د حضرت هود علیه السلام په قوم ( عادیانو ) باندې یې سخته تېزه هوا مسلط کړه ، او ټول قوم یې په زمکه ویشتلو راویشتلو سره تباه کړو .

د حضرت صالح علیه السلام په قوم ( ثمودیانو ) باندې حضرت جبریل علیه السلام د الله ﷻ په حکم یوه تېزه چغه او وهله ، چې د هغې په وجه د ټولو زړونه اُوچاودیدل ، او ځای په ځای ټول هلاک شو .

د حضرت شعیب علیه السلام په قوم باندې یې د وریځې نه اُور رااُو وَرول ، او ټول قوم یې تباه او برباد کړو .

په بني اسرائیلو باندې یې مختلف قسمه عذابونه راوستل : کله قید شو ، کله یې کوروناه او سوزیدل ، کله جلا وطن شو ، او کله مړه شو .

قارون یې سره د ملګرو او مال و دولت نه په زمکه کې خخ کړو .

ابلیس باوجود د ډیر عبادت نه بیاهم د آسمانونه رااُویستلې شو ، شکل یې بدل شو ، لعنتي شو ، او همیشه د پاره تباه وبرباد شو .

قدرمنو ! دا غټ غټ قومونه چې الله ﷻ تباه و برباد کړل نو ددې واحد سبب د الله تعالی نافرماني کول او ګناهونه کول وو .

چې کله هم یو قوم د الله ﷻ نافرماني کړې او د خپل وخت د پیغمبر خبره یې نده منلې نو الله رب العزت هغه قوم تباه کړې . الله ﷻ فرمایي :

﴿ فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِهٖ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ وَمِنْهُمْ مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْاَرْضَ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ اَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴾ .(۱)

ترجمه : پس هر یو مونږ د هغوی د ګناه په وجه اُونیول ، په بعضو مو کاڼي رااُووَرول ، بعضی یو چغې ( د حضرت جبریل علیه السلام ) اونیول ، بعضی مو په زمکه کې ورننویستل ، او بعضې مو ( په اُوبو کې ) غرق کړل ، او الله ﷻ په دوی ظلم ندې کړې ،

(۱) العنکبوت آیة ۴۰ .

بلکه دوی په خپلو ځانونو باندې ظلم کوونکي وو (چې ګناهونه يې کول).

## په ګناه کولو سره الله ﷻ ته غيرت ورځي

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

لَا أَحَدٌ أَغْيَرَ مِنَ اللهِ، وَلِذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ. (١)

د الله تعالی نه بل څوک ډير غيرتي نشته، او د همدې غيرت په وجه يې ښکاره او پټ ګناهونه حرام کړي دي.

ددې حديث نه معلومه شوه چې د بدنظرۍ او نورو ګناهونو په وجه د الله تعالی غيرت په جوش کې راځي، په داسې کس باندې لعنت راوروي، د خپل دَربار نه يې شړي، او د خپل رحمت نه يې لرې کوي.

او څوک چې د تقوىٰ او پرهيزګارۍ والا ژوند تيروي نو په داسې کس باندې رَحمتونه راوروي او خپل مقرّب يې جوړوي.

## ٥. د جهنم د سزا نه ويريدل

چې کله د انسان په زړه کې د بَدنظرۍ شوق راپورته شي نو دا دې ځانته د جهنم سختې سزاګانې رايادې کړي کومې چې دګناهګارانو د پاره مقرر شوي.

علماؤ ليکلي چې څوک په بَدنظرۍ کې مبتلاء وي نو د قيامت په ورځ به دده په سترګو کې ويلې شوی ګرمه تانبه واچولې شي، او دده په سترګو کې به ګرم سيخونه اُوتومبلې شي.

(١) صحيح مسلم كتاب التَّوْبَةِ رقم الحديث بَابُ غَيْرَةِ اللهِ تَعَالَى وَتَحْرِيمِ الْفَوَاحِشِ رقم الحديث ٣٣ (٢٧٦٠)، و رقم الحديث ٣٤ (٢٧٦٠). صحيح البخاري كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ قَوْلِهِ: {وَلاَ تَقْرَبُوا الفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ} رقم الحديث ٤٦٣٤، و رقم الحديث ٤٦٣٧ بَابُ قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: {قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ}.

وفي رواية: .... أَتَعْجَبُونَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ، وَاللهِ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ، وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي، وَمِنْ أَجْلِ غَيْرَةِ اللهِ حَرَّمَ الفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ. صحيح البخاري كِتَابُ التَّوْحِيدِ بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لاَ شَخْصَ أَغْيَرُ مِنَ اللهِ» رقم الحديث ٧٤١٦، و رقم الحديث ٦٨٤٦ كِتَابُ الحُدُودِ بَابُ مَنْ رَأَى مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا فَقَتَلَهُ. صحيح مسلم كِتَابُ اللِّعَانِ رقم الحديث ١٧(١٤٩٩).

نو چې کله انسان ځانته دا سزاګانې رامخې ته کړي نو اُميد دی چې ددې بدنظرۍ ګناه نه به ورته د توبې توفيق ملاؤ شي .

## ۶. د الله تعالی د راضي کولو سوچ کول

د چا په زړه کې چې پرَدو ښځو ته د کتلو شوق راپيدا شي نو دا دې د ځان سره دا سوچ اوکړي چې زه الله تعالی ددينه منع کړې يم که زه د معمولي لِذّت حاصلولو د پاره دا ګناه اوکړم نو الله ﷻ رانه خفه کيږي ، او د هغه د رَحمت نه لرې کيږم . لهذا زه خپل نظر کنټرول کوم چې الله تعالی رانه خوشحال شي او په قيامت کې د هغه ديدار راته نصيبه شي .

علامه ابن قيم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې په جنت کې د عمل اَجر د همدې د جِنس نه وي ، لهذا څوک چې د پرَدو ښځو نه خپل نظر ښکته کړي نو د قيامت په ورځ به الله تعالی ورته خپل ديدار ورکړي . (۱)

## ۷ . د خپلې مور او خُور په باره کې دا سوچ کول

د بَدنظرۍ نه د بچ کيدو اُوومه طريقه داده چې کله د انسان پرَدۍ ښځې ته د ليدلو شوق راپورته شي نو دا دې د ځان سره دا سوچ اوکړي چې څنګه زه د خپلې مور ، خپلې خور ، او خپلې لور په باره کې دا نه خوښوم چې بل څوک ديته په غلط نظر اوګوري نو همدغه شان ماته هم په کار دې چې زه هم د بل چا مور ، خور او لور ته په بَدنظر اُو نه ګورم . اِن شاء الله په دې سوچ سره به دده دا شوق ختم شي .

همدغه شان چې د چا په زړه کې د زِنا وَسوسې راپيدا شي نو هغه دې د ځان سره همدا سوچ اوکړي چې لکه څرنګې زه داکار د خپلې مور ، خور او لور د پاره نه خوښوم نو بيا زه څنګه دا کار د بل چا مور ، خور او لور سره اوکړم ؟

## د زِنا اِجازت غوښتونکې کس نبي عليه السلام په ښه طريقې سره پوهه کړو

په مسند احمد ، معجم الکبير ، شعب الإيمان او نورو ډيرو کتابونو کې دا واقعه ذکر ده : حضرت ابو اُمامة ﷺ فرمايي چې يو ځوان نبي عليه السلام ته راغی ، او وې ويل :

---

(۱) حيادر پاکدامنی ص ص ۸۸ .

يَارَسُوْلَ اللهِ! اِئْذَنْ لِيْ بِالزِّنَا. اې د الله رسوله ! ماته د زِنا اجازت راکړه.
خلق ورنه راتاؤ شو ، وې رټل ، او ورته وې ویل چې ددې ځای نه پاڅه .
نبي علیه السلام اوفرمایل: ماته یې رانزدې کړئ.
کله چې دا ځوان نبي علیه السلام ته ورنزدې شو او هلته کیناست ، نو پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل: أَتُحِبُّهُ لِأُمِّكَ؟
آیا ته دا زِنا د خپلې مور د پاره خوښوې؟ ( چې بل څوک ورسره زِنا اوکړي؟ ) .
هغه ورته ووېل : الله تعالی دې ما په تاسو باندې قربان کړي قسَم په الله چې زه دا د خپلې مور د پاره نه خوښوم .
نبي علیه السلام ورته اوفرمایل:
وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِأُمَّهَاتِهِمْ. نور خلق هم دا د خپلو مورانو د پاره نه خوښوي.
نبي علیه السلام ورته ( په دویم ځل ) اوفرمایل:
أَفَتُحِبُّهُ لِابْنَتِكَ؟ آیا ته دا زِنا د خپلې لور د پاره خوښوې؟
هغه ورته ووېل : اې د الله رسوله ! الله تعالی دې ما په تا باندې قربان کړي قسَم په الله چې زه دا ( د خپلې لور د پاره ) نه خوښوم .
پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل:
وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِبَنَاتِهِمْ. نور خلق هم دا د خپلو لورانو د پاره نه خوښوي.
نبي علیه السلام ورته ( په دریم ځل ) اوفرمایل:
أَفَتُحِبُّهُ لِأُخْتِكَ؟ آیا ته دا زِنا د خپلې خور د پاره خوښوې؟
هغه ورته ووېل : الله تعالی دې ما په تا باندې قربان کړي قسَم په الله چې دا زه د خپلې خور د پاره نه خوښوم.
پیغمبر علیه السلام ورته اوفرمایل:
وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِأَخَوَاتِهِمْ. نور خلق هم دا د خپلو خورانو د پاره نه خوښوي.
نبي علیه السلام ورته ( په څلورم ځل ) اوفرمایل:

أَفَتُحِبُّهُ لِعَمَّتِكَ ؟ آيا ته دا زِنا د خپلې ترور ( د پلار خور ) د پاره خوښوې ؟
هغه ووېل : الله تعالى دې ما په تا باندې قربان کړي قسَم په الله چې زه دا د هغې د پاره نه خوښوم .

پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمايل : وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِعَمَّاتِهِمْ .
نور خلق هم دا د خپلو ترورانو ( د پلار خورانو ) د پاره نه خوښوي .
نبي عليه السلام ( په پنځم ځل ) ورنه پوښتنه اوکړه :
أَفَتُحِبُّهُ لِخَالَتِكَ ؟ آيا ته دا زِنا د خپلې ترور ( د مور خور ) د پاره خوښوې ؟
هغه ووېل : الله تعالى دې ما په تاسو باندې قربان کړي قسَم په الله چې زه دا د هغې د پاره نه خوښوم .

پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمايل : وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِخَالَاتِهِمْ .
نور خلق هم دا د خپلو ترورڼانو ( د مور خورانو ) د پاره نه خوښوي .
بيا رسولُ الله صلى الله عليه وسلم دده په سِينه باندې خپل لاس مُبارک کېښود او دا دُعا يې اوکړه : اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ ذَنْبَهُ وَطَهِّرْ قَلْبَهُ، وَحَصِّنْ فَرْجَهُ .
اې الله ! دده ګناه معاف کړه ، دده زړه صفا کړه ، او دده شرمګاه ( د زِنا نه ) محفوظ کړه .
( راوي د حديث وايي چې ) ددينه پس دې کس زِنا طرف ته هيڅ توجّه نه کوله ( يعنی د زِنا او نورو ناجائزو کارونو نه مکمل منع شو ) . (۱)

---

(۱) عَنْ أَبِي أُمَامَةَ ﷺ قَالَ: إِنَّ فَتًى شَابًّا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ! ائْذَنْ لِي بِالزِّنَا. فَأَقْبَلَ الْقَوْمُ عَلَيْهِ فَزَجَرُوْهُ وَقَالُوْا: مَهْ مَهْ. فَقَالَ: أُدْنُهْ. فَدَنَا مِنْهُ قَرِيْبًا. قَالَ: فَجَلَسَ قَالَ: أَتُحِبُّهُ لِأُمِّكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِأُمَّهَاتِهِمْ. قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِابْنَتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِبَنَاتِهِمْ. قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِأُخْتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِأَخَوَاتِهِمْ. قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِعَمَّتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِعَمَّاتِهِمْ. قَالَ: أَفَتُحِبُّهُ لِخَالَتِكَ؟ قَالَ: لَا. وَاللهِ جَعَلَنِي اللهُ فِدَاءَكَ. قَالَ: وَلَا النَّاسُ يُحِبُّوْنَهُ لِخَالَاتِهِمْ. قَالَ: فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَيْهِ وَقَالَ: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ ذَنْبَهُ وَطَهِّرْ قَلْبَهُ، وَحَصِّنْ فَرْجَهُ. فَلَمْ يَكُنْ بَعْدُ ذٰلِكَ الْفَتٰى يَلْتَفِتُ إِلٰى شَيْءٍ. مسند احمد رقم الحديث ۲۲۲۱۱ حديث أبي أُمامة الباهلي.

## ۸ . خپله بې بې خوشحاله ساتل

د بد نظرۍ نه د بچ کېدو اَتمه طريقه دا ده چې انسان خپله بې بې خوشحاله ساتي ، نو دده بې بې به هم دده سره په محبت باندې ژوند تيروي نو د سړي به پردیو ښځو کتلو ته هيڅ توجّه نه وي . همدارنګې ښځو ته هم په کار دي چې خپل خاوندان خوشحاله ساتي ، ځکه که چيرته په کور کې هر وخت جګړې وي او د خاوند زړه د خپلې ښځې نه موړ شي نو بيا به خامخا دده توجّه بل طرف ته اَوړي ، په بَدنظرۍ او نورو ګناهونو کې به مبتلاء کېږي .

## ۹ . د بَدنظرۍ د ځايونو نه ځان ساتل

د بَدنظرۍ نه د بچ کېدو د پاره نهمه طريقه داده چې انسان د هغه ځايونو نه ځان اُوساتي کوم ځای چې د بَدنظرۍ اِمکان وي ، مثلا په کومو وَدونو کې چې پرَدي سړي او پرَدۍ ښځې يو ځای وي په هغې کې دې شِرکت نه کوي ، د سبل په کومو ځايونو کې چې جينکۍ هم وي هلته دې نه ځي او که ضرور د څه کار د پاره ځي نو بيا دې په داسې وخت کې لاړ شي چې په هغه وخت کې په کې جينکۍ نه وي ، په کومه لاره باندې چې د زَنانهؤ ډير تَګ راتَګ وي په هغې کې دې نه کيني ، په کومه اِنتظار ګاه يا نورو ځايونو کې چې تې وي لېږدلې وي هغې ته دې نه ګوري خپل مخ دې ورنه بل طرف ته واړوي يا دې خپل نظر ښکته ساتي . که د څه ضرورت په وجه د پرَدو ښځو سره د خبرو کولو موقع راشي نو د خبرو په وخت دې ښکته ګوري د هغې مخ ته دې نيغ نيغ نه ګوري .

ددينه علاوه چې په نورو کومو ځايونو کې د غلط نظر استعمالولو خطره وي د هغې نه دې ځان ساتي نو اُميد شته چې ددې ګناه کولو موقع به نه راځي .

---

←←← المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷٦۷۹ ، و رقم الحديث ۷۷۵۹ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۳۱ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۱۴۸۵ ؛ مجمع الزوائد باب في ادب العالم رقم الحديث ۵۴۳ ، تفسير ابن كثير ج۵ ص۷۲ ، احياء علوم الدين ج۲ ص۳۳۴ ، بحرالدموع ص۱۱۸ ، الخلق الحسن في ضوء الكتاب والسنّة ص۱۳۵ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ص۲٦۰ ، صلاح الامة في علو الهمة ج۱۰ ص۲۰۹ ، سلم اخلاق النبوة ص۴۳ ، قال الالباني في " السلسلة الصحيحة ص ۳۷۰ " : سنده صحيح . رجاله كلهم ثقات رجال الصحيح .

## دګناه نه د بچ کيدو کوشش کول

چې کله انسان کوشش کوي او خپل ځان ددې بَدنظرۍ د ګناه نه رامنع کوي نو په دې سره به الله تعالی دده راهنمائي کوي او ددې ګناه نه به منع وي.

الله تعالی فرمايي: ﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا﴾. (۱)

ترجمه: او چا چې زمونږ د دِين په لاره کې کوشش اوکړو نو مونږ به خامخا دوی ته خپلې لارې اُوښايو.

انسان به د خپل وَس مطابق د ګناه نه د بچ کيدو پوره کوشش کوي ، او څه چې دده په وَس کې نه وي هغه به د الله ﷻ غواړي نو الله تعالی به دده راهنمائي کوي.

## د حضرت يوسف عليه السلام کوشش

کله چې زليخې دَروازې قلف (تاله) کړی او بيا يې حضرت يوسف عليه السلام ته د ګناه دعوت ورکړو نو په ظاهره باندې د تختيدو هيڅ لاره نه وه ځکه حضرت يوسف ؑ پخپله اُوليدی چې زليخې دَروازې قلف کړې دي، خو ليکن ده بيا هم خپل کوشش اوکړو او دَروازې طرف ته يې مَنډه کړه ، نو الله ﷻ ورته د دَروازو قلفونه مات کړل.

نو انسان به په خپل اِختيار سره د بدنظرۍ او نورو ګناهونو نه د بچ کيدو پوره کوشش کوي نو الله تعالی به دده حفاظت کوي.

## ۱۰. ډير ذِکر کول

د بَدنظرۍ په ګناه کې مبتلاء کيدل د شيطاني وَسوسو په وجه وي ، ځکه شيطان د غافِل سړي په زړه کې وَسوسې اچوي ، اوس چې څوک د الله تعالی ذکر کوي نو شيطان دده په زړه کې وَسوسې نشي اچولی.

او که د انسان زړه ته ددې ګناه وَسوسه راشي نو فورًا دې د الله ذِکر شروع کړي نو دا وَسوسه به ختمه شي. الله تعالی فرمايي:

---

(۱) العنکبوت آية ۶۹.

﴿إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَٰئِفٌ مِّنَ الشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴾. (۱)

ترجمه : بيشکه کوم خلق چې د الله تعالى نه ويريږي کله چې دوی ته د شيطان د طرفه څه وَسوسې اُورسيږي نو دوی زَر الله رایاد کړي نو هماغه وخت دوی هر څه ګوري ( يعنی د دوی سترګې اوغړيږي ) .

بل دا چې څوک پرَدو ښځو ته ګوري نو د هغه مقصد دا وي چې ګني په دې سره به زما زړه ته اِطمينان حاصل شي ، حالانکه دا غلط سوچ دی ، ځکه په بَدنظرۍ سره خو د انسان زړه نور هم پريشانه کيږي ، بلکه د زړه اِطمينان خو د الله تعالى په ذکر سره حاصليږي .

په قرآن کريم کې ذکر دي :

﴿ أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ ﴾. (۲)

ترجمه : خبردار ، د الله تعالى په ذِکر سره زړونه مطمئِن کيږي .

د چا په زړه کې چې د ذِکر نُور وي نو هغه به هيڅ کله بل طرف ته توجّه اونکړي. که په يو ځای کې تسبيح اَړول ممکن نه وي نو صرف په ژبه او زړه کې دې د الله تعالى ذکر کوي .

## ۱۱ . نفس ته سزا ورکول

د بَدنظرۍ نه د بچ کيدو يوولسمه طريقه داده چې د چا په زړه کې پرَدو ښځو ته د کتلو شوق پيدا شي نو دا دې په ځان باندې يو څو رکعته نفل مونځ کول لازم کړي ، يا غريب سړي دې په ځان باندې يو څو روپۍ صدقه کول لازم کړي نو په دې سره به دا ددې ګناه نه محفوظ شي ؛ ځکه نفس ته ډير نفلي مونځونه کول يا صدقه ورکول ګران وي .

بيا د بَدنظرۍ د لږ خوَند د پاره دومره مشقت نشي برداشت کولی .

بل دا چې شيطان به هم دا وايي چې که زه ده ته د بدنظرۍ وَسوسه ورواچوم نو دا بيا دومره ډير نفلونه کوي چې په دې سره دده مغفرت کيږي او ګناهونه يې په نيکيو بدليږي ، نو شيطان ورته هم دا وَسوسه نه وراچوي .

(۱) الاعراف آية ۲۰۱ .

(۲) الرعد آية ۲۸ .

## ۱۲ . د حُورو تصوّر کول

که د چا په زړه کې پرَدو ښځو ته د کتلو شوق پیدا شي نو دا دې ځانته د جنت د حُورو تصوّر اوکړي کومې چې ده ته د ګناهونو نه د بچ کیدو او نیکو اعمالو په وجه ورکولې شي.

الله تعالی د هغه حُورو په باره کې فرمایي :

﴿ فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴾.(۱)

ترجمه : په دې جنت کې به ( د دوی د پاره ) نظر ښکته ساتونکې ( حیاءناکې ) ښځې وي چې ددې جنّتیانو نه وړاندې به دوی ته چا انسان یا پیري لاس هم نه وي وَروړی.

﴿ كَأَنَّهُنَّ ٱلْيَاقُوتُ وَٱلْمَرْجَانُ ﴾.(۲)

ترجمه : ګویا دا ښځې به د یاقوت او مرجان په شان ( ښائسته ) وي.

﴿ حُورٌ مَّقْصُورَٰتٌ فِى ٱلْخِيَامِ ﴾.(۳)

ترجمه : دا حُورې به په خیمو کې محفوظې وي.

﴿ وَحُورٌ عِينٌ ۝ كَأَمْثَٰلِ ٱللُّؤْلُؤِ ٱلْمَكْنُونِ ﴾.(۴)

ترجمه : د غټو سترګو واله حُورې به وي ، د پټو ملغلرو په شان ( پاکیزه ) به وي.

﴿ إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً ۝ فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا ۝ عُرُبًا أَتْرَابًا ﴾.(۵)

ترجمه : بیشکه مونږ دا حُورې په خاص اَنداز سره ( ښائسته ) پیدا کړي ، مونږ دا داسې جوړې کړي چې همیشه به پیغلې ، محبوبې ، او هَمزولې وي.

﴿ وَلَهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَهُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾.(۶)

---

(۱) الرحمن آیة ۵۶ .

(۲) الرحمن آیة ۵۸ .

(۳) الرحمن آیة ۷۲ .

(۴) الواقعة آیة ۲۲ ، ۲۳ .

(۵) الواقعة آیة ۳۵ تا ۳۷ .

(۶) البقرة آیة ۲۵ .

ترجمه : او دوی د پاره به په دې جنت کې پاکیزه بيبيانې وي ، او دوی به په دې کې هميشه وي .

ددينه علاوه د قرآن کريم په نورو ډيرو آيتونو کې الله تعالی د حُورو ښائست او بهترين صفات ذکر کړي .

**د دُنيا د ښځو حالت** : د دُنيا ښځې خو داسې دي چې په هره مياشت ورنه د حيض بَدبُويه وينه ځي ، د بچي پيدا کيدو سره ورنه د نِفاس وينه هم ځي ، هر وخت په خپټه کې ګندګي ګرځوي . که لږ وخت صفائي اونکړي نو په پوزه کې يې ګندګي جمع کيږي ، په سِينه کې يې بَلغم وي ، د تخَرګونو او خُلې نه يې بَدبُوئي ځي ، په سَر کې يې سپږې کيږي. چې بُوډۍ شي نو مخ يې بَدرنګ شي ، غاښونه يې اُووځي ، ملا يې راکږه شي ، خبرې پوره نشي کولی ، يا خاصکر چې بيماره شي نو هسې چيچَړه ورنه جوړه شي .

**د جنت د حُورو حالت** : ددې په مقابله کې د جنت حُورې دي چې هميشه به ځوانې وي ، د ډير ښائست نه به د ملغلرو په شان پرقيږي ، د بدن د هرې حصې نه به يې ښائسته خُوشبوئي ځي ، داسې پاکې او صفا به وي چې که د خُلې لاړې په تروش سمندر کې واچوي نو غنډ سمندر به خوږ شي ، که د لاس يوه ګُته دُنيا ته راښکاره کړي نو د نمر رَڼا به تَتَه شي ، تر اُوسه انسانانو او پيريانو ورته لاس ندې وَروړی ، نه وريانديې بيماري راځي ، او نه وريانديې بُوډاوالې راځي ، هميشه به پيغلې او همزولې وي .

اوس دې هوښيار انسان د ځان سره پخپله سوچ اوکړي چې که چيرته زه د دُنيا دې بې وَفا ښځو ته په غلط نظر اُوګورم نو د آخرت د ښائسته حُورو نه محروم کيږم . او که دلته خپل نظر کنټرول کړم نو الله تعالی به راته د آخرت ښائسته حورې راکړي .

نو په دې تصوّر سره به انسان پخپله د بَدنظرۍ نه واوړي .

## ۱۳. د جنت نعمتونه رايادول

چې کله د مسلمان په زړه کې بَدنظرۍ يا بلې ګناه ته شوق راپيدا شي نو ځانته دې د آخرت نِعمتونه راياد کړي ، ځکه الله تعالی د ګناه نه ځان بچ کوونکو او د الله حکم منونکو د

پاره د جنت داسې ښائسته نعمتونه تيار کړي دي چې هغه نه سترګو ليدلي ، نه غوږونو اَوريدلي ، او نه د چا په زړه کې د هغې خيال تير شوی .

همدارنګې په قرآن کريم او احاديثو کې چې د جنت کوم نِعمتونه ذکر شوي د هغې تصوّر دې اوکړي نو په دې سره به دده توجّه د آخرت دائمي نِعمتونو طرف ته واوړي او د دنيا د معمولي لذّتونو نه به کښې شي . (۱)

## ۱۴ . خيال بدلول

که د چا په زړه کې پرَدۍ ښځې ته د کتلو اِراده راپيدا شي نو ده ته په کار دي چې دا خپل خيال بدل کړي يعنی دا سوچ اوکړي چې ددې دا ښائسته مخ به يوه ورځ د بوډاوالي يا مرض په وجه راغُنجيږي ، ملا به يې راکږيږي ، غاښونه به يې اُووځي ، نظر به يې کمزورې کيږي ، غوږونه به يې کار پريږدي ، او چې وفات شي نو په قبر کې به ددې دا ښائسته بدن سخا شي او د چينجو خوراک به اوګرځي ، لهذا زه ديته په کتلو سره خپل رَب څنګه ناراضه کړم ؟ نو په دې سره به دده د زړه نه ددې ګناه تصوّر ختم شي .

## ۱۵ . خپل ځان پخپله ملامته کول

چې کله د چا په زړه کې د بَدنظرۍ اِراده راشي نو دا دې خپل ځان پخپله ملامته کړي ، يعنی ځان ته دې دا خطاب اوکړي :

اې فلانکيه ! الله تعالی ستا مرتبه اوچته کړې ده ليکن ته پرَدو ښځو ته کتلو سره ډير قبيح حرکتونه کوې ، ته په ظاهره مؤمن او د الله دوست ښکارې ليکن په باطن کې د فاسقانو او د الله د دُشمنانو کار کوې ، تا په ظاهره ځان په شريعت برابر کړی ليکن په باطن کې د شهوت نه ډک حرکتونه کوې ، ته په ظاهره د جنت طلبګاريې ليکن په پټه

---

(۱) تذكر نعيم الجنة: أعد الله في الجنة لمن أطاعه ما لا عين رأت ولا أذن سمعت ولا خطر على قلب بشر. ويتنعم أهل الجنة بسائر ألوان النعيم وأصنافه. بل كل ما يتمناه المرء هناك يحصل له. ومما يتنعم به أهل الجنة إتيان هذه الشهوة لكن شتان بين ما في الدنيا والآخرة وأنى لبشر مهما أوتي من البلاغة أن يصف هذا النعيم . لعلم كيف تغض بصرك

باندې د جهنم اعمال کوی ، په ظاهره د الله خاص بنده معلومیږی لیکن په باطن کې د شیطان تابعداري کوی ، په ظاهره مخلوقاتو ته ښه سړی معلومیږی لیکن په باطن کې د الله ﷻ نافرماني کوی ، که مخلوقات ستا په دې قبیح حرکت نه پوهیږي نو الله تعالی خو ددې هر څه نه خبردار دی .

ولې ددې معمولي لذّت حاصلولو د پاره ځان د الله ﷻ عذاب ته جوړوی؟ تر اوسه خو الله تعالی ستا پَرده خوَندي کړی لیکن که ته منع نشی نو آخر به دې رَسواء کړي، بیا به د اَفسوس لاسونه مرُوړی لیکن اُوبه به د وَرخ نه تیرې وي ، هیڅ به نشی کولی، لهذا همدا نن ددې بدنظرۍ ګناه نه توبه اُوباسه نو الله تعالی به درته د دواړو جهانو خوشحالي درکړي .

چې کله انسان ځان ته څو پیرې دا خطاب اوکړي نو اُمید دی چې د بدنظرۍ نه به محفوظ شي.

**شیطان ته خطاب** : که پرَدې ښځه مخامخ راروانه وي نو شیطان انسان ته وَسوسې وراچوي چې دیته اوګوره چې دا څنګه ده؟

نو شیطان ته جواب ورکول په کار دي چې زه دیته هرګز نه ورګورم ؛ ځکه که دا بَدرنګه وي نو خفه به هم شم او ګناهګار به هم شم .

او که ښائسته وي نو ماته کتل جائز ندي نو په کتلو سره به ګناهګار شم ، د الله تعالی د لعنت او سزا مستحق به جوړشم .

## ۱۶ . د بَدنظرۍ نه د بچ کیدو دعا کول

انسان به د بَد نظرۍ او نورو ګناهونو نه د بچ کیدو دُعا کوي ، ځکه الله تعالی پخپله وعده کړی چې تاسو د مانه دُعا غواړی زه به یې قبلوم :

﴿ اُدْعُوْنِیْٓ اَسْتَجِبْ لَكُمْ ﴾ (۱)

(۱) غافر آیة ۶۰

بل ځای فرمایي : ﴿ اَمَّنْ یُّجِیْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَیَكْشِفُ السُّوْٓءَ ﴾ النمل آیة ۶۲

ترجمه: تاسو د مانه دُعاګاني غواړئ زه به ستاسو دُعاګاني قبلوم.

**حضرت يوسف عليه السلام هم دُعا اوغوښته**: حضرت يوسف عليه السلام ته چې کله فِتنه رامخې ته شوه نو هغه هم ددينه د بچ کيدو د پاره دُعا اُوغوښته. (۱)

نو الله تعالى د هغه دُعا قبوله کړه او د هغه فِتنې نه يې بچ کړو.

الله تعالى ددې بيان داسې کړی:

﴿ فَاسْتَجَابَ لَهُ رَبُّهُ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾. (۲)

ترجمه: پس دده رَب دده دُعا قبوله کړه او د هغه ښځو مَکريې دده نه لرې کړو، بيشکه همدا الله تعالى اَوريدونکی (او) پوهه دی.

الله تعالى د خپلو دُعاګاني قبلوي، او ددې ډيرې نمونې موجود دي:

**حضرت يونس عليه السلام هم دُعا اوغوښته**: (اوږده واقعه ده، خو زه ورنه صرف مطلبي ځای رانقل کوم):

حضرت يونس عليه السلام چې کله د ماهي په خېټه کې وُ او هر طرف ته تياره وه، نو ده هم په دې وخت کې د الله تعالى نه دُعا اُوغوښته. (۳)

نو الله تعالى دده دُعا قبوله کړه:

﴿ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْغَمِّ وَكَذَٰلِكَ نُنجِي الْمُؤْمِنِينَ ﴾. (۴)

ترجمه: پس مونږ دده دُعا قبوله کړه، او ده ته مو د غم نه نِجات ورکړو، همدغه شان مونږ مؤمنانو ته هم (د غمونو نه) نِجات ورکوو.

---

(۱) الله تعالى د حضرت يوسف عليه السلام خبره داسې رانقل کړی: ﴿ قَالَ رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِي إِلَيْهِ وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُن مِّنَ الْجَاهِلِينَ ﴾. يوسف، آية ۳۳.

(۲) يوسف آية ۳۴.

(۳) الله تعالى ددې بيان داسې کړی: ﴿ وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادَىٰ فِي الظُّلُمَاتِ أَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ الانبياء، آية ۸۷

(۴) الانبياء آية ۸۸.

حضرت زکریا علیه السلام هم د ځوي د پاره دُعا غوښتې وه نو الله تعالیٰ د هغه دُعا قبوله کړه.(۱)

همدغه شان اوس هم مسلمان ته پکار دي چې د ګناه نه د بچ کیدو د پاره په اخلاص باندې د الله ﷻ نه دُعا اوغواړي.

یا خاصکر چې کله د کور نه اُوځي نو اول دې دا دُعا اوغواړي:

"" اې الله ! تا ماته دا سترګې لوي نعمت راکړې دی ته راته ددې نعمت د صحیح استعمال توفیق راکړه.

اې ربه ! تا راته د نظر د حفاظت حکم کړی خو زه پخپله کمزورې او بې حوصلې یم ته راته په خپل رَحمت سره په دې حکم باندې د عمل کولو توفیق راکړه، او د شیطان د وَسوسو نه مې اُوساته "".

یا چې کله د کور نه بهر اُووځي نو کوشش به کوي چې خپل نظر کنټرول کړي، او که په غلطۍ کې یې نظر په غلط ځای اُولږي نو سمدستي دې مخ دیخوا راواړوي او په ژبه دې استغفار اووایي، نو اُمید شته چې الله تعالی به په خپل فضل و کرم سره دده حفاظت کوي.

## ۱۷ . که په پرَدۍ ښځه باندې نظر پریوتلو سره په زړه کې خراب خیال پیدا شي نو خپلې بي بي ته ورتلل په کار دي

د انسان په فطرت کې دا خبره پرَته ده چې ښه شي ته یې رغبت پیدا کیږي، لهذا که د چا نظر په پرَدۍ ښځه باندې اُولږي او په دې سره دده په زړه کې غلطې وَسوسې یا خراب خیالات پیدا شي نو ددې علاج نبي ﷺ دا خودلی چې داسې کس (که واده یې کړې وي دا) دې خپلې بي بي ته ورشي نو په دې سره به دده د زړه نه دا وَسوسې ختمې شي.

د مسلم شریف حدیث دی، چې یو ځل نبي علیه السلام یوه ښځه اُولیده، یا خپل کور ته لاړ ...... کله چې واپس راأووت نو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته یې اوفرمایل:

(۱) ﴿ وَزَكَرِيَّا إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ رَبِّ لَا تَذَرْنِي فَرْدًا وَأَنتَ خَيْرُ الْوَارِثِينَ ۝ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَوَهَبْنَا لَهُ يَحْيَىٰ وَأَصْلَحْنَا لَهُ زَوْجَهُ ﴾. الانبياء، آية ۸۹، ۹۰.

إِنَّ الْمَرْأَةَ تُقْبِلُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ ، وَتُدْبِرُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ ، فَإِذَا أَبْصَرَ أَحَدُكُمُ امْرَأَةً فَلْيَأْتِ أَهْلَهُ ، فَإِنَّ ذٰلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِهِ .

بيشکه ښځه د شيطان په صورت کې راځي او د شيطان په صورت کې ځي ( يعنی د شيطان په شان د انسان په زړه کې وَسوسې اچوي ) ، پس کله چې په تاسو کې يو کس پردی ښځه اوګوري نو دا دې خپل کور واله ته راشي ځکه دا به هغه غلطې وَسوسې ختمې کړي کومې چې ده ته په زړه کې پيدا شوي وي. (۱)

همداسې مضمون په نورو احاديثو کې هم ذکر شوی. (۲)

**تشريح:** په مذکوره حديث کې د ښځې تشبيه د شيطان سره په دې کې ورکړې شوې چې لکه څرنګې شيطان د انسان په زړه کې وَسوسې او غلط خيالات وراَچوي نو همدغه شان د

---

(۱) عَنْ جَابِرٍ رضي الله عنه ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى امْرَأَةً ، فَأَتَى امْرَأَتَهُ زَيْنَبَ رضي الله عنها ، وَهِيَ تَمْعَسُ مَنِيئَةً لَهَا ، فَقَضَى حَاجَتَهُ ، ثُمَّ خَرَجَ إِلَى أَصْحَابِهِ ، فَقَالَ : « إِنَّ الْمَرْأَةَ تُقْبِلُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ ، وَتُدْبِرُ فِي صُورَةِ شَيْطَانٍ ، فَإِذَا أَبْصَرَ أَحَدُكُمُ امْرَأَةً فَلْيَأْتِ أَهْلَهُ ، فَإِنَّ ذٰلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِهِ » . صحيح مسلم كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ نَدْبِ مَنْ رَأَى امْرَأَةً فَوَقَعَتْ فِي نَفْسِهِ إِلَى أَنْ يَأْتِيَ امْرَأَتَهُ أَوْ جَارِيَتَهُ فَيُوَاقِعَهَا رقم الحديث ۹(۱۴۰۳) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۴۵۳۷ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنْ غَضِّ الْبَصَرِ رقم الحديث ۲۱۵۱ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۰۷۲ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۳۵۱۶ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۲۳۸۵ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۳۲ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۰۵۲

(۲) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه ، قَالَ : رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةً فَأَعْجَبَتْهُ ، فَأَتَى سَوْدَةَ رضي الله عنها وَهِيَ تَصْنَعُ طِيبًا ، وَعِنْدَهَا نِسَاءٌ فَأَخْلَيْنَهُ فَقَضَى حَاجَتَهُ ، ثُمَّ قَالَ : « أَيُّمَا رَجُلٍ رَأَى امْرَأَةً تُعْجِبُهُ فَلْيَقُمْ إِلَى أَهْلِهِ ، فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا » . سنن الدارمي وَمِنْ كِتَابِ النِّكَاحِ بَابُ الرَّجُلِ يَرَى الْمَرْأَةَ فَيَخَافُ عَلَى نَفْسِهِ رقم الحديث ۲۲۶۱ إسناده حسن . مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاحِ بَابُ النظر إلى المخطوبة وبيان العورات الفصل الثاني رقم الحديث ۳۱۰۸(۱۱) ، سنن الترمذي بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَرَى الْمَرْأَةَ تُعْجِبُهُ رقم الحديث ۱۱۵۸ .

قال الملا علي قاري رحمه الله : (فَإِنَّ مَعَهَا) أَيْ مَعَ امْرَأَتِهِ (مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا) أَيْ فَرْجًا مِثْلَ فَرْجِهَا وَيَسُدُّ مَسَدَّهَا . قَالَ الطِّيبِيُّ رحمه الله : يُرِيدُ أَنَّ غَايَةَ ذٰلِكَ النَّظَرِ هٰذَا الْفِعْلُ وَلٰكِنَّ التَّفَاوُتَ أَنَّ فِي تِلْكَ الْغَايَةِ سُخْطًا مِنَ اللهِ وَهٰذِهِ بِخِلَافِهِ . وَكَانَتْ تِلْكَ الْفَعْلَةُ بِمَحْضَرٍ مِنَ النِّسَاءِ إِرْشَادًا لَهُنَّ وَلِأَزْوَاجِهِنَّ إِلَى مَا يَنْبَغِي أَنْ يُفْعَلَ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۳ في تشريح حديث ۳۱۰۸ .

پرَدې ښځې په ليدلو سره هم د انسان په زړه کې وَسوسې او غلط خيالات پيدا کيږي ، نو ځکه نبي عليه السلام ددې وسوسو ختمولو طريقه اوخوده. (۱)

## د بَدنظرۍ نه توبه ويستل پکار دي

که څوک د شيطاني وَسوسو په وجه په بَدنظرۍ کې مبتلاء وي نو هغه ته پکار دي چې همدا اوس ورنه په اخلاص باندې توبه اُوباسي :

**د توبې تعريف** : توبه ديته وايي چې انسان په ژبه باندې استغفار ووايي ، په تيرو ګناهونو باندې پښيمانه شي ، او په آئنده کې ددې ګناه د نه کولو پَخه اراده اوکړي . (۲)

په توبې سره الله تعالى د انسان مخکيني ګناهونه معاف کوي ، په قرآن کريم کې ذکر دي :

﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ وَيَعْفُوْا عَنِ السَّيِّاٰتِ وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُوْنَ ﴾.(۳)

---

(۱) (فِيْ صُوْرَةِ شَيْطَانٍ ) شَبَّهَهَا بِالشَّيْطَانِ فِيْ صِفَةِ الْوَسْوَسَةِ وَالإِضْلَالِ ؛ فَإِنَّ رُؤْيَتَهَا مِنْ جَمِيْعِ الْجِهَاتِ دَاعِيَةٌ لِلْفَسَادِ. مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۳ في تشريح حديث ۳۱۰۸.

(۲) معارف القرآن سورة التحريم في تشريح آية ۸ .

علامه طيبي رحمه الله د توبې تعريف داسې کړی :

تَرْكُ الذَّنْبِ لِقُبْحِهٖ وَالنَّدَمُ عَلٰى مَا فَرَطَ مِنْهُ وَالْعَزِيْمَةُ عَلٰى تَرْكِ الْمُعَاوَدَةِ وَتَدَارُكِ مَا اَمْكَنَهُ اَنْ يَتَدَارَكَ مِنَ الْاَعْمَالِ بِالْاِعَادَةِ .... مرقاة شرح مشكوة ج۵ ص ۱۲۲ باب الاستغفار والتوبة.

علامه قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کې ليکي : چې کله څلور شرائط موجود شي نو الله جل جلاله د هغه انسان توبه قبلوي :

اَلنَّدَمُ بِالْقَلْبِ . وَتَرْكُ الْمَعْصِيَةِ فِي الْحَالِ . وَالْعَزْمُ عَلٰى اَلَّا يَعُوْدَ اِلٰى مِثْلِهَا . وَاَنْ يَكُوْنَ ذٰلِكَ حَيَاءً مِّنَ اللّٰهِ تَعَالٰى لَامِنْ غَيْرِهٖ. تفسير قرطبي ج۵ ص ۸۸ سورة النساء في تشريح آيت ۱۷ .

وقيل : اَلتَّوْبَةُ : تَرْكُ الذَّنْبِ وَالنَّدَمُ عَلٰى فِعْلِه وَالْعَزْمُ عَلٰى عَدمِ الْعَوْدِ وَرَدُّ الْمَظْلِمَةِ اِنْ كَانَتْ . اَوْ طَلَبُ الْبَرَاءَةِ مِنْ صَاحِبِهَا . وَاَدَاءُ مَا ضَيَّعَ مِنَ الْفَرَائِضِ . تكملة فتح الملهم ج۵ ص ۵.

(۳) الشورى آية ۲۵ .

ترجمه : الله هغه ذات دی چې د خپلو بندګانو توبه قبلوي ، ګناهونه ورته معاف کوي ، او تاسو چې څه کارونه کوی په هغې باندې پوهيږي .

بل ځای فرمايي :

﴿ قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴾.(۱)

ترجمه : اې پيغمبره ! ته زما د طرفه دې خلقو ته اووايه چې اې زما هغه بندګانو چاچې زياتې کړې په خپلو ځانونو باندې (يعنی کُفر ،شرک او کبيره ګناهونه يې کړي) تاسو د الله د رحمت نه مه نا اُميده کيږئ ، بيشکه الله ټول ګناهونه بخښي ، بيشکه هم دا بخښونکی او مهربان دی .

(۱) الزمر آية ۵۳

# د بَدنظرۍ نور قسمونه

پرَدو ښځو ته د کتلو نه علاوه د بَدنظرۍ نور قِسمونه هم شته ، زه درته یو څو ذکر کوم :

**۱. په فیس بُک او انټرنټ کې فحش ویډیوګانې او فحش تصویرونه کتل** : په فیس بُک او انټرنټ استعمالولو کې به څه نا څه فائده هم وي خو نن صبا اکثره غلط استعمالیږي، یا خاصکر د ځوان نسل د تباهۍ د پاره دا لویه ذریعه ده ، ټوله ورځ په کې هلکان فحش ویډیوګانې او فحش تصویرونه ګوري چې دا هم د بَدنظرۍ یو قِسم دی .

همدارنګې بعضې خلق په دې باندې سیکسي فِلمونه ګوري چې دا د ځوانانو د پاره زهرِ قاتل دی .

علماء لیکي چې فحش ویډیوګانې او فحش تصویرونه کتل ډیر خطرناک دي ، ځکه په لاره تللو کې پرَدۍ ښځې ته څوک دومره په باریک بینۍ سره نشي کتلی او په دې ویډیوګانو او تصویرونو کې ورته په پوره باریک بینۍ سره ګوري .

**۲. ټي وي او وي سي آر** : د بد نظرۍ یو قِسم په ټي وي او وي سي آر کې درامې او فحش فِلمونه کتل دي .

یا ډیره د بې شرمۍ خبره داده چې په کور کې پلار او لورانې یو ځای ناست وي ، ډرامې او ګډاګانې ګوري ، اکثره په کې داسې مناظر مخې ته راشي چې هغه جِنسي خواهشات راپاروي ، نو چې کله د کور خلق په یو ځای دا ګوري نو په دوی کې به حیاء او غیرت څه پاتې شي ؟

بل دا چې په دې کې مسلمانانې ښځې د غیر مُسلمو ښځو فیشنونه او بې پرَدګي او ګوري نو ضرور به یا هماغه انداز اختیاروي .

په دې باندې ټول ډاکټران متّفق دي چې ټي وي او وي سي آر کتل د سترګو د پاره سخت نقصاني دي ، په دې سره نظر کمزروي کیږي .

همدارنګې په کوم کور کې چې ټي وي یا وي سي آر وي د هغه کور د ماشومانو اخلاق هم خرابیږي .

همدارنګې په معاشره کې چې زِنا کاري ، غلا ، ډاکه ، جګړې ، د ښځو بې عزتي او نور د بې شرمۍ واقعات زيات شوي نو ددې طريقې هم ځوانانو د فِلمونو او ډرامو نه زده کړي، چې دوی په فِلمونو کې هغه طريقې اوګوري بيا پخپله په معاشره کې دا جُرمونه کوي ، او ددې اِقرار دې مُجرمينو په عدالت کې پخپله هم کړې دی .

عجيبه داده چې مونږ دا خطرناک څيز په خپل لاس باندې کور ته راوړو ، د خپلو بچو آئنده ژوند ورباندې تباه کوو ، او په خپل لاس باندې خپله دُنيا او آخرت خرابوو .

**۳ . په اَخبارونو او رِسالو کې د ښځو فحش تصويرونه کتل** : د بدنظرۍ يو قِسم دادی چې خلق په اخبارونو او رِسالو کې د ښځو فحش تصويرونه ګوري ، چې دا هم په معاشره کې د بې حيايۍ خوَرولو غټه ذريعه ده .

**٤ . د بل چا د کور دروازې په سُوري کې کتل** : د بدنظرۍ يو قِسم دادی چې انسان بې اجازته د بل چا د کور دروازې په سُوري کې دننه ګوري ، يا د ديوال د پاسه او يا بلې طريقې سره دننه ګوري ، په احاديثو مبارکهؤ کې ددينه سخته منع راغلې.

په احاديثو کې خو تر دې پورې راغلي چې که کوم کس بِلا اجازته د بل چا په دَروازه کې دَننه کتل او د کور مالِک دده سترګه اُوويسته نو په هغه باندې تاوان نشته . (۱)

(۱) قَال رسولُ الله صلى الله عليه وسلم : لَوِ اطَّلَعَ فِي بَيْتِكَ أَحَدٌ وَلَمْ تَأْذَنْ لَهُ خَذَفْتَهُ بِحَصَاةٍ فَفَقَأْتَ عَيْنَهُ مَا كَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ . صحيح البخاري كِتَابُ الدِّيَاتِ بَابُ مَنْ أَخَذَ حَقَّهُ أَوِ اقْتَصَّ دُونَ السُّلْطَانِ رقم الحديث ٦٨٨٨ ، صحيح مسلم كتاب الآدَابِ بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ فِي بَيْتِ غَيْرِهِ رقم الحديث ۴۴ (۲۱۵۸) .

که يو کس ستا د کور په دَروازه کې پټ راګوري او تا هغه ته اجازت نه وي کړی بيا تا هغه په ګيټۍ ( وړوکي کاڼي ) باندې اُوويشت او د هغه سترګه دې راُوويسته نو په تا باندې څه ګناه نشته .

وفي رواية : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنِ اطَّلَعَ فِي بَيْتِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ فَقَدْ حَلَّ لَهُمْ أَنْ يَفْقَئُوا عَيْنَهُ . صحيح مسلم كتاب الآدَابِ بَابُ تَحْرِيمِ النَّظَرِ فِي بَيْتِ غَيْرِهِ رقم الحديث ۴۳ (۲۱۵۸)

# د فيس بُک او انټرنټ غلط استعمالولو نقصانات

ددې څه بيان اوس تيرشو خو چونکه نن صبا دا بيماري ډيره زياته ده نو ځکه يې درته په تفصيل سره ذکر کوم:

اول په دې خبره ځان پوهه کړئ چې موبائل که صحيح استعمال شي نو دا يو نعمت دی ځکه ددې په ذريعه انسان په لږ وخت کې د ډيرو خلقو سره رابطه کولې شي، او په دې کې د المکتبة الشاملة او نورو کتابونو نه هم فائده حاصلولې شي. خو که دا غلط استعمال شي نو بيا يې نقصان هم زيات دی.

ددې مثال داسې دی لکه تيره چاړه که انسان صحيح استعمال کړي نو فائده مَنده ده خو که غلطه يې استعمال کړی نو نقصاني ده.

همدغه شان فيس بُک او انټرنټ اګرچې د څه ښه مقاصدو د پاره هم استعماليږي خو ليکن په سلو کې اَتيا فيصده خلق دا غلط استعمالوي.

نن صبا د موبائل او انټرنټ استعمال دومره عام شوی او خلق ورسره دومره عادت شوي چې د معاشرې نه ددې ختمول ناممکن دي خو کوشش دا په کار دی چې انسان دا صحيح استعمال کړي، او غلط يې استعمال نکړي.

اوس ددې د غلط استعمالولو نه ځان بچ کولو د پاره داضروري ده چې انسان ددې د نقصاناتو نه خبر شي. لهذا زه درته اول ددې د غلط استعمالولو نقصانات اِجمالاً ذکر کوم، بيا به يې درته تفصيلاً ذکر کړم:

۱. ددې مذکوره شيانو په غلط استعمال سره په معاشره کې فحاشي خوَريږي.

۲. قيمتي وخت ورسره فضول ضائع کيږي.

۳. نوې نسَل ورسره تباه کيږي.

۴. صحت ورسره خرابيږي.

۵. مال و دولت ورسره ضائع کيږي.

۶. دين ورسره کمزورې کيږي.

۷. شرم او حياء ورسره ختميږي.

۸ . آخرت ورسره تباه کیږي .

نور نقصانات یې هم شته لکه :

۹ . د موبائل په ټلی باندې سندرې لږولو سره په جُمات کې د نورو خلقو مونځ خرابیږي.

۱۰ . د موبائل په ټلی باندې د قرآن کریم تلاوت یا آذان لږولو سره د قرآن کریم د آیتونو او آذان بې اَدبي کیږي.

۱۱ . د ښځو د پاره بِلا ضرورت په موبائل باندې د پرَدو سړو سره خبرې کولو نه ډیرې فِتنې پیدا کیږي .

**تفصیل** : اوس درته دا نقصانات تفصیلاً ذکر کوم :

## ۱ . په معاشره کې فحاشي خورَیږي

فیس بُک ، اِنټرنټ ، ټي وي وغیره غلط استعمالولو سره په معاشره کې فحاشي او بې حیائي خورَیږي ، ځکه د هر چا په جیب کې غټ موبائل وي په آسانۍ سره وریاندې د ټولې دُنیا فحاشي کتلې شي .

مخکې به خلق د فِلمونو او ډرامو کتلو د پاره سیمناګانو له تلل ، او هغې ته به هر کس نه شو تللی ، لیکن نن صبا د یو څو روپو په عِوض کې ټوله میاشت اِنټرنټ مفت استعمالوي ، او هر قِسمه فحش ویډیوګانې وریاندې کتلې شي .

بیا ډیره د آفسوس خبره داده چې بعضې دِینداره خلق هم په دې مرض باندې مبتلاء دي ، بل څوک وریاندې خبر هم نه وي او دوی ځانله دا ګوري .

د اِنټرنټ نه که څوک د ځان د پاره د کار څیز راډاؤنلوډ کوي نو په هغې باندې زیاتې روپۍ کټ کیږي لیکن که یو کس ټوله ورځ وریاندې فحاشي ګوري نو د هغې هیڅ زیاتې روپۍ نه کټ کیږي ، ددینه معلومیږي چې دا په مسلمانانو کې د فحاشۍ خورَولو لویه ذریعه ده .

## ۲ . قیمتي وخت ورسره فضول ضائع کیږي

په دې سره قیمتي وخت فضول ضائع کیږي ، بیا خاصکر ځوانان ټوله ورځ او ټوله شپه د فیس بُک او اِنټرنټ کولو ته پراته وي ، په لاس ورته هیڅ نه ورځي خو صرف خپل وخت

وربانديې ضائع کوي.

حالانکه وخت ډير قيمتي دی، دا چې يو ځل تير شي نو په لکونو روپو خرچ کولو سره دا واپس نه راګرځي.

نن د انسان د پاره موقع ده چې نيک اعمال اوکړي خو چې کله دا وخت فضول تير شي نو د قيامت په ورځ که دا بيا هرڅومره ارمانونه اوکړي خو دا موقع بيا ورته په لاس نه ورځي.

کومو کافرانو چې په دُنيا کې خپل وخت فضول ضائع کړې وي او دوی جهنم ته لاړ شي نو دوی به په چغو چغو الله ﷻ ته عرض اوکړي:

﴿ رَبَّنَآ أَخۡرِجۡنَا نَعۡمَلۡ صَٰلِحًا غَيۡرَ ٱلَّذِي كُنَّا نَعۡمَلُ ﴾. (۱)

ترجمه: اې زمونږه ربه! مونږ (ددې اُور نه) اُوباسه نو مونږ به نيک عمل اوکړو، غير د هغه کارونو نه چې کوم مونږ په دُنيا کې کول.

الله تعالی به ورته اُوفرمايي: ﴿ أَوَلَمۡ نُعَمِّرۡكُم مَّا يَتَذَكَّرُ فِيهِ مَن تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ ٱلنَّذِيرُۖ فَذُوقُواْ فَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴾. (۲)

ترجمه: آيا مونږ تاسو ته دومره عُمر نه وُ درکړی چې په هغې کې چا نصيحت حاصلول غوښتل هغه نصيحت حاصلولې شو؟ او تاسو ته ويرووُنکی هم درغلې وُ، پس اوس (د عذاب) خوَند اُوڅکئ، د ظالمانو د پاره څوک مددګار نشته.

ددې آيت نه معلومه شوه چې خپل وخت قيمتي ضائع کول ندي په کار.

## ډير خلق په دهوکه کې پراته دي

د بخاري شريف حديث دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

نِعۡمَتَانِ مَغۡبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ: اَلصِّحَّةُ وَالۡفَرَاغُ. (۳)

---

(۱) فاطر آية ۳۷.

(۲) فاطر آية ۳۷.

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابٌ: لَا عَيۡشَ إِلَّا عَيۡشُ الۡآخِرَةِ رقم الحديث ۶۴۱۲، سنن الترمذي أَبۡوَابُ الزُّهۡدِ عَنۡ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ بَابٌ: الصِّحَّةُ وَالۡفَرَاغُ نِعۡمَتَانِ مَغۡبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ رقم الحديث ۲۳۰۴.

دوه نِعمتونه داسې دي چې په دې کې ډير خلق په دُهوکه کې پراته دي : يو صِحت ، او دويم فراغت.

يعنې ترڅو پورې چې انسان روغ وي يا فارغ وخت ورسره وي نو دې دا ګمان کوي " چې ګنې زه به هميشه همداسې تندرست يم او هميشه به زه داسې فارغ يم ، تراوسه ځوان يم خپلې مزې به اوکړم چې کله بوډا شم نو توبه به اُوباسم او عبادت به شروع کړم".

نو داسې کس د شيطاني دُهوکې په وجه خپل وخت په فضول شيانو کې ضائع کوي ، بيا وربانديې داسې وخت راشي چې صحت يې هم خراب شي او فارغ وخت ورسره هم نه وي چې د الله تعالی عبادت اوکړي ، نو د اَفسوس لاسونه مُروړي خو وخت تير شوې وي ده ته په ګوتو باندې هيڅ نه ورځي.

نو ځکه رسولُ الله صلی الله عليه وسلم اوفرمايل چې په دې دوه نِعمتونو کې خلق په دُهوکه کې پراته دي .

لهذا دا مه ضائع کوئ ، دا غنيمت اوګڼرئ او د الله تعالی عبادت په کې اوکړئ.

## پنځه شيان غنيمت ګڼړل په کار دي

رسول الله ﷺ يو کس ته نصيحت کولو او ورته وې فرمايل :

اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ: شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ، وَغِنَاءَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ. (١)

پنځه خبرې د پنځو نه مخکې غنيمت اوګڼره : ځواني د بُوډاوالي نه مخکې ، صِحت د بيمارۍ نه مخکې ، مالداري د فقر نه مخکې ، فارغ وخت د مشغولتيا نه مخکې ، او ژوند د مرګ نه مخکې.

د وخت قدر هغه چاته معلوميږي چې هغه د دُنيا نه خالي لاس لاړ شي او د ځان سره يې د

(١) المستدرک علی الصحيحين للحاکم كِتَابُ الرِّقَاقِ رقم الحديث ٧٨٤٦ ، وقال الحاکم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. ووافقه الذهبي مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ٣٤٣١٩ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ١١٨٣٢ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ٨٠٩ ، شعب الايمان رقم الحديث ٩٧٦٧ ، و رقم الحديث ٩٧٦٩ ، مشکوة المصابيح رقم الحديث ٥١٧٤ ، کنز العمال رقم الحديث ، ٤٣٤٩٠ .

نېکو اعمالو هیڅ توخه نه وي تیاره کړي.
لهذا په فضول کارونو کې خپل قیمتي وخت ضائع کول ندي په کار.

## ۳. نوې نسل ورسره تباه کیږي

په فیس بُک، اِنټرنټ، ټي وي وغیره غلط استعمالولو سره دا نوې نسل مکمل تباه کیږي، ځکه د انسان په فِطرت کې دا خبره پرته ده چې دا د بل چا نه اَثر اخلي او د بل چا نقل کوي، اوس چې په فِلمونو او ډرامو کې دا د بدمعاشانو غلط انداز اوګوري یا د ډمانو ګډاګانې اوګوري نو بیا به خامخا هماغه نقل کوي.
خاصکر ددې نوي نسَل دِماغ خو مکمل خالي وي چې څه شی په کې اول راشي نو هماغه په کې پوخ وي، نن صبا چې غلاګانې، قتلونه، د ماشومانو او ښځو تختول زیات شوي نو دا طریقې دې نوي نسَل د همدې فِلمونو او ډرامو نه زده کړي دي.
موږ ګورو چې په کوڅو کې وړې وړې جینکۍ وي هغوی په روانه روانه کې د ډمانو ښځو په شان ګډیږي، او واړه واړه هلکان وي هغوی د فِلمي اداکارو په شان پېخنې کوي.
همدارنګې دې شیانو سره د نوي نسل اخلاق دومره خراب شوي دي چې د مور او پلار، مشر او کشر هیڅ اَدب په کې ندې پاتې.
دا نقصان صرف د ټي وي، انټرنټ او فیس بک غلط استعمالولو دی، او په دې باندې اوس غیر مسلمو هم اقرار کړې دی.

## ٤. صحت ورسره خرابیږي

فیس بُک، اِنټرنټ، ټي وي وغیره غلط استعمالولو سره صحت هم خرابیږي؛ ځکه په دې سره د سترګو نظر کمزورې کیږي، دِماغ ورسره متأثر کیږي، او ډیرو کیناستلو سره هاضمه هم خرابیږي. لیکن دا خلق خپل صحت په خپل لاس باندې خرابوي.
ټول ډاکټران او حکیمان په دې باندې متفق دي چې د شپې وَختي اُوده کیدل او سهر وختي پاڅیدل د صحت د پاره ډیر فائده مند دي لیکن نن صبا ددې فیس بُک او ټي وي په وجه خلق ډیر ناوخته پورې ناست وي او بیا غرمه راپاڅي، چې په دې کې د دُنیا او آخرت دواړو نقصان دی.

یا خاصکر د ټي وي او موبائل تېزې شعاع خو د سترګو د پاره ډېرې خطرناکې دي، ددینه د سترګو مرض " ګلوکوما ( Glucoma ) " پیدا کیږي.

د جرمني مشهور ډاکټر " والټر بوهلر " د اُوږد تحقیق نه پس لیکلي:

" که چیرته مَنګک ، مرغۍ یا نور واړه واړه حشرات د ټي وي مخې ته څه وخت کینودې شي نو د ټي وي تیزو شعاعو په وجه به لږ وخت پس مړه شي "

د دماغو د رګ شلیدلو، او کینسر د پاره یو سبب د ټي وي ، وي سي آر ، او موبائل تېزې شعاع هم دي . او ډاکټرانو ددې تصدیق هم کړې دی .

## ۵. مال و دولت ورسره ضائع کیږي

فیس بُک ، اِنټرنټ، ټي وي وغیره غلط استعمالولو سره مال و دولت هم ضائع کیږي، ځکه که یو کس ډیر غریب وي خو یا به هم په قرض باندې ځان له روپۍ راخلي او قیمتي موبائل به ورباندې اخلي، پخپله به ځان دومره غریب ښکاره کوي چې د نورو نه به زکات اخلي خو یا به یې په فضول شیانو کې خرچ کوي.

یا صرف په دې هم اکتفاء نه کوي بلکه د نِټ کتلو د پاره په سوونو روپو ځانله پیکج کوي، دا دیته خوشحاله وي چې د نِټ د پاره مې لس (۱۰) جي بي پیکج اوکړو ، خو دا غم ورسره نه وي چې په دې کتلو سره خو زما قیمتي وخت هم ضائع کیږي او دُنیوي تاوان مې هم کیږي. که چیرته دې خلقو دا روپۍ یو فقیر ، یا مسکین ته ورکولی ، یا یې د جُمات او مدرسې په چانده کې ورکولی نو د آخرت د پاره به یې لویه ذخیره جمع کړې وی.

## ٦. شرم او حیاء ورسره ختمیږي

چې کله یو کس دا فحش ویډیوګانې او سیکسي پروګرامونه ګوري نو په دې سره په ده کې حیاء مکمل ختمیږي.

او حیاء خو د اِیمان حصه ده ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي : اَلْحَيَاءُ مِنَ الْإِيْمَانِ . (۱)

---

(۱) صحیح مسلم كِتَابُ الإِيمَانِ بَابُ شُعَبِ الإِيمَانِ رقم الحديث ٥٩ (٣٦) ، صحیح البخاري رقم الحديث ٢٤، و رقم الحديث ٦١١٨.

حياء د ايمان حصه ده.

په يو حديث کې راځي: اَلْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيْمَانِ. حياء د ايمان شعبه (څانګه) ده. (۱)

او په چا کې چې حياء نه وي نو د هغه نيم ايمان هم کامِل نه وي؛ ځکه حياء او اِيمان دواړه لازم او مَلزوم دي، رسولُ الله ﷺ فرمايي:

اَلْحَيَاءُ وَالْإِيْمَانُ قُرِنَا جَمِيْعًا، فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ. (۲)

حياء او اِيمان دواړه ملګري دي کله چې يو پورته شي نو بل هم ورسره پورته کيږي.

د حياء په وجه خو انسان د ډيرو ګناهونو نه منع کيږي، او س چې په چا کې حياء نه وي نو هغه به خامخا په ډيرو ګناهونو کې اَخته کيږي.

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم فرمايي: إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَافْعَلْ مَا شِئْتَ. (۳)

چې کله در کې حياء نه وي نو بيا چې دې څه خوښه وي هغه کوه (خو سزا به يې اُوګورې).

يعنې چې کله درنه حياء ختمه شي نو بيا خو بل داسې څيز نشته چې هغه تا د فحاشۍ او ګناهونو نه منع کړي.

بيا ډيره د نقصان خبره داده چې په کور کې پلار د خپلو لورانو په مخکې، او ورور د خپلو خورانو په مخکې دا فِلمونه او ډرامې ګوري، په دې کې ډير داسې عِشقي مناظر هم مخې ته راشي چې شهوت راپاروونکي وي.

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ الإِيمَانِ بَابُ أُمُورِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۹. صحيح مسلم كِتَابُ الإِيمَانَ بَابُ شُعَبِ الإِيمَانِ رقم الحديث ۵۷ (۳۵).

(۲) المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۵۸ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِهِمَا. فَقَدِ احْتَجَّا بِرُوَاتِهِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ بِهَذَا اللَّفْظِ. شعب الايمان رقم الحديث ۷۲۳۱، الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۱۳۱۳، مشكاة المصابيح رقم الحديث ۵۰۹۳(۲۶)، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۳۹۹۷. مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۳۵۰.

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۳.

وفي رواية: إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ. صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الأَنْبِيَاءِ بَابُ حَدِيثِ الغَارِ رقم الحديث ۳۴۸۴. مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۷۱۰۷.

په معاشره کې ډیر داسې واقعات راپیښیږي چې پلار او لور ، یا ورور او خور د وي سي آر کتلو ته ناست وي ، یا په اِنټرنټ باندې څه فِلم ګوري ، په دې دَوران کې سیکسي پارټ هم مخې ته راشي ، دوی ځان قابو نکړې شي او په زِنا کې مبتلاء شي.

دا څومره بې حیائي ده . الله تعالی دې مونږ او تاسو ټول د هر قِسمه د بې حیایۍ نه محفوظ اُو ساتي .آمین

## ۷. دِین ورسره کمزورې کیږي

د فیس بُک ، اِنټرنټ ، ټي وي وغیره غلط استعمالولو د ټولو نه غټ نقصان دادی چې په دې سره دِین هم کمزورې کیږي ، ځکه څوک چې په دې کې سَندرې اَوري نو په دې سره ده په زړه کې نِفاق پیدا کیږي .

رسولُ الله ﷺ فرمايي : اَلْغِنَاءُ يُنْبِتُ النِّفَاقَ فِي الْقَلْبِ كَمَا يُنْبِتُ الْمَاءُ الزَّرْعَ . (۱)

سَندرې په زړه کې داسې نفاق راپیدا کوي لکه څرنګې چې اُوبه فصل را زرغونوي .

بل دا چې سَندرې اوریدل یا فحش ویډیوګانې کتل خو ګناه ده ، او په ګناه کولو سره د انسان زړه توریږي ، که دا ورته توبه او نه باسي نو زړه یې مکمل تور شي ، بیا ورله عبادت مزه نه ورکوي .

نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي :

إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَذْنَبَ ذَنْبًا كَانَتْ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فِي قَلْبِهِ فَإِنْ تَابَ وَنَزَعَ وَاسْتَغْفَرَ صُقِلَ مِنْهَا ، وَ إِنْ زَادَ زَادَتْ حَتَّى يُغْلَفَ بِهَا قَلْبُهُ ، فَذَلِكَ الرَّانُ الَّذِي ذَكَرَ اللهُ فِي كِتَابِهِ : ﴿ كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾ . (۲)

---

(۱) شعب الايمان رقم الحديث ۴۷۴۶ ، مشکوة المصابيح كتاب الآداب بَابُ الْبَيَانِ وَالشعر الفَصْل الثَّالِث رقم الحديث ۴۸۱۰(۲۸) ، سنن ابي داؤد كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ كَرَاهِيَةِ الْغِنَاءِ وَالزَّمْرِ رقم الحديث ۴۹۲۷ . السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۱۰۰۸ .

(۲) الترغيب والترهيب ج۴ ص ۴۷ كتاب التوبة والزهد . شعب الايمان رقم الحديث ۶۸۰۸ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۷۹۵۲ ، سنن ابن ماجة رقم الحديث ۴۲۴۴ باب ذكر الذنوب ، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۳۹۰۸ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ مُسْلِمٍ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي . السنن الكبرى للبيهقي رقم ۲۰۷۶۳

مؤمن چې کله يو ګناه اوکړي نو ددې په وجه دده په زړه يو تُور داغ اولږي نو که دا توبه اوباسي ، ګناه پرېږدي او استغفار ووايي نو زړه يې صفا شي ، او که دا نور ګناهونه هم کوي ، نو هغه تور داغ زياتيږي ، تردې چې دده ټول زړه راګير کړي . او دا هم هغه زَنګ دی چې ددينه نه الله ﷻ تعبير کړې په : ﴿ كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ.... ﴾ سره .

ترجمه : داسې نده ، بلکه د دوی بدو اعمالو د دوی په زړونو زَنګ لږولی.

مونږ په خپلو سترګو ليدلي چې څوک د فيس بُک او انټرنټ کتلو په مرض اخته شوي وي نو په ګِنټو ګِنټو ديته ناست وي ، فرضي مونځ هم ورنه قضاء شي ، او نور ډير ضروري کارونه هم ورنه پاتې شي .

## ۸ . آخرت ورسره تباه کيږي

په دې فحش فِلمونو او فحش ويډيوګانو کتلو سره د انسان آخرت هم تباه کيږي ؛ ځکه په دې شيانو سره په معاشره کې فحاشي او بې حيائي پيدا کيږي ، انسان په ګناهونو کې اَخته کيږي ، نو خامخا به د ګناهونو په وجه آخرت کې د سخت عذاب مستحق جوړيږي .

همدارنګې په دې بې حيائۍ کتلو سره انسان په عذابِ قبر کې هم مبتلاء کيږي .

## نور نقصانات :

د موبائل غلط استعمالولو نور نقصانات هم شته :

**۹ . د موبائل په ټَلی باندې سندرې لږولو سره په جُمات کې د نورو خلقو مونځ خرابيږي :**

بعضې خلق د موبائل په ټَلی باندې سَندره پريږدي ، بيا په جُمات کې په جَمع ولاړ وي ، دې باندې رِنګ راشي نو سَندره شروع شي چې په دې سره د نورو خلقو مونځ هم خراب شي او ورسره دا کس هم ګناهګار شي . ځکه په احاديثو مبارکهؤ کې د سندرې آوريدو سختې سزاګانې ذکر شوي .

لهذا د موبائل په ټلی باندې ساده رِنګ ټاؤن پريښودل پکار دي ، او جُمات ته د راننوتلو په وخت موبائل بندول په کار دي ، يا کم ازکم خاموش (سائلنټ) کول يې په کار دي . ددې د پاره چې د جُمات بې اَدبي هم رانشي او د خلقو مونځونه هم خراب نشي .

## ۱۰. د موبائل په ټلې باندې د قرآن کریم تلاوت یا آذان لګول صحیح ندي:

په موبائل باندې د رِنګ راتلو مقصد دا وي چې یو کس د تاسره خبرې کول غواړي، ګویا دا د دَروازې ټکولو په حکم کې دی.

او چاته د اِطلاع کولو د پاره د قرآن کریم آیت تلاوت کول یا آذان کول صحیح ندی، فقهاء کرامو خو تر دې پورې لیکلي چې که یو تاجر د خپل اَسباب تجارت خودلو یا خرڅولو په وخت درود شریف ددې د پاره وایي چې خلقو ته دا اَسباب قمیتي ښکاره شي نو دا صحیح ندی. (۱)

کله انسان په لیټرین کې ناست وي او په دې وخت کې رِنګ راشي او د قرآن کریم تلاوت شروع شي نو په دې سره د قرآن کریم د تلاوت توهین کیږي.

همدغه شان چې کله رِنګ راشي او د قرآن کریم تلاوت پرې شروع شي نو اکثر خلق د آیت ختمیدو ته اِنتظار نه کوي بلکه سمدستي بټن اُووهي او خبرې شروع کړي آیت په مینځ کې کټ شي، دا هم د تلاوت اَوریدو نه اِعراض کول او بې اَدبي ده.

لهذا په موبائل کې د رِنګ ټاوُن په ځای باندې تلاوت، یا ذِکر یا آذان لګول صحیح ندي. بلکه ددې په ځای پرې ساده رِنګ پریخودل په کار دي.

---

(۱) قَال الحصكفي رَحِمَهُ اللهُ: وَحَرَامًا عِنْدَ فَتْحِ التَّاجِرِ مَتَاعَهُ وَنَحْوِهِ. الدر المختار

قال ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ: (قَوْلُهُ وَحَرَامًا إلَخْ) الظَّاهِرُ أَنَّ الْمُرَادَ بِهِ كَرَاهَةُ التَّحْرِيمِ. لِمَا فِي كَرَاهِيَةِ الْفَتَاوَى الْهِنْدِيَّةِ إذَا فَتَحَ التَّاجِرُ الثَّوْبَ فَسَبَّحَ اللهَ تَعَالَى أَوْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ بِهِ إعْلَامَ الْمُشْتَرِي جَوْدَةَ ثَوْبِهِ فَذَلِكَ مَكْرُوهٌ، وَكَذَا الْحَارِسُ لِأَنَّهُ يَأْخُذُ لِذَلِكَ ثَمَنًا. وَكَذَا الْفُقَّاعِيُّ إذَا قَالَ ذَلِكَ عِنْدَ فَتْحِ فُقَّاعَةٍ عَلَى قَصْدِ تَرْوِيجِهِ وَتَحْسِينِهِ يَأْثَمُ. وَعَنْ هَذَا يُمْنَعُ إذَا قَدِمَ وَاحِدٌ مِنْ الْعُظَمَاءِ إلَى مَجْلِسٍ فَسَبَّحَ أَوْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إعْلَامًا بِقُدُومِهِ حَتَّى يُفَرِّجَ لَهُ النَّاسُ أَوْ يَقُومُوا لَهُ يَأْثَمُ. رد المحتار على الدر المختار ج ۱ ص ۵۱۸ مَطْلَبٌ فِي وُجُوبِ الصَّلَاةِ عَلَيْهِ كُلَّمَا ذُكِرَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ.

وفي الفتاوى الهندية: مَنْ جَاءَ إلَى تَاجِرٍ يَشْتَرِي مِنْهُ ثَوْبًا فَلَمَّا فَتَحَ التَّاجِرُ الثَّوْبَ سَبَّحَ اللهَ تَعَالَى وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ أَرَادَ بِهِ إعْلَامَ الْمُشْتَرِي جَوْدَةَ ثَوْبِهِ فَذَلِكَ مَكْرُوهٌ هَكَذَا فِي الْمُحِيطِ. الفتاوى الهندية ج ۵ ص ۳۱۵ اَلْبَابُ الرَّابِعُ فِي الصَّلَاةِ وَالتَّسْبِيحِ وَرَفْعِ الصوت عِنْدَ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ.

**۱۱. د ښځو د پاره بِلا ضرورت په موبائل باندې د پردو سړو سره د خبرو کولو نه ډيرې فِتنې پيدا کيږي:**

نن صبا غټ نقصان دا جوړ شوی چې ښځو هم موبائلې پيدا کړي او بِلا ضرورت د پردو سړو سره په ګِنتو ګِنتو په نرمه لهجه کې خبرې کوي، دا ډيره نقصاني خبره ده.

شريعت خو ښځې ته دا حکم کړی چې تَلبِيه او تکبيرات د تشريق هم په پټه وايي چې پردې سړي ددې آواز وا نه وري او په فِتنه کې مبتلاء نشي، نو بيا څنګه د ښځې د پاره په نَرمه لهجه کې د پردو سړو سره د خبرو کولو اجازت دی؟

البته د سخت ضرورت په وخت ورته خبرې کول جائز دي خو دا به هم په نرمه لهجه کې نه کوي، بلکه په سخته لهجه کې به خبرې کوي چې د پردې سړي خرابه طمع پيدا نشي.

نن صبا بعضې خلق ناواده شوو جينکو ته غټ د کيمرې موبائل ورکړي، بيا ورباندې دوی فيس بُک او اِنټرنيټ کوي، چونکه کې په دې کې خو هر قِسمه ويډيوګانې راځي نو که صبا د پاره دا جينکۍ په زِنا کې مبتلاء شي، يا اُوتختي نو ملامته يې همدا سَرپرستان دي چې دوی ورته پخپله دا وسائل برابر کړي وو.

بلکه زه به دا اُووايم چې بيا د داسې جينکو نه د حياء او پاکدامنې طمع کول هم صحيح نده. لهذا ځوانانو جينکو ته موبائل ورکول ندي پکار.

البته که يو کس په کور کې ساده وړوکې موبائل کيږدي چې د خپل کور سره پرې رابطه کوي نو دا صحيح ده.

## د غونډ تقرير خلاصه:

د غونډ تقرير خلاصه دا راأووته چې سترګې د الله تعالى لوی نِعمت دی ددې صحيح استعمالول پکار دي، الله تعالى په قرآن کريم کې په ډير اِهتمام سره مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته د نظرونو د حفاظت حکم کړی، او دا يې ورته واضحه کړې چې زه د سترګو په خِيانت او د زړونو په پټو رازونو باندې پوهيږم.

**زمونږ په اسلامي شريعت کې د بدنظرۍ سختې سزاګانې او نقصانات ذکر شوي :**

بَدنظرۍ ته په احاديثو کې د سترګو زِنا او ګناه ِکبيره ويل شوی ، همدارنګې ديته د زِنا اوله پوړۍ ويل شوی.

بَدنظري د شيطان زهريله غشې دی ، په دې سره د شيطان طمع پيدا کيږي.

د بدنظرۍ په وجه مخ بې نُوره کيږي ، او دا د ګناهونو جَرړه ده.

د بَدنظرۍ په وجه آخره خاتمه خرابيږي ، د مرګ په وخت انسان ته کلِمه شهادت نه نصيبه کيږي ، او ددې په وجه د قيامت د سختې سزا مستحق جوړيږي.

بدنظرۍ سره قوّتِ حافظه کمزورې کيږي ، د زړه زخم ورسره نور هم زياتيږي ، په زړه کې ورسره ظُلمت پيدا کيږي ، د ژوند برکت او عبادت مزه ورسره ختميږي.

بدنظري داسې خطرناکه بيماري ده چې ددينه زړه نه مړيږي ، دا مرض چې په چا کې پيدا شي نو ترمرګه پورې ورنه نه خلاصيږي.

لهذا بَدنظري وړه ګناه ګنړل ندي پکار ، ددينه سمدستي توبه ويستل پکار دي . او څوک چې د بَدنظرۍ د جواز د پاره خُودساخته دلائل بيانوي په هغې باندې دُهوکه کيدل ندي پکار.

څوک چې پرَدۍ ښځې ته بغير د ضرورتِ شرعيه نه ګوري نو په هغه باندې د الله تعالی لعنت راوريږي ، ځکه د علماؤ په دې باندې اتفاق دی چې کله د فِتنې يره وي نو بيا د پرَدۍ ښځې مخ ته کتل ناجائز او ګناه ده ، تر دې چې نابالغه مُشتهاتې جينۍ ته کتل هم صحيح ندي ، فقهاء کرامو خو تر دې پورې ليکلي چې بې ګيرې ښائسته هلک ته هم د شهوت په نظر کتل حرام دي ، زمونږ اَسلافو به د بې ګيرې ښائسته هلکانو سره د کيناستلو نه ډير ځان ساتل او خپلو شاګردانو ته يې هم دا هدايت کولو چې د دوی سره د کيناستلو نه ځان ساتئ ، ځکه ددينه د فِتنې پيدا کيدو يره ده.

**د بدنظرۍ نه چې د بچ کيدو څومره علاجونه او طريقې دي په هغې باندې عمل کول پکار دي :** يعنی خپل نظر ښکته ساتل په کار دي ، چاته چې الله تعالی د واده طاقت ورکړې وي نو هغه دې واده اوکړي او که د واده طاقت يې نه وي نو نفلي روژې دې نيسي.

هر وخت د الله ﷻ د مَعِیَت سوچ پکار دی ، د الله ﷻ د عذاب او جهنم سزا نه ویریدل پکار دي، د الله تعالی د راضي کولو سوچ پکار دی.

چې کله د انسان پرَدی ښځې ته د کتلو شوق راپورته شي نو دا دې خپله مور او خپله خور ځان ته رایاده کړي چې لکه څرنګې زه دوی ته د بل چا کتل نه خوښوم نو همدغه شان ماته هم په کار دي چې د بل چا مور او خور ته اُو نه ګورم.

خپلې بي بي سره ښه ژوند تیرول په کار دي چې نورو ښځو ته یې د کتلو شوق پیدا نشي، د بد نظرۍ د ځایونو نه ځان ساتل پکار دي، ډیر ذِکر کول په کار دي ، په بَدنظرۍ سره خپل نفس ته سزا ورکول پکار دي . د جنت حُورې او د جنت نور نِعمتونه ځان ته رایادول پکار دي . په بَدنظرۍ سره خپل ځان ملامته کول پکار دي . د دینه د بچ کیدو دُعا پکار ده. که د بدنظرۍ په وجه د چا په زړه کې غلط خیالات راپیدا شي او ده واده کړې وي نو خپل کوروالۍ ته دې ورشي (ګني نفلي روژې دې نیسي ) .

همدارنګې د بدنظرۍ د نورو قِسمونو نه هم ځان ساتل په کار دي .

**خاصکر د فیس بُک او انټرنټ غلط استعمالولو نه هم ځان ساتل پکار دي** ، ځکه ددې د غلط استعمالولو ډیر نقصانات دي :

په دې سره په معاشره کې فحاشي خورَیږي ، قیمتي وخت ورسره فضول ضائع کیږي ، نوې نسَل ورسره مکمل تباه کیږي ، صِحت ورسره خرابیږي ، مال و دولت ورسره ضائع کیږي ، دِین ورسره کمزورې کیږي ، شرم و حیاء ورسره ختمیږي ، آخرت ورسره تباه کیږي .

د موبائل په ټَلی باندې سَندرې لږولو سره په جُمات کې د نورو مونځ ګزارو مونځ خرابیږي .

د موبائل په ټَلی باندې د قرآن کریم تلاوت یا آذان لږولو سره د آیتونو او آذان بې آدبي کیږي .

د ښځو د پاره بلا ضرورت په موبائل باندې د پرَدو سړو سره خبرو کولو نه ډیرې فِتنې پیدا کیږي ، یا خاصکر ناواده شوې ځوانې ښځې ته غټ موبائل ورکولو سره ډیر د بې شرمۍ واقعات راپیښیږي .

## دُعا

الله تعالی دې مونږ او تاسو ټول د بدنظرۍ او نورو ګناهونو نه اُوساتي ، او څوک چې په دې ګناه کې اَخته وي نو الله ﷻ دې ورته ددینه د توبې توفیق ورکړي .
ربّ کائنات دې مونږ ټولو ته د حیاء او پاکدامنۍ ژوند رانصیبه کړي ، او بې حیایۍ نه دې مونږ ټول اُوساتي .

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن .

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ﴾ النور آية ٣٠

# د نظر حفاظت کول

تالیف


اَبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالهُدٰی عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فیضُ القُرآن اکاخیل کالونی مردان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د نظر حفاظت كول

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهُ ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ لَّا نَبِيَّ بَعْدَهُ ، وَلَا رَسُوْلَ بَعْدَهُ ، وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ ، وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ ، وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُ وَتَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ

اَمَّا بَعْدُ فَأَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْآنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۝ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾ . (۱)

وَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلنَّظْرَةُ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمَةٌ فَمَنْ تَرَكَهَا مِنْ خَوْفِ اللهِ أَثَابَهُ جَلَّ وَعَزَّ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ . (۲)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْم .

عزت مندو مسلمانانو ورونو ! ستركې د الله تعالى لوي نعمت دی ، ددې صحيح استعمالول پكار دي ، او د ګناه په ځايونو كې دا استعمالول ندي پكار .

---

(۱) النور آية ۳۰ ، ۳۱ .

(۲) المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۸۷۵ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ ، حلية الاولياء ج ٦ ص ۱۰۱ ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۷٦ .

وفي رواية : عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « إِنَّ النَّظْرَةَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمٌ، مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِيْ أَبْدَلْتُهُ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ » . المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۳٦۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنة رقم الحديث ۳۸ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۲۹۴٦ باب غض البصر ، كنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰٦۷ ، تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۴۰ سورة النور في تشريح آية ۳۰ . اعراب القرآن وبيانه ج ٦ ص ۵۹۷ ، الزواجر ج ۲ ص ۴ .

# د نظر حفاظت واجب دى

الله تعالى په دې آيتونو ﴿ قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ ..... وَقُلْ لِلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ ...﴾ كې مؤمنانو سړو او مؤمنانو ښځو ته أمر كړى چې خپل نظرونه ښكته كړي، او أمر چې مطلق ذكر شي او د قرينې نه خالي وي نو د وجوب د پاره وي. (۱)

نظر كنټرول كول ځكه ضروري دى چې دا د زړه د پاره غټه دَروازه ده، كه دا كنټرول شي نو د انسان زړه محفوظ وي، ليكن كه دا كنټرول نشي نو انسان په ډيرو ګناهونو كې مبتلاء كيږي، دغه وجه ده چې شريعت انسان ته كومو ځايونو ته كتل حرام كړي دي يا كومو ځايونو ته چې په كتلو كې فِتنه وي د هغې نه خپل نظر ښكته كول په ده باندې واجب دي. (۲)

حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فرمايي:

حِفْظُ الْبَصَرِ أَشَدُّ مِنْ حِفْظِ اللِّسَانِ. (۳)

---

(۱) حكم غض البصر: أمر الله سبحانه وتعالى عباده ممّن آمنوا به من المؤمنين والمؤمنات بغض البصر عن الأمور التي حرّم النظر إليها. والأمر في اللغة يعني الوجوب إلا إن ورد ما يصرفه إلى أمرٍ آخرٍ. وورد ذلك الأمر صريحًا في القرآن الكريم في قوله تعالى: (قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ أَبْصَارِهِمْ). والمعنى الإجمالي الذي تشير إليه الآية الكريمة النداء من الله تعالى لرسوله عليه الصلاة والسلام بأن يخبر من آمن به من الناس بوجوب غض البصر. فالفعل يغضوا فعل أمرٍ من الله تعالى. وهو بمعنى إنقاص النظر. وفي ذلك قال الإمام الطبري: يقول تعالى ذكره لنبيه محمد صلى الله عليه وسلم: (قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ بالله) وبك يا محمد (يَغُضُّوْا مِنْ أَبْصَارِهِمْ) يقول: يكفّوا من نظرهم إلى ما يشتهون النظر إليه، مما قد نهاهم الله عن النظر إليه. حكم غض البصر.

(۲) اَلْبَصَرُ هُوَ الْبَابُ الْأَكْبَرُ إِلَى الْقَلْبِ، وَأَعْمَرُ طُرُقِ الْحَوَاسِّ إِلَيْهِ. وَبِحَسَبِ ذٰلِكَ كَثُرَ السُّقُوْطُ مِنْ جِهَتِهِ. وَوَجَبَ التَّحْذِيْرُ مِنْهُ، وَغَضُّهُ وَاجِبٌ عَنْ جَمِيْعِ الْمُحَرَّمَاتِ، وَكُلِّ مَا يُخْشَى الْفِتْنَةُ مِنْ أَجْلِهِ. تفسير القرطبي ج ۱۲ ص ۲۲۳ في تشريح سورة النور آية ۳۰.

(۳) الورع لابن ابي الدنيا ص ۶۲ بَابُ الْوَرَعِ فِي النَّظَرِ.

د نظر حفاظت د ژبې د حفاظت نه ډير سخت دى .

## نبي ﷺ د فضل بن عباس رضي الله عنه مخ د پردى ښځې نه ديخوا راواړول

په بخاري شريف او مسلم شريف كې دا واقعه ذكر ده چې ( د حَجّة الوداع په موقع ) فَضْل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د نبي عليه السلام پسې شاته په سوَرلۍ باندې سور ؤ ، په دې وخت كې د خيثم قبيلې يوه زَنانه ( د يوې مسئلې معلومولو د پاره نبي عليه السلام ته ) راغله ، فَضْل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغې ښځې ته كتل او ښځې ده ته كتل ( چونكې بَدنظري د سړو او ښځو دواړو د پاره منع ده ، او بيا خاصكر د حج په موقع باندې )

وَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْرِفُ وَجْهَ الْفَضْلِ إِلَى الشِّقِّ الْآخَرِ .

پس نبي عليه السلام د فَضْل بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مخ بل طرف ته واړول ( چې په دې سره يو بل ته د كتلو نه محفوظ شو ) .

ددينه پس ښځې د پيغمبر عليه السلام نه پوښتنه اوكړه : اې د الله رسوله ! يشكه د الله فريضه ( يعنى حج ) زما په پلار باندې په داسې حالت كې لازم شوې دى چې هغه ( د ډير بُوداوالي او كمزورۍ په وجه ) په سوَرلۍ باندې نشي تينگيدې نو آيا زه د هغه د طرفه حج اوكړم ؟ نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : آو ( ته د هغه د طرفه حج اوكړه ) .

دا واقعه د حجّة الوداع په موقع راپيښه شوې وه . (١)

د ترمذي شريف په حديث كې دا هم ذكر دي چې كلهٔ نبي عليه السلام د حضرت فَضل رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مخ ديخوا راواړول نو حضرت عباس رضي الله عنه د پيغمبر عليه السلام نه پوښتنه اوكړه :

---

(١) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. قَالَ : كَانَ الْفَضْلُ رَدِيفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَجَاءَتِ امْرَأَةٌ مِنْ خَثْعَمَ . فَجَعَلَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا وَتَنْظُرُ إِلَيْهِ . وَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْرِفُ وَجْهَ الْفَضْلِ إِلَى الشِّقِّ الْآخَرِ . فَقَالَتْ : يَا رَسُولَ اللهِ ! إِنَّ فَرِيضَةَ اللهِ عَلَى عِبَادِهِ فِي الْحَجِّ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا ، لَا يَثْبُتُ عَلَى الرَّاحِلَةِ . أَفَأَحُجُّ عَنْهُ ؟ قَالَ : « نَعَمْ » . وَذٰلِكَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ . صحيح البخاري كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ وُجُوبِ الْحَجِّ وَفَضْلِهِ رقم الحديث ١٥١٣ ، و رقم الحديث ١٨٥٥ بَابُ حَجِّ الْمَرْأَةِ عَنِ الرَّجُلِ ، صحيح مسلم كِتَابُ الْحَجِّ بَابُ الْحَجِّ عَنِ الْعَاجِزِ لِزَمَانَةٍ وَهَرَمٍ وَنَحْوِهِمَا ، أَوْ لِلْمَوْتِ رقم الحديث ٤٠٧ (١٣٣٤) ، سنن ابي داؤد رقم ١٨٠٩ باب الرّجل يحجّ عن غيره .

يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! لِمَ لَوَيْتَ عُنُقَ ابْنِ عَمِّكَ ؟

اې د الله رسوله ! تاسو د خپل تره ځوي څټ ولې ديخوا راواړول ؟

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

رَأَيْتُ شَابًّا وَشَابَّةً فَلَمْ آمَنِ الشَّيْطَانَ عَلَيْهِمَا .

ما ځوان كس او ځوانه ښځه اوليده ( چې دوی دواړو يو بل ته كتل ) نو زه د شيطان نه په دوی باندې په اَمن كې نه شوم . ( يعنی د ما سره دا يَره پيدا شوه چې شيطان به د دوی په زړونو كې وَسوسې وَرواچوي ) .(۱)

امام نووي رَحِمَهُ اللّٰهُ د مسلم شريف په شرح كې ليكلي چې ددې حديث نه ډير فوائد معلوميږي .... مِنْهَا تَحْرِيْمُ النَّظَرِ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ ، وَمِنْهَا إِزَالَةُ الْمُنْكَرِ بِالْيَدِ لِمَنْ أَمْكَنَهُ .

يوه خبره ورنه دا معلومه شوه چې پرَدی ښځې ته كتل حرام دي ، بله خبره ورنه دا معلومه شوه چې كله انسان يو ناجائز كار اُوگوري او په لاس باندې ده ته د منع كولو طاقت وي نو منع كوي به يې ( ځكه خو نبي عليه السلام د فضل ﷺ مخ ديخوا طرف ته راواړول ) .(۲)

## په صحيح ځای كې نظر استعمالولو باندې ثواب

انسان كه خپل نظر په صحيح ځای كې استعمال كړي نو په دې سره ده ته ثواب هم ملاويږي ، مثلا والدينو ته د محبت او اِحترام په نظر كتلو سره انسان ته د يو مقبول نفلي حج ثواب ملاويږي.

(۱) .... ثُمَّ أَتَى الْمَنْحَرَ ، فَقَالَ : « هٰذَا الْمَنْحَرُ ، وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ » ، وَاسْتَفْتَتْهُ جَارِيَةٌ شَابَّةٌ مِنْ خَثْعَمٍ ، فَقَالَتْ : إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ قَدْ أَدْرَكَتْهُ فَرِيضَةُ اللّٰهِ فِي الْحَجِّ ، أَفَيُجْزِئُ أَنْ أَحُجَّ عَنْهُ ؟ قَالَ : « حُجِّي عَنْ أَبِيكِ » ، قَالَ : وَلَوَى عُنُقَ الْفَضْلِ ، فَقَالَ الْعَبَّاسُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ : يَا رَسُولَ اللّٰهِ ! لِمَ لَوَيْتَ عُنُقَ ابْنِ عَمِّكَ ؟ قَالَ : « رَأَيْتُ شَابًّا وَشَابَّةً فَلَمْ آمَنِ الشَّيْطَانَ عَلَيْهِمَا » ... سنن الترمذي أَبْوَابُ الْحَجِّ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ عَرَفَةَ كُلَّهَا مَوْقِفٌ رقم الحديث ۸۸۵ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۳۵۱۲ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۵۶۲ ، و رقم الحديث ۱۳۴۸ ، كنز العمال رقم الحديث ۱۲۹۰۳ .

(۲) شرح النووي على مسلم ج ۹ ص ۹۸ في تشريح حديث ۱۳۳۴ .

همدارنګې کوم خاوند چې کور ته راداخل شي او دا خپلې بي بي ته د محبت په نظر اوګوري او بي بي هم ده ته د محبت په نظر اوګوري نو الله ﷻ دې دواړو ته د رحمت په نظر اوګوري.

لهذا که مونږ خپل نظر صحيح استعمال کړو نو په دې سره نيکۍ هم ګټلې شو او ځان د الله تعالى د رحمت مستحق هم جوړولې شو .

## د نظر په حفاظت سره خوشخبري

څوک چې د خپل نظر حفاظت کوي هغه ځايونو ته نه ګوري چې هغې ته شريعت کتل حرام کړي وي نو دداسې کس د پاره په احاديثو کې بهترينې خوشخبرۍ ذکر شوي ، يو څو خوشخبريانې درته ذکر کوم :

## د ايمان حلاوت نصيب کيدل

حديثِ قدسي دى ، الله تعالى فرمايي : إِنَّ النَّظْرَةَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيسَ مَسْمُومٌ. مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِيْ أَبْدَلْتُهُ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ . (۱)

بيشکه بَدنظري د ابليس په غشو کې زهريله غشې دى ، څوک چې زما د يَرې دا پريږدي نو زه به ورته ددې په عِوض کې داسې اِيمان ورکړم چې دا به په خپل زړه کې د هغې خوږوالې محسوسوي .

په يو بل حديث کې راځي ، رسول الله ﷺ فرمايي :

مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَنْظُرُ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَوَّلَ مَرَّةٍ ، ثُمَّ يَغُضُّ بَصَرَهُ إِلَّا أَحْدَثَ اللهُ لَهُ عِبَادَةً

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۳۶۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۳۸ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۲۹۴۶ باب غض البصر ، کنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۶۷ ، تفسير ابن کثير ج ٦ ص ۴۰ سورة النور في تشريح آية ۳۰ ، اعراب القرآن وبيانه ج ٦ ص ۵۹۷ ، الزواجر ج ۲ ص ۴ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « اَلنَّظْرَةُ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ إِبْلِيْسَ مَسْمُوْمَةٌ فَمَنْ تَرَكَهَا مِنْ خَوْفِ اللهِ أَثَابَهُ جَلَّ وَعَزَّ إِيْمَانًا يَجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيْ قَلْبِهِ » المستدرک على الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۷۸۷۵ وقال الحاکم : هَذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ ، حلية الاولياء ج ٦ ص ۱۰۲ ، کنزالعمال رقم الحديث ۱۳۰۷٦ .

يَجِدُ حَلَاوَتَهَا . (۱)

کوم مسلمان چې د ( پردې ) ښځې د حُسن ځايونه په اول ځل باندې ( غير اختياري ) اوګوري بيا ( سمدستي ) خپل نظر ښکته کړي نو الله ﷻ به ده ته د داسې عبادت توفيق ورکړي چې د ابه د هغې خوږوالې ( حَلاوت ) په خپل زړه کې محسوسوي .

دا ځکه چې ده د خپل نفس کنټرول کولو تريخ والې برداشت کړو نو الله تعالى به ورته د عبادت خوږوالې نصيب کړي . (۲)

# د جهنم د اُور نه حفاظت

څوک چې خپلې سترګې حرامو ځايونو ته د کتلونه اُوساتي نو الله تعالى به په دې سترګو باندې د جهنم اُور حرام کړي .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

ثَلَاثَةٌ لَا تَرَى أَعْيُنُهُمُ النَّارَ : عَيْنٌ حَرَسَتْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ، وَعَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ ، وَعَيْنٌ غَضَّتْ عَنْ مَحَارِمِ اللهِ . (۳)

درې ( ۳ ) کسان داسې دي چې د دوی سترګې به د جهنم اُور اُو نه ګوري ( يعنى جهنم ته به نه داخليږي ) :

( اول : ) هغه سترګه چې د الله ﷻ په لار ( جهاد ) کې يې ( د اسلامي سرحداتو ) پهره کړې وي . ( دُويم : ) هغه سترګه چې د الله ﷻ د يرې يې ژړلي وي . او ( دريم ) هغه

---

(۱) مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۲۲۷۸ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى المَخطوبة وَبَيَان العورات اَلفَصْل الثالث رقم الحديث ۳۱۲۴(۲۷) ، مجمع الزوائد باب غضّ البصر رقم الحديث ۱۲۹۴۳ .

(۲) ( يَجِدُ حَلَاوَتَهَا ) أَيْ فِيْ قَلْبِهٖ لِمُوَافَقَةِ أَمْرِ رَبِّهٖ حَيْثُ تَحَمَّلَ مَرَارَةَ مُخَالَفَةِ نَفْسِهٖ وَطَبْعِهٖ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۸ في تشريح حديث ۳۱۲۴ .

(۳) المعجم الكبير للطبراني ج ۱۹ ص ۴۱۶ رقم الحديث ۱۰۰۳ ، مجمع الزوائد كِتَابُ الجِهَادِ بَابُ الحَرَسِ فِيْ سَبِيلِ الله رقم الحديث ۹۶۹۰ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۱۹۲۳ ، ورقم الحديث ۲۹۲۶ ، ورقم الحديث ۵۰۳۱ ، الزواجر رقم الحديث ج ۲ ص ۳ .

سترګه چې کوم شیان الله ﷻ حرام کړي وي هغې ته د کتلو نه منع شوي وي.

## د قیامت د ورځې د سختۍ نه په اَمن کیدل

څوک چې خپل نظر د حرامو ځایونو نه اُوساتي نو الله تعالی به داسې کس د قیامت د ورځې د سختۍ نه په اَمن کړي. رسولُ الله ﷺ فرمایي:

كُلُّ عَيْنٍ بَاكِيَةٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا عَيْنٌ غَضَّتْ عَنْ مَحَارِمِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ . وَ عَيْنٌ سَهِرَتْ فِي سَبِيلِ اللهِ . وَعَيْنٌ خَرَجَ مِنْهَا مِثْلُ رَأْسِ الذُّبَابِ دَمْعَةٌ مِنْ خَشْيَةِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ . (۱)

د قیامت په ورځ به هره سترګه ژاړي مګر یو څو سترګې به نه ژاړي: (اول:) کومه سترګه چې د هغه ځایونو نه منع شوي وي کومو ته چې کتل الله تعالی حرام کړي دي، (دویم) کومه سترګه چې د الله ﷻ په لار (جهاد) کې وِیخه پاتې شوي وي (یعنی پهره داري یې کړي وي)، (دریم:) او د کومې سترګې نه چې د الله ﷻ د یَرې په وجه د مَچ د سَر هومره اُوښکه رااُوتې وي.

## نظر حفاظت کوونکي ته نبي ﷺ د جنت ضمانت کړی

څوک چې د نظر حفاظت کوي نو دداسې کس د پاره نبي ﷺ د جنت ضمانت ورکړی، پیغمبر ﷺ فرمایي:

اِضْمَنُوا لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَضْمَنْ لَكُمُ الْجَنَّةَ.

تاسو ماته د شپږو (٦) خبرو ضمانت راکړئ (چې په دې باندې به عمل کوی) نو زه به تاسو ته د جنت ضامِن جوړ شم (چې تاسو به یقیني جنت ته داخلیږی)

.... (په هغې کې یوه خبره داده:) وَغُضُّوا أَبْصَارَكُمْ.

خپل نظرونه ښکته (محفوظ) اوساتئ. (یعنی شریعت چې کومو څیزونو ته د کتلو نه

---

(۱) حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۳ ص ۱٦۳ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۴۹۷ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۱۹۲۹ ، و رقم الحديث ۲۹۲۵ كتاب النكاح ومايتعلق به ، و رقم الحديث ۵۰۳۳ ، تفسير ابن كثير ج ٦ ص ۴۴ سورة النور آية ۳۰ ، الدرالمنثور في التفسير بالمأثور ج ۱ ص ۵۹۳ ، الزواجر ج ۱ ص ۱۴۱ ، بستان الواعظين ورياض السامعين لابن الجوزي ج ۱ ص ۴٦ ، تنبيه الغافلين ص ۱۹۹ باب الزجر عن الضحك.

منع کړی هغې ته مه ګورئ) (۱)

**فائده**: کوم خلق چې د ایمان راوړو نه پس فرائض اَداء کوي ، او ورسره ورسره ددې مذکوره شپږ خبرو لحاظ ساتي ، چې په دې کې یو د نظر حفاظت کول هم دي نو داسې کس یقیني جنّتي دی ، ځکه داسې کس ته نبي علیه السلام د جنّت ضمانت ورکړی.

## د نظر په حفاظت سره نورِ بصیرت ( عقلمندي ) پیدا کیږي

د بعضې اسلافو نه دا خبره نقل ده چې څوک د خپل نظر حفاظت کوي نو الله تعالی به ده ته نورِ بصیرت ( او عقلمندي ) ورکړي. (۲)

## د نظر په حفاظت سره دُعا قبلیږي

څوک چې خپل نظر حرامو ځایونو ته د کتلو نه محفوظ ساتي نو الله تعالی دداسې کس دُعا قبلوي ، یا که داسې کس په قحط سالۍ یا بله سخته موقع کې دُعا اوغواړي نو الله تعالی دده دُعا قبلوي. (۳)

---

(۱) عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : اِضْمَنُوا لِي سِتًّا مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَضْمَنْ لَكُمُ الْجَنَّةَ : اُصْدُقُوا إِذَا حَدَّثْتُمْ ، وَأَوْفُوا إِذَا وَعَدْتُمْ، وَأَدُّوا إِذَا اؤْتُمِنْتُمْ، وَاحْفَظُوا فُرُوْجَكُمْ، وَغُضُّوا أَبْصَارَكُمْ ، وَكُفُّوا أَيْدِيَكُمْ. المستدرک علی الصحیحین للحاکم کِتَابُ الْحُدُودِ رقم الحدیث ۸۰۶۶ ، وقال الحاکم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. مسند احمد مخرجًا رقم ۲۲۷۵۷ ، السنن الکبری للبیهقي رقم الحدیث ۱۲۶۹۱ باب ماجاء في الترغیب في اداء الامانات ، شعب الایمان رقم ۴۴۶۴ ، و رقم ۴۸۷۷ ، مشکوة المصابیح بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ وَالْغِيبَةِ وَالشَّتْمِ اَلْفَصْلُ الثالث ، مجمع الزوائد بابٌ فی الامانة رقم ۶۷۰۹ ، کنزالعمال رقم الحدیث ۴۳۵۳۱.
ددې پوره حدیث ترجمه ددې ( اصلاحي مدلّل تقریرونه ) کتاب په دیارلسم جلد صفحه ۲۸۳ باندې ذکر ده.

(۲) ﴿ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ ﴾ أَيْ: أَطْهَرُ لِقُلُوبِهِمْ وَأَنْقَى لِدِينِهِمْ، كَمَا قِيلَ: مَنْ حَفِظَ بَصَرَهُ أَوْرَثَهُ اللهُ نُورًا فِي بَصِيْرَتِهِ . وَيُرْوَى: فِي قَلْبِهِ. تفسیر ابن کثیر ج ۶ ص ۴۳ النور آیة ۳۰.

(۳) رُوِيَ أَنَّ عِيسَى صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِ وَسَلَامُهُ خَرَجَ يَسْتَسْقِيْ، فَلَمَّا ضَجِرُوْا قَالَ لَهُمْ عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ : مَنْ أَصَابَ مِنْكُمْ ذَنْبًا فَلْيَرْجِعْ . فَرَجَعُوْا كُلُّهُمْ وَلَمْ يَبْقَ مَعَهُ فِي الْمَفَازَةِ إِلَّا وَاحِدٌ . فَقَالَ لَهُ عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ : أَمَا لَكَ مِنْ ذَنْبٍ؟ فَقَالَ : وَاللهِ مَا عَلِمْتُ مِنْ شَيْءٍ غَيْرَ أَنِّي كُنْتُ ذَاتَ يَوْمٍ أُصَلِّيْ فَمَرَّتْ بِيَ امْرَأَةٌ ←←←←←←←

## د نظر په حفاظت سره د شرمگاه حفاظت هم راځي

د نظر په حفاظت سره د شرمگاه حفاظت هم راځي ، او دا خبره د قرآن کريم د دې آيت نه هم معلوميږي ، الله تعالى فرمايي :

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌ بِمَا يَصْنَعُوْنَ ۞ وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ ﴾ (۱)

ترجمه : اې پيغمبره ! ته مؤمنانو سرو ته اُووايه چې خپلې سترګې (نظرونه) ښکته ساتي ، او د خپلو شرمگاهو حفاظت دې کوي ، دا ددوی د پاره ډيره پاکيزه (او بهتره) خبره ده ، بيشکه الله تعالى د خلقو په هغه کارونو ښه خبر دار دی کوم چې دوی کوي . او ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي ، او د خپلو شرمگاهو حفاظت دې کوي .

په دې دواړو آيتونو کې الله تعالى د نظرونو ښکته کولو او شرمگاهو د حفاظت حکم کړی ، اوس چې څوک د نظر حفاظت کوي نو د شرمگاه حفاظت ورسره پخپله راځي .

## د نظر په حفاظت سره د الله ﷻ مدد

چې تر څو پورې مسلمانانو د نظر حفاظت کولو نو الله تعالى دوی د فتنو نه محفوظ ساتل ، او په هر ځای کې يې کاميابي ورکوله .

**د حضرت عبيدة بن جراح ﷺ لښکر خپل نظرونه ښکته کړل :** مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللهُ دا واقعه ذکر کړی چې حضرت عُمر ﷺ په خپل دورِخلافت کې د شام فتح کولو د پاره حضرت عبيدة بن جراح ﷺ اوليږل ، د شام اکثره حصې حضرت عبيدة بن جراح

---

←←← فَنَظَرْتُ إِلَيْهَا بِعَيْنِيْ هٰذِهِ . فَلَمَّا جَاوَزَتْنِيْ أَدْخَلْتُ أُصْبُعِيْ فِيْ عَيْنِيْ فَانْتَزَعْتُهَا وَتَبِعْتُ الْمَرْأَةَ بِهَا . فَقَالَ لَهُ عِيْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ : فَادْعُ اللهَ حَتّٰى أُؤَمِّنَ عَلٰى دُعَائِكَ . قَالَ : فَدَعَا فَتَجَلَّلَتِ السَّمَاءُ سَحَابًا ثُمَّ صَبَّتْ فَسُقُوْا .

احياء علوم الدين ج۱ ص۳۰۸ كتاب الأذكار والدعوات فَضِيلَةُ الدُّعَاءِ ، نضرة النعيم ج ۱۰ ص ۳۹۰۹ اطلاق البصر

(۱) النور آية ۳۰ ، ۳۱ .

ﷺ فتح کړې وی ، بیا دا د شام گورنر هم ؤ .

یو ځل ده د کافرانو یوه قلعه محاصره کړه ، دا محاصره ډیره اُوږده شوه ، آخر د هغه قلعې کافران پوهه شو چې مسلمانان ډیر ثابت قدم دي چې تر څو یې دا قلعه نه وي فتح کړي دوی نه ځي . نو هغوی یو سازش جوړ کړو ، هغه دا چې دوی مسلمانانو ته وویل : مونږ تاسو ته د قلعې دَروازه کلاوو تاسو به د خپل فوج سره په دې لاره باندې داخل شئ .

د قلعې دا دروازه بازار ته اُوتې وه ، ددې دَروازې نه تر شاهي محل پورې دواړه طرف اُوږد بازار ؤ ، دوی سازش دا جوړ کړې ؤ چې په دواړه طرف دُکانونو کې یې ښائسته جینکۍ کینولې وی او هغوی ته یې دا ویلي وو چې که مسلمانانو د تاسو سره هر څه کوي تاسو به اِنکار نه کوئ .

د دوی مقصد دا ؤ چې مسلمانان د ډیر وخت نه د خپلو کورونو نه لرې پاتې شوي دي دوی چې دا ښائسته جینکۍ اُوگوري نو دوی به په دې باندې لگیا شي او مونږ به پرې د شا طرف نه حمله اوکړو .

کله چې دوی حضرت عبیدة بن جراح ﷺ ته خبر رااُولیږل چې مونږ تاسو ته تسلیمیږو تاسو په دې دروازه باندې راداخل شئ او شاهي محل ته لاړ شئ .

حضرت عبیدة بن جراح ﷺ په خپل اِیماني فِراست سره دا معلومه کړه چې دې خلقو خو تر اوسه د مونږ سره مقابله کوله خو چې اوس ناڅاپه دوی دروازه کلاوَوي نو په دې کې د دوی سازش دی .

نو ده خپل ټول لښکر راجمع کړو ، د هغوی مخې ته یې خطبه وویله او ورته وې ویل :

دا د الله تعالی شکر دی چې دُښمن تسلیم شو او مونږ ته ښار ته د ننوتلو اجازت راکوي ، تاسو بیشکه ښار ته داخل شئ لیکن زه تاسو ته د قرآن کریم یو آیت لولم ، تاسو ښار ته د ننَوتلو په وخت دا آیت تلاوت کوئ او په دې باندې عمل کوئ .

نو حضرت عبیدة بن جراح ﷺ دا آیت تلاوت کړو :

﴿ قُلْ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوْا فُرُوْجَهُمْ ذٰلِكَ اَزْكٰى لَهُمْ ﴾ . (۱)

---

(۱) النور آية ۳۰ .

ترجمه: اې پيغمبره ! ته مؤمنانو سړو ته اُووايه چې خپلې سترګې (نظرونه) ښکته ساتي، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي، دا ددوی د پاره ډيره پاکيزه (او بهتره) خبره ده.

نو غونډ لښکر ښار ته داخل شو، خپل نظرونه يې ښکته کړي وو، په بازار باندې تير شو او شاهي محل ته اُورسيدل خو ليکن هيچا اخوا ديخوا دُکانونو طرف ته اُو نه کتل.

کله چې د ښار خلقو مسلمانان په دې حالت کې اُوليدل نو په خپل مينځ کې يې سره وويل: دا څنګه مخلوق دی؟ کوم فوج چې فاتحانه انداز باندې ښار ته داخل شي نو هغوی سينې راويستې وي، په ناز او نخرو ځي، لوټ مار کوي، او د ښځو عزت ته نقصان رسوي ليکن دا خو عجيبه لښکر دی چې کله ورته خپل امير وويل چې خپل نظرونه ښکته ساتي نو ټولو ښکته کتل، په غونډ بازار تير شول، شاهي محل ته اُورسيدل ليکن هيچا ته يې څه اُو نه ويل، نو بې شماره خلقو دې کتلو سره ايمان راوړو.

پس معلومه شوه چې د نظر په حفاظت سره الله تعالى مسلمانان د لوي فِتنې نه محفوظ کړل، او د دوی مدد يې اوکړو. (۱)

# ښکته کتلو سره انسان د شيطان د حملو نه محفوظ وي

کله چې الله تعالى شيطان ته تر قيامته پورې مهلت ورکړو نو هغه قسَم اوکړو چې اوس به زه په هرې طريقې سره انسان ګمراه کوم، الله تعالى د شيطان خبره رانقل کړې:

﴿ قَالَ فَبِمَآ أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ۝ ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم مِّن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَن شَمَائِلِهِمْ ۖ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ ﴾. (۲)

ترجمه: شيطان (الله ﷻ ته) وويل: په دې وجه چې تا زه ګمراه کړم نو زه به خامخا دې خلقو ته ستا په نېغه لار کې کينم، بيا به خامخا دوی ته د دوی د وړاندې طرف، شا طرف، خي طرف او چپ طرف نه راځم، او ته به په دوی کې اکثر خلق شکرګزار اُو نه مومې.

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۱۵ ص ۱۷۴.

(۲) الاعراف آية ۱۷.

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ذکر کړي چې شيطان څلور واړه طرفونه ذکر کړل چې ددې لارو نه به زه په انسان باندې حمله کوم، ليکن د شيطان نه دوه (۲) طرفونه هير شو: يو پاس طرف، او دويم لاندې طرف.

پاس طرف لاره ځکه محفوظ ده چې هغه د الله تعالى سره د رابطې لار ده، نو اوس به انسان د شيطان نه د حفاظت د پاره الله تعالى سره رابطه قائموي او دا دُعا به د ځان د پاره کوي چې: " اې الله! زه شيطان د څلور طرفه ګېر کړې يم ته زما حفاظت اوکړه، او ما په خپل اسلام باندې ثابت قدم لره" نو په دې سره به د شيطان د حملو نه محفوظ وي.

او لاندې طرف لار ځکه محفوظ ده چې الله تعالى مسلمانانو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړى، نو اوس چې څوک د الله تعالى په حکم باندې عمل کوي او تللو په وخت ښکته ګوري نو دا به د شيطان د حملو او فِتنو نه محفوظ وي.(۱)

## د علاج په نسبت د اول نه پرهيز بهتر دى

که يو کس د بيمارۍ راتلو نه پس علاج کوي نو ددينه دا بهتر ده چې: بيمارۍ راتلو نه مخکې پرهيز اوکړي ددې د پاره چې دې بيمارۍ ته لار پيدا نشي.

همدغه شان که يو کس د خپل نظر حفاظت نه کوي يعنى کومو ځايونو ته چې شريعت کتل حرام کړي دي هغې ته ګوري، يا فحش فِلمونه او ډرامې ګوري، شهوت راپاروونکې سَندرې آوري، او بيا دا وايي چې پاکدامني به څنګه پيدا شي؟ او زه به د ګناهونو نه څنګه محفوظ شم؟ دا خو نشي کيدى.

بلکه عاقل کس هميشه په ځان باندې د ګناهونو دَروازې بندوي، يعنى خپل نظر کنټرول کوي، فحش فِلمونه نه ګوري، سَندرې نه آوري، نو په دې سره پخپله په انسان کې پاکدامني پيدا کيږي.(۲)

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۱۵ ص ۱۷۸

(۲) الوقاية قبل العلاج: أيّ الطريقين أسهل على نفسك وأيّ السبيلين تختار؟ أن تطلق العنان لنفسك وتفتح الأبواب على مصارعها، ثم تظل تدافع الشهوة وتصارعها؟ أو أن تغلق الأبواب وتسد الذرائع؟ إن العاقل الحصيف والكيس الفطن يختار غلق الباب وسد الذريعة. بل أنه المنهج الشرعي ←←←←←←

## د نظر حفاظت اول آسان وي

که مسلمان احتیاط اوکړي او د اول نه خپل نظر کنټرول کړي نو دا آسانه ده، خو که اول نه ده خپل ځان آزاد پرېخود نو بیا روستو ددې مرض نه اوړېدل مشکل شي.

**د نفس مثال د چارپیانو په شان دی :** علماؤ لیکلي چې د نفس مثال د چارپیانو (حیوان) په شان دی چې کله انسان دا د پړي نه مضبوط نیولې وي نو دده د کنټرول لاندې وي ، خو که چیرته دا همداسې کلاؤ پرېږدي او هغه مَنده کړي نو بیا د هغه راکنټرول کول مشکل دي ، همدغه شان که انسان اول خپل نظر ښکته ساتي نو دا دده په کنټرول کې وي ، لیکن که دا همداسې آزاد پرېږدي او هر ناجائز ځای ته ګوري نو چې کله دا عادت واخلي نو بیا ددې راکنټرول کول مشکل وي . (۱)

## د نظر حفاظت اِجمالي فوائد

څوک چې د خپل نظر حفاظت کوي نو ددې په وجه ده ته ډېر فوائد حاصلیږي ، یو څو په کې دادي : د نظر په حفاظت سره انسان ته د اِیمان خوږوالې او لذت نصیبه کیږي .

د زړه نُور او فِراست ورسره پیدا کیږي ، او په دې باندې د عِلم دروازې کلاویږي .

د زړه قوّت او ثُبات ورته نصیبه کیږي . (۲)

---

←←← فهل من العقل واتباع الشرع أن تطلق النظر فيما حرم الله عز وجل ثم تشتكي من الشهوة واستيلائها على قلبك ؟ وهل يليق بك أن تتصفح المجلات الهابطة، أو تتابع الأفلام الساقطة. ثم تسأل أين طريق العفة ؟ وهل تريد النجاة وأنت تسمع أغاني الحبّ والغرام الساقطة ؟ إنّ العاقل الحصيف والكيس الفطن يختار غلق الباب وسد الذريعة . أخي الشاب أختي الفتاه إن أردتم النجاة فاختصروا الطريق من أوله، وأغلقوا الباب الذي يأتيكم منه الريح. وأنتم أعلم بأنفسكم. فأي طريق (زميل. كتاب. مجلة. شريط...) يدعوكم للمعصية ويثير فيكم الغرائز الكامنة فقولوا له هذا فراق بيلنا وبينك. تعلم كيف تغض بصرك

(۱) کیمیائی سعادت ص ۲۹۸، وص ۲۹۹ . د نظری کا علاج ص ۳۷ .

(۲) إنَّ غَضَّ الْبَصَرِ عَنْ الصُّوَرَةِ الَّتِيْ يُنْهٰى عَنِ النَّظَرِ إِلَيْهَا: كَالْمَرْأَةِ وَالأَمْرَدِ الْحَسَنِ يُوْرِثُ ذٰلِكَ ثَلَاثَ فَوَائِدَ جَلِيْلَةِ الْقَدْرِ: "أَحَدُهَا" حَلَاوَةُ الإِيْمَانِ وَلَذَّتُهُ الَّتِيْ هِيَ أَحْلٰى وَأَطْيَبُ مِمَّا تَرَكَهُ لِلّٰهِ فَإِنَّ مَنْ تَرَكَ ←←←←

د نظر په حفاظت سره د الله او رسول د حکم تابعداري راځي ځکه په قرآن کريم او احاديثو کې مسلمانانو ته د نظر د حفاظت حکم شوی اوس چې څوک په دې باندې عمل او کړي نو ددې په ذريعه دا انسان د جنت مستحق ګرځي.

د نظر حفاظت د مؤمن په صفتونو کې بهترين صفت دی.

په دې کې نفس او بدن دواړو ته راحت دی.

د نظر په حفاظت سره په معاشره کې د يو بل سره محبت پيدا کيږي.

انسان د زِنا نه محفوظه کيږي، عفت او پاکدامني په کې پيدا کيږي.

د نظر په حفاظت سره شيطان او دده ملګري خفه کيږي. ( الله او رسول خوشحاليږي ).(۱)

د نظر په حفاظت سره انسان د الله ﷻ مُقرّب جوړيږي، او د بَدنظرۍ په وجه د الله د رحمت نه لرې کيږي.

د نظر په حفاظت سره د انسان زړه قوي، مطمئن او خوشحاله وي، او بدنظرۍ په وجه يې زړه کمزورې، بې اطمينانه او غمجَن وي.

د نظر په حفاظت سره د انسان په زړه کې نُورانيت پيدا کيږي او بَدنظرۍ په وجه په کې ظُلمت ( تياره ) پيدا کيږي، دغه وجه ده چې الله تعالى په کومو آيتونو ﴿ قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ

---

←←← شَيْئًا لِلَّهِ عَوَّضَهُ اللهُ خَيْرًا مِنْهُ ... وَأَمَّا "الْفَائِدَةُ الثَّانِيَةُ" فِي غَضِّ الْبَصَرِ: فَهُوَ نُورُ الْقَلْبِ وَالْفِرَاسَةِ ...
وَذَكَرَ اللهُ سُبْحَانَهُ آيَةَ النُّورِ عَقِيبَ آيَاتِ غَضِّ الْبَصَرِ فَقَالَ: { اللهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ } وَكَانَ شُجَاعُ بْنُ شَاهٍ
الكرماني لَا تُخْطِئُ لَهُ فِرَاسَةٌ وَكَانَ يَقُولُ: مَنْ عَمَّرَ ظَاهِرَهُ بِاتِّبَاعِ السُّنَّةِ وَبَاطِنَهُ بِدَوَامِ الْمُرَاقَبَةِ وَغَضَّ بَصَرَهُ عَنِ
الْمَحَارِمِ وَكَفَّ نَفْسَهُ عَنِ الشَّهَوَاتِ وَذَكَرَ خَصْلَةً سَادِسَةً أَظُنُّهُ هُوَ أَكْلُ الْحَلَالِ: لَمْ تُخْطِئْ لَهُ فِرَاسَةٌ. وَاللهُ تَعَالَى
يَجْزِي الْعَبْدَ عَلَى عَمَلِهِ بِمَا هُوَ مِنْ جِنْسِ عَمَلِهِ فَيُطْلِقُ نُورَ بَصِيرَتِهِ وَيَفْتَحُ عَلَيْهِ بَابَ الْعِلْمِ وَالْمَعْرِفَةِ وَالْكُشُوفِ
وَنَحْوَ ذَلِكَ مِمَّا يُنَالُ بِبَصِيرَةِ الْقَلْبِ. "الْفَائِدَةُ الثَّالِثَةُ" قُوَّةُ الْقَلْبِ وَثَبَاتُهُ وَشَجَاعَتُهُ؛ فَيَجْعَلُ اللهُ لَهُ سُلْطَانَ
الْبَصِيرَةِ مَعَ سُلْطَانِ الْحُجَّةِ. مجموع الفتاوى لابن تيمية ج ۱۵ ص ۴۲۰ تا ۴۲۶ مع الاختصار، و ج ۲۱ ص ۲۵۲.

(۱) فِيهِ طَاعَةٌ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ يَتَرَتَّبُ عَلَيْهَا مَحَبَّةٌ تُوصِلُهُ إِلَى الْجَنَّةِ. مِنْ أَهَمِّ الصِّفَاتِ الَّتِي يَتَحَلَّى بِهَا الْمُؤْمِنُ
وَتَتَوَلَّدُ مِنَ الْحَيَاءِ. فِيهِ رَاحَةٌ لِلنَّفْسِ وَالْبَدَنِ. يَصُونُ الْمَحَارِمَ وَيُجَنِّبُ الْوُقُوعَ فِي الزَّلَلِ. يَجْعَلُ الْمُجْتَمَعَ
الْمُتَحَلِّيَ بِهَذِهِ الصِّفَةِ مُجْتَمَعًا آمِنًا مُتَحَابًّا. يَصُونُ الْمُجْتَمَعَ مِنِ انْتِشَارِ الزِّنَى. يَضُرُّ بِالشَّيْطَانِ وَأَعْوَانِهِ
وَيَسْتَجْلِبُ الْعِفَّةَ. نضرة النعيم في مكارم أخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۷ ص ۳۰۷۶ غض البصر

﴿يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ...﴾ کې مؤمنانو ته د نظر ښکته کولو حکم کړی نو په همدغه سورت کې يو څو آيتونه پس الله تعالى د نور واله آيت ﴿اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ...﴾ نازل کړی.

د نظر په حفاظت سره الله ﷻ انسان ته داسې فراست ورکوي چې په دې سره بيا د حق او باطل، ريښتيا او دروغو په مينځ کې تميز کولې شي.

د نظر په حفاظت سره په انسان کې استقامت او شجاعت پيدا کيږي.

د نظر په حفاظت سره زړه ته د شيطان داخليدو لارې بنديږي، او چې نظر غلط استعمال کړي نو شيطان د دې لارې نه ډير په تېزۍ سره وجود ته داخليږي، پردې زنانه ورته ښائسته کوي، بيا دده په زړه کې مختلف قسمه وسوسې وراچوي.

د نظر په حفاظت سره د انسان زړه د الله ﷻ په مخلوقاتو کې د تفکر کولو د پاره فارغ وي، او بدنظرۍ سره دده زړه بې قراره وي، د خواهشات نفسانيو تابعدار وي، د الله ﷻ د ذکر نه غافله وي، او د حد نه تجاوز کوونکې وي.

د سترګو او زړه په مينځ کې قوي تعلق او لاره ده، چې کله يو صحيح وي نو بل هم صحيح وي، او چې کله يو فاسد وي نو بل هم فاسد وي. لهذا څوک چې د سترګو نظر صحيح استعمالوي نو زړه به يې هم صحيح وي، او څوک چې د سترګو نظر غلط استعالوي نو زړه به يې هم فاسد وي.(۱)

---

(۱) وهذه عشر فوائد لغض البصر: ۱. امتثال لأمر الله الذي هو غاية سعادة العبد في معاشه ومعاده. وليس للعبد في دنياه وآخرته أنفع من امتثال أوامر ربه تبارك وتعالى. وما سعد من سعد في الدنيا والآخرة إلا بامتثال أوامره. وما شقي من شقي في الدنيا والآخرة إلا بتضييع أوامره ۲. يمنع من وصول أثر السهم المسموم الذي لعل فيه هلاكه إلى قلبه. ۳. أنه يورث القلب أنسا بالله وجمعية على الله. فإن إطلاق البصر يفرق القلب ويشتته. ويبعده من الله. وليس على العبد شيء أضر من إطلاق البصر فإنه يوقع الوحشة بين العبد وبين ربه. ۴. يقوي القلب ويفرحه. كما أن إطلاق البصر يضعفه ويحزنه. ۵. أنه يكسب القلب نورا كما أن إطلاقه يكسبه ظلمة. ولهذا ذكر الله آية النور عقيب الأمر بغض البصر. فقال: (قل للمؤمنين يغضوا من أبصارهم ←←←

←←← ويحفظوا فروجهم ) ، ثم قال اثر ذلك : ( الله نور السماوات والأرض ، مثل نوره كمشكاة فيها مصباح ) ، أي مثل نوره في قلب عبده المؤمن الذي امتثل أوامره واجتنب نواهيه ، وإذا استنار القلب أقبلت وفود الخيرات إليه من كل جانب ، كما أنه إذا أظلم أقبلت سحائب البلاء والشر عليه من كل مكان ، فما شئت من بدعة وضلالة واتباع هوى ، واجتناب هدى ، وإعراض عن أسباب السعادة واشتغال بأسباب الشقاوة ، فإن ذلك إنما يكشفه له النور الذي في القلب ، فإذا فقد ذلك النور بقي صاحبه كالأعمى الذي يجوس في حنادس الظلام . ٦ . أنه يورث الفراسة الصادقة التي يميز بها بين المحق والمبطل ، والصادق والكاذب ، وكان شاه بن شجاع الكرماني يقول : من عمر ظاهره باتباع السنة وباطنه بدوام المراقبة ، وغض بصره عن المحارم ، وكف نفسه عن الشهوات ، واعتاد أكل الحلال لم تخطئ له فراسة ، وكان شجاع هذا لا تخطئ له فراسة . ٧. أنه يورث القلب ثباتاً وشجاعة وقوة ، ويجمع الله له بين سلطان البصيرة والحجة وسلطان القدرة والقوة ، كما في الأثر : " الذي يخالف هواه يفر الشيطان من ظله " . وضد هذا تجده في المتبع هواه من ذل النفس ووضاعتها ومهانتها وخستها وحقارتها ، وما جعل الله سبحانه فيمن عصاه ، كما قال الحسن : " إنهم وإن طقطقت بهم البغال وهملجت بهم البراذين ، فإن ذل المعصية لا يفارق رقابهم ، أبى الله إلا أن يذل من عصاه " . وقد جعل الله سبحانه العز قرين طاعته والذل قرين معصيته ، فقال تعالى : ( ولله العزة ولرسوله وللمؤمنين ) ، وقال تعالى : ( ولا تهنوا ولا تحزنوا وأنتم الأعلون إن كنتم مؤمنين ) ، والإيمان قول وعمل ، ظاهر وباطن ، وقال تعالى : ( من كان يريد العزة فلله العزة جميعاً ، إليه يصعد الكلم الطيب والعمل الصالح يرفعه ) ، أي من كان يريد العزة فليطلبها بطاعة الله وذكره من الكلم الطيب والعمل الصالح ، وفي دعاء القنوت : " إنه لا يذل من واليت ولا يعز من عاديت " ، ومن أطاع الله فقد والاه فيما أطاعه ، وله من العز حسب طاعته ، ومن عصاه فقد عاداه فيما عصاه فيه ، وعليه من الذل بحسب معصيته . ٨ . أنه يسد على الشيطان مدخله من القلب ، فإنه يدخل مع النظرة وينفذ معها إلى القلب أسرع من نفوذ الهواء في المكان الخالي ، فيمثل له صورة المنظور غليه ويزينها ، ويجعلها صنماً يعكف عليه القلب ، ثم يعده ويمنيه ويوقد على القلب نار الشهوة ، ويلقي عليه حطب المعاصي التي لم يكن يتوصل إليها بدون تلك الصورة ، فيصير القلب في اللهب ، فمن ذلك تلك الأنفاس التي يجد فيها وهج النار ، وتلك الزفرات والحرقات ، فإن القلب قد أحاطت به النيران من كل جانب ، فهو وسطها كالشاة في وسط التنور ، ولهذا كانت عقوبة أصحاب الشهوات بالصور المحرمة : أن جعل لهم في البرزخ تنوراً من نار ، وأودعت أرواحهم فيه إلى حشر أجسادهم ، أراها الله نبيه صلى الله عليه وسلم في المنام في الحديث المتفق على صحته . ٩ . أنه يفرغ القلب للتفكر في مصالحه والاشتغال بها ، وإطلاق البصر ←←←←

ددينه علاوه علماؤ نور فوائد هم بيان کړي . (۱)

# په ښه ځای کې د سترګو استعمالولو حکم

سترګې يو لوي نعمت دی ، په کار ده چې مونږ ددې نعمت قدرداني اوکړو ، او ددې قدرداني داده چې دا په ښه ځايونو کې استعمال کړو ، او ددې د ښه استعمال د پاره ډير ځايونه دي :

## ۱. د سترګې د قرآن کريم د تلاوت د پاره استعمالول :

قرآن کريم د الله تعالى کلام دی ، ددې د تلاوت کولو ډير زيات فضائل او فوائد دي . (۲)

تر دې چې قرآن کريم ته کتل هم عبادت دی . (۳)

---

←←← يشتت عليه ذلك ويحول بينه وبينها فتنفرط عليه أموره ويقع في اتباع هواه وفي الغفلة عن ذكر ربه . قال تعالى : ( ولا تطع من أغفلنا قلبه عن ذكرنا واتبع هواه وكان أمره فرطا ) ، وإطلاق النظر يوجب هذه الأمور الثلاثة بحسبه ۱۰ . أن بين العين والقلب منفذا أو طريقا يوجب اشتغال أحدهما بما يشغل به الآخر . يصلح بصلاحه ويفسد بفساده . فإذا فسد القلب فسد النظر ، وإذا فسد النظر فسد القلب . وكذلك في جانب الصلاح . فإذا خربت العين وفسدت خرب القلب وفسد . وصار كالمزبلة التي هي محل النجاسات والقاذورات والأوساخ . فلا يصلح لسكنى معرفة الله ومحبته والإنابة إليه ، والأنس به ، والسرور بقربه . وإنما يسكن فيه أضداد ذلك . تعلم كيف تغض بصرك

(۱) قال الإمام (ابن القيم) رَحِمَهُ اللَّهُ : في غض البصر فوائد عديدة أحدها: امتثال أمر الله الذي هو غاية السعادة. ثانيها: أنه يمنع وصول أثر السهم لمسموم. ثالثها: أنه يقوي القلب ويفرحه. رابعها: أنه يورث في القلب أنساً في الله واجتماعًا عليه. خامسها: أنه يكسب القلب نوراً. سادسها: أنه يورث الفراسة الصادقة. سابعها: أنه يسد على الشيطان مداخله ثامنها: أنَّ بين العين والقلب منفذًا يوجب انفعال أحدهما بالآخر. روائع البيان تفسير آيات الأحكام لمولانا محمد علي الصابوني ج۲ ص ۱۵۱ آيات الحجاب والنظر.

(۲) د قرآن کريم د تلاوت فضائل په تفصيل سره ما په '' اصلاحي مدلل تقريرونه '' کتاب پنځم جلد کې ذکر کړي . ابوالشمس عفي عنه

(۳) نبي عليه السلام فرمايي : أفضل عبادة أمتي قراءة القرآن نظرًا . رواه الحكيم عن عبادة بن الصامت ، كنز العمال ج۱ رقم الحديث ۲۲٦٥ الباب التاسع في تلاوة القرآن و فضائله ، و رقم ۲۳۵۷ ، و رقم الحديث ۲۳۵۸ ←←←

په قرآن مجید کې کتلو سره د تلاوت کولو یوه فائده دا هم ده چې په دې سره د انسان د سترګو نظر هم محفوظ او تېز وي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

مَنْ أَدَامَ النَّظَرَ فِي الْمُصْحَفِ مُتِّعَ بِبَصَرِهِ مَا بَقِيَ فِي الدُّنْيَا. (۱)

چا چې همشه په قرآن کريم کې په کتلو سره تلاوت اوکړو نو تر څو پورې چې دا په دُنيا کې ژوندې وي ده ته به دده د نظر نه فائده ورکولې شي ( يعنې دده د سترګو نظر به تر آخِري عُمره پورې صحيح وي ).

په قرآن مجید کې تلاوت کولو سره یوه فائده دا هم ده چې انسان په قراءت کې د غلطۍ کولو نه محفوظ کېږي.

بل دا چې دې حروفو او نُقوشو ته مسلسل کتلو کې هم ثواب دی. (۲)

## په قرآن مجيد کې تلاوت کول د يادو تلاوت کولو نه افضل دی

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

قِرَاءَةُ الرَّجُلِ الْقُرْآنَ فِي غَيْرِ الْمُصْحَفِ أَلْفُ دَرَجَةٍ، وَقِرَاءَتُهُ فِي الْمُصْحَفِ يُضَاعَفُ عَلَى ذَلِكَ

---

←←← عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: « اَلنَّظَرُ فِي الْمُصْحَفِ عِبَادَةٌ، وَالنَّظَرُ إِلَى الرَّجُلِ مِنْ أَهْلِ السُّنَّةِ الَّذِي يَدْعُو إِلَى السُّنَّةِ وَيَنْهَى عَنِ الْبِدْعَةِ عِبَادَةٌ » . الابانة الكبرى لابن بطة رقم الحديث ٢١۴ .

عَنْ عَلِيٍّ الْقَاشَانِيِّ، قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ رَحِمَهُ اللهُ رُبَّمَا يُقَلِّبُ الْمُصْحَفَ وَلَا يَقْرَأُ لِلْحَدِيثِ الَّذِي جَاءَ: النَّظَرُ فِي الْمُصْحَفِ عِبَادَةٌ... شعب الإيمان رقم الحديث ٢٠۴٦ تعظيم القرآن فصل في قراءة القرآن من المصحف.

... وَلِأَنَّ النَّظَرَ فِي الْمُصْحَفِ عِبَادَةٌ . بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع ج ١ ص ٢٣٦ فَصْلٌ بَيَانُ حُكْمِ الِاسْتِخْلَافِ ، المحيط البرهاني في الفقه النعماني ج ١ ص ٣١١ .

(١) فضائل الاعمال وثواب ذلک لابن شاهين بَابٌ مُخْتَصَرٌ مِنْ كِتَابِي الْمَوْسُومِ بِفَضَائِلِ الْقُرْآنِ ... رقم الحديث ١٩۴ .

وفي رواية : من أدام النظر في المصحف متّع ببصره ما دام في الدّنيا . ابو الشيخ عن ابن عباس رضي الله عنهما ، كنز العمال ج١ ص ٢٦٩ رقم الحديث ٢۴٠٣ .

وفي رواية : من قرأ القرآن نظرا متّع ببصره . (ابن النجار) عن أنس ، كنز العمال ج١ ص ٢٦٩ رقم الحديث ٢۴٠۴ ط . دار الكتب العلمية بيروت .

(٢) كشف الباري كتاب فضائل القرآن ص ٩٥ .

إِلَى أَلْفَيْ دَرَجَةٍ . (۱)

يو كس چې بغير د قرآن كريم كتلو نه ( په يادو باندې ) تلاوت كوي نو دا زر (۱۰۰۰) درجې ثواب لري ، او چې په قرآن مجيد كې كتلو سره تلاوت كوي نو ددې ثواب په دې باندې تر دوه زره (۲۰۰۰) پورې دوچند كولې شي .

يعنې په قرآن مجيد كې كتلو سره د تلاوت كولو ثواب په ژَباني تلاوت كولو باندې يو په دُوچند زيات دى . وجه داده چې په دې كتلو سره انسان ته په آيتونو كې د غَور و فكر موقع ملاويږي ، خُشوع ورته نصيبه كيږي ، او د قرآن كريم د كتلو سعادت ورته حاصليږي .

ځكه د قرآن مجيد كتل ، لاس ورته وَروړل ، او د تعظيم په وجه اُوچتول هم عبادت دى (۲)

د اكثرو علماؤ په نزد باندې په قرآن مجيد كې كتلو سره تلاوت كول د يادو تلاوت كولو نه افضل دي . (۳)

نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايي :

قِرَاءَتُكَ نَظَرًا تَضَاعَفُ عَلَى قِرَاءَتِكَ ظَاهِرًا كَفَضْلِ الْمَكْتُوبَةِ عَلَى النَّافِلَةِ . (۴)

چې كله ته په قرآن مجيد كې په كتلو سره تلاوت كوى نو داستا د يادو تلاوت كولو نه دومره افضل دى لكه د فرضو فضيلت چې په نفلو باندې دى .

## ۲ . ستركې دِيني كتابونو كتلو او نورو د خير په كارونو كې استعمالول

مسلمان ته په كار دي چې ستركې د دِيني كتابونو كتلو كې استعمال كړي، يعنى داسې اسلامي كتابونه وړباندې مطالعه كړي چې په هغې كې دده د دُنيا او آخرت دواړو فائده وي .

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۶۰۱ ، بيهقي شعب الايمان ، كنزالعمال ج۱ ص ۲۶۰ رقم الحديث ۲۳۰۴ ، مشكاة المصابيح كتاب فضائل القرآن الفصل الثالث حديث ۵۷ .

(۲) نبي عليه السلام فرمايي : خمس من العبادة : النّظر في المصحف، والنظر إلى الكعبة ، والنظر إلى الوالدين والنظر في زمزم وهي تحط الخطايا، والنظر في وجه العالم . دارقطني ، كنزالعمال رقم الحديث ۴۳۴۹۴ .

(۳) فتح الباري ۹ / ۹۷ .

(۴) كنزالعمال رقم الحديث ۲۳۰۵ .

همدارنګې سترګې نور د خير په کارونو کې استعمالول په کار دي ، مثلاً د غريب ، يتيم او کونډې مدد ته لاړ شي ، او د هغوی سره احسان اوکړي .

## ۳ . کائناتو ته د عبرت په نظر کتل

د سترګو د صحيح استعمال يو ځای دا هم دی چې انسان کائناتو ته د عبرت په نظر اوګوري ، ځکه د قرآن کريم په ډيرو ځايونو کې الله تعالى انسان دې طرف ته متوجّه کړی چې د کائناتو په نِظام کې غور او فکر اوکړي ، چې په دې کې د الله ﷻ قدرتونه او د عبرت نخې اوګوري . الله تعالى فرمايي :

﴿ اُنْظُرُوْٓا اِلٰى ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴾ . (۱)

ترجمه : تاسو ددې اُونو ميوو ته اوګورئ چې کله دا ( اُونې ) ميوه اُونيسي ، او ددې پَخيدو ته اوګورئ ، بيشکه په دې کې ( د الله د قدرت ښکاره ) نخې دي د هغه قوم د پاره چې هغوی ايمان لري .

بل ځای فرمايي : ﴿ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴾ . (۲)

ترجمه : ( اې پيغمبره ! ) ته ورته اووايه چې تاسو په زمکه کې اوګرځئ بيا اوګورئ چې د مجرمانو اَنجام څنګه شو ؟

( همدغه شان مضمون په نورو آيتونو کې هم ذکر شوی ) . (۳)

---

(۱) الانعام آية ۹۹ .

(۲) النمل آية ۶۹ .

(۳) ﴿ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ ثُمَّ انْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴾ الانعام آية ۱۱ .

﴿ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴾ . آل عمران آية ۱۳۷ . النحل آية ۳۶ .

﴿ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ﴾ سورة يوسف آية ۱۰۹ . و هكذا في سورة الروم آية ۹ . و آية ۴۲ . و سورة فاطر آية ۴۴ . و سورة غافر آية ۲۱ ، آية ۸۲ . و سورة محمد آية ۱۰

﴿ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ الْاٰخِرَةَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴾ . العنكبوت آية ۲۰ .

بل ځای فرمايي : ﴿ أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ۝ وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ۝ وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ۝ وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ ﴾ .(۱)

ترجمه : پس آيا دوی اوښ ته نه ګوري چې څنګه پيدا کړې شو ؟ آسمان ته نه ګوري چې څنګه اوچت کړې شو ؟ غرونو ته نه ګوري چې څنګه ( ټينګ ) اودرولې شو ؟ او زمکې ته نه ګوري چې څنګه اوغوړولې شوه ؟

بل ځای فرمايي :

﴿ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا ۖ مَّا تَرَىٰ فِي خَلْقِ الرَّحْمَٰنِ مِن تَفَاوُتٍ ۖ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرَىٰ مِن فُطُورٍ ۝ ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنقَلِبْ إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَهُوَ حَسِيرٌ ﴾ .(۲)

ترجمه : الله هغه ذات دی چې اُووه ( ۷ ) آسمانونه يې د يو بل د پاسه پيدا کړل ، ته به د رحمان ذات په پيدا ونښت کې هيڅ فرق او نه ګورې ، ته بيا نظر واچوه چې آيا ته څه خلل ګورې ؟ بيا دوباره نظر واچوه نو تا ته به سترګې ذليله راواپس شي او دا به ستړې شوې وي.

## غير اختياري نظر غور ځيدو نه پس سمدستي مخ اړول

که د چا په پردۍ ښځه يا د بل چا په عورت باندې غير اختياري نظر اولږي نو سمدستي خپل مخ ورنه راړول په کار دي .

۱ . د مسلم شريف حديث دی ، حضرت جرير بن عبد الله رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ( په غير محرمه ښځه باندې ) د ناڅاپه نظر پريوتلو متعلق پوښتنه اوکړه ( چې ددې څه حکم دی ؟ ) فَأَمَرَنِي أَنْ أَصْرِفَ بَصَرِي .

نو نبي عليه السلام ما ته دا حکم اوکړو چې زه خپل نظر ديخوا راواړوم .(۳)

---

(۱) الغاشية آية ۱۷ تا ۲۰ .

(۲) الملک آية ۳ ، ۴ .

(۳) عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه ، قَالَ : « سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ ، فَأَمَرَنِي أَنْ أَصْرِفَ بَصَرِي » . صحيح مسلم كتاب الآداب بَابُ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ رقم الحديث ۴۵(۲۱۵۹) ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى المخطوبة وَبَيَان العورات اَلْفَصْل الاول رقم الحديث ۳۱۰۴(۷) .

**فائده** : ددې حدیث نه معلومه شوه چې که د چا نظر غیر اِختیاري په پرَدې ښځه باندې باندې اولږي او سمدستي خپل مخ راواړوي نو داسې کس ګناهګار نه دی ، خو که دا ورته بِلاضرورت همداسې مسلسل ګوري نو بیا ګناهګار دی . (۱)

۲ . د ابوداؤد شریف او ترمذي شریف حدیث دی ، رسول الله ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته اوفرمایل :

يَا عَلِيُّ ! لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ . فَإِنَّ لَكَ الْأُوْلَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ . (۲)

اې علي ! د اول ( بې اِختیاره ) نظر نه پس دوباره ( قصدًا ) نظر مه اچوه ؛ ځکه اول نظر ستا د پاره ( د غیر اِختیاري کیدو په وجه ) معاف دی ، او دویم ځل ( قصدًا ) کتل ستا د پاره جائز نه دي .

**فائده** : ددې حدیث نه معلومه شوه چې کله د انسان نظر اِختیاري په پرَدې ښځه باندې اُولږي نو دا معاف دی خو دوباره به قصدًا ورته نه ګوري ځکه په دې کې بیا د انسان اختیار راشي نو پرې ګناهګار بېږي . (۳)

(۱) (فَأَمَرَنِي أَنْ أَصْرِفَ بَصَرِي) أَيْ لَا أَنْظُرَ مَرَّةً ثَانِيَةً لِأَنَّ الْأُوْلَى إِذَا لَمْ تَكُنْ بِالْإِخْتِيَارِ فَهُوَ مَعْفُوٌّ عَنْهَا فَإِنْ أَدَامَ النَّظَرَ أَثِمَ . وَعَلَيْهِ قَوْلُهُ تَعَالَى {قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ} [النور آية ۳۰] . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۲ في تشريح حديث ۳۱۰۴ .

(۲) سنن ابي داؤد كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنْ غَضِّ الْبَصَرِ رقم الحديث ۲۱۴۹ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي نَظْرَةِ الْفُجَاءَةِ رقم الحديث ۲۷۷۷ ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۲۲۹۷۴ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۱۷۲۱۸ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاحِ بَابُ النظر إِلَى الْمَخطوبة وَبَيَان العورات اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۳۱۱۰(۱۳) ، شرح السنة للبغوي ج ۹ ص ۲۳ ، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۲۷۸۸ وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ مُسْلِمٍ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي .

(۳) (لَا تُتْبِعِ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ) مِنَ الْإِتْبَاعِ أَيْ لَا تُعَقِّبْهَا إِيَّاهَا وَلَا تَجْعَلْ أُخْرَى بَعْدَ الْأُوْلَى (فَإِنَّ لَكَ الْأُوْلَى) أَيِ النَّظْرَةَ الْأُوْلَى إِذَا كَانَتْ مِنْ غَيْرِ قَصْدٍ (وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ) أَيِ النَّظْرَةُ الْآخِرَةُ لِأَنَّهَا بِاخْتِيَارِكَ فَتَكُونُ عَلَيْكَ . قَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : دَلَّ عَلَى أَنَّ الْأُوْلَى نَافِعَةٌ كَمَا أَنَّ الثَّانِيَةَ ضَارَّةٌ ، لِأَنَّ النَّاظِرَ إِذَا أَمْسَكَ عِنَانَ نَظَرِهِ وَلَمْ يُتْبِعِ الثَّانِيَةَ أُجِرَ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۲۰۵۲ في تشريح حديث ۳۱۱۰ .

## چې په چا کې اِیمان او غېرت وي هغه ځان د ګناه نه کنټرول کولې شي

که غیر اِختیاري د چا نظر په پردَی ښځه باندې اُولګي خو چې په ده کې اِیمان او غېرت وي نو هغه ځان کنټرول کولې شي ، بیا دداسې کس په نصیحت کې هم اثر وي ، دده په نصیحت سره الله ﷻ د خلقو ژوند بدلوي .

## د عبید بن عُمیر رَحِمَهُ اللّٰهُ د ګناه نه د بچ کیدلو واقعه

عبید بن عُمیر رَحِمَهُ اللّٰهُ مشهور تابعي تېر شوې دی ، الله ﷻ ورته دیر فصاحت ورکړې وُ ، دده په مجلس کې به مشهور صحابي " حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا " هم کیناستلو ، او د دوی خبرې به یې آوریدلې .

په مکه معظمه کې یوه ځوانه ښځه وه ، ډیره ښائسته وه ، یوه ورځ دې په آئینه کې خپل مخ کتلو ، خاوند ته یې وویل :

په دې وخت کې به داسې څوک وي چې زما مخ اُوګوري او په ما باندې عاشق نشي ؟ خاوند ورته وویل : آو ، یو کس شته چې هغه عبید بن عمیر رَحِمَهُ اللّٰهُ دی .

دې ښځې ورته وویل : ته ماته اجازت راکړه زه به هغه هم په خپل محبت کې ګرفتار کړم. خاوند ورته اجازت ورکړو.

دا عبید بن عمیر رَحِمَهُ اللّٰهُ ته په بُرقع کې راغله او ورته وې ویل : زه د تانه ځانله د یوې مسئلې پوښتنه کوم .

عبید رَحِمَهُ اللّٰهُ د مسجد حرام په یو طرف کې ورسره ځانله اُودرید نو دې ښځې په دې وخت کې د خپل مخ نه پَرده لرې کړه ، د سپوږمۍ په شان ښائسته مخ یې وُ .

عبید رَحِمَهُ اللّٰهُ چې دا بې پَرده اُولیده نو ورته وې ویل : اې د الله بندې ! د الله ﷻ نه اُویرېږه . دې ورته وویل : زه په تا باندې عاشقه یم ته زما خبره اُومنه ( د ګناه دعوت یې ورته ورکړو ) .

عبید رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته وویل : زه د تانه یو څو تپوسونه کوم که تا صحیح جواب راکړو نو زه به بیا ستا په خبره باندې غور اوکړم . ښځې وویل : صحیح ده .

عبید رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته وویل : چې کله د مرګ فرښته ستا د رُوح قبض کولو د پاره راشي نو

په دې وخت کې به تاته دا ګناه بنه معلومه شي ؟ ښځې ورته وويل : نه.

ده ورته وويل : چې کله د قيامت په ورځ خلقو ته عملنامې ورکولې شي او تاته د خپلې عملنامې متعلق معلومه نه وي چې دا به ماته په ښي لاس کې راکولې شي او که په ګس لاس کې نو په هغه وخت کې به تاته دا ګناه بنه معلومه شي ؟ دې ورته وويل : نه.

ده ورته وويل : چې کله ته په پُلِ صراط باندې تېرېږې نو په هغه وخت کې به تاته دا ګناه بنه معلومه شي ؟ دې ورته وويل : نه.

ده ورته وويل : چې کله ته د الله ﷻ د وړاندې د حساب و کتاب د پاره پيش شې نو په هاغه وخت کې به تاته دا ګناه بنه معلومه شي ؟ دې ورته وويل : نه.

بيا ده ورته وويل : اې د الله بندې ! د الله ﷻ نه اُووېرېږه ، الله تعالى په تا باندې احسان کړې دی د هغه نافرماني مه کوه.

دې خبرو اَوريدو سره ددې ښځې د زړه دُنيا داسې بدله شوه چې د دُنيا د لذتونو نه يې زړه موړ شو ، واپس کور ته لاړه.

خاوند ورنه پوښتنه اوکړه چې څه اوشو ؟ دې ورته وويل : چې کله سړي د الله ﷻ عبادت کولې شو نو بيا مونږ ښځې يې ولې نه شو کولی ؟

نو شپه او ورځ يې د الله ﷻ عبادت شروع کړو ، ډيره پرهيزګاره ښځه ورنه جوړه شوه.

ددې خاوند چې به د خپلې ښځې دا حالت کتلو نو ويل به يې : ما خو ښځه د شرارت د پاره عبيد بن عمير رَحِمَهُ اللهُ ته ليږلې وه ليکن هغې نه پوره عابِده جوړه شوه ، مخکې به زمونږ هره شپه د واده وه ليکن اوس خو هغه ټوله شپه په عبادت کې مشغوله وي.

بهر حال ، دا واقعه مې ددې د پاره ذکر کړه چې کله په چا کې اِيمان او غيرت وي نو هغه خپل ځان د ګناه نه کنټرول کولې شي.

## د سليمان بن يسار رَحِمَهُ اللهُ د ګناه نه د بچ کيدلو واقعه

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په "احياء العلوم" کې يوه عجيبه واقعه رانقل کړې : چې سليمان بن يسار رَحِمَهُ اللهُ ډير پرهيزګار او د ښکلي صورت خاوند وُ ، يو ورځ دا او يو بل ملګرې د حج په اراده باندې روان شو ، کله چې اَبواء مقام ته اورسيدل ، نو د خوراک شيان ورسره کم شو.

سلیمان بن یسار رَحِمَهُ اللهُ په خیمه کې کیناست ، او دا بل ملګرې یې بازار ته لاړ ، چې د خوراک څه راوړي . په دې کې یوه ډېره ښائسته ښځه دې خیمې ته راغله ، او ده ته یې اشاره اوکړه ، ده دا ګمان اوکړو چې ګنې دا ښځه روټۍ غواړي ، نو د روټۍ یوه حصه یې ورله راواخیسته ، هغې ورته ووېل :

لَسْتُ أُرِيْدُ هٰذَا ، إِنَّمَا أُرِيْدُ مَا يَكُوْنُ مِنَ الرَّجُلِ إِلَى أَهْلِهٖ .

زه روټۍ نه غواړم ، بلکه ښځه چې د سړي نه څه غواړي هغه کار غواړم .

کله چې ده دا خبره واورېده نو زړه کې یې دا خیال راغی چې زه خو د الله ﷻ کور "بیتُ الله" ته د حج دپاره روان یم او شیطان ګوره دا ښځه خپله نمائنده جوړه کړه او زما د ایمان خرابولو د پاره یې ماته را اولیږله ، دلته هم د شیطان د جال نه خلاص نه شوم . نو په ژړا شو ، او ډېر زیات یې اوژړل . کله چې ښځې دا اولید نو ډېره شرمنده شوه او واپس لاړه .

کله چې دا حج ته لاړو ، طواف یې اوکړو ، بیا په یو ځاي کې اُوده شو ، په خوب کې یې ډېر ښکلې کس اُولید چې خُوشبو ورنه تلله . سلیمان ورنه پوښتنه اوکړه :

رَحِمَكَ اللهُ مَنْ أَنْتَ ؟ الله ﷻ دې په تا رحم اوکړي ته څوک یې ؟

هغه ورته ووېل : أَنَا يُوْسُفُ . زه یوسف (عليه السلام) یم .

ده ورنه بیا پوښتنه اوکړه : چې هغه پیغمبر یوسف عليه السلام یې ؟

هغه ورته ووېل چې آو . ده ورته ووېل :

شَأْنُكَ وَشَأْنُ امْرَأَةِ الْعَزِيْزِ لَعَجَبًا .

ستا او د زلیخې خو ډېره عجیبه واقعه ده . (چې تا د ګناه نه ځان بچ کړې وُ) .

هغه ورته ووېل :

شَأْنُكَ وَشَأْنُ صَاحِبَةِ الْأَبْوَاءِ أَعْجَبُ .

ستا او د ابواء په مقام کې د ښځې واقعه خو ډېره زیاته عجیبه ده .

(ځکه ما چې د ګناه نه ځان ساتلی وُ نو زه خو پیغمبر ووم ، د ماسره د الله ﷻ ډېر غټ امداد وُ . خو تا چې د ګناه نه ځان اوساتل نو دا هم ډېره عجیبه ده ، ځکه ته پیغمبر هم نه یې ،

بلکه يو ولې يې، خو بيا دې هم د زِنا نه ځان بچ کړو). (۱)

## څوک چې په لار کې ناست وي نو د خپل نظر حفاظت به کوي

اول خو په لار کې کيناستل بنه ندي، خو بيا هم که څوک د څه ضرورت په وجه په لار کې ناست وي، يا ولاړ وي، يا په لار روان وي نو د خپل نظر حفاظت به کوي.

د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته اوفرمايل: إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ.

تاسو په لارو کې د کيناستلو نه ځان اُوساتئ (يعنی په لارو کې مه کينئ).

صحابه کرامو رضي الله عنهم ورته اوفرمايل: اې د الله رسوله! ددينه خو زمونږ خلاصې نشته، مونږ خو په لاره کې (ناست يو او) خبرې کوو. نبي ﷺ ورته اوفرمايل:

إِذْ أَبَيْتُمْ إِلَّا الْمَجْلِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيْقَ حَقَّهُ.

چې کله تاسو خامخا کينئ نو بيا د لارې حق اَداء کوئ.

---

(۱) روي أنّ سليمان بن يسار رحمه الله خرج من المدينة حاجًا ومعه رفيقٌ له حتى نزلا بالأبواء. فقام رفيقه وأخذ السفرة وانطلق إلى السوق ليبتاع شيئًا وجلس سليمان في الخيمة. وكان من أجمل الناس وجهًا وأورعهم. فبصرت به أعرابية من قلة الجبل وانحدرتْ إليه حتى وقفت بين يديه وعليها البرقع والقفازان فأسفرت عن وجه لها كأنّه فلقة قمر. وقالت: أهنئني. فظنّ أنها تريد طعامًا. فقام إلى فضلة السفرة ليعطيها. فقالت: لستُ أريدُ هذا إنما أريد ما يكون من الرجل إلى أهله. فقال جهزك إلى إبليس ثم وضع رأسه بين ركبتيه وأخذ في النحيب فلم يزل يبكي. فلما رأتْ منه ذلك سدلت البرقع على وجهها وانصرفتْ راجعة حتى بلغت أهلها. وجاء رفيقه فرآه وقد انتفخت عيناه من البكاء وانقطع حلقه. فقال ما يبكيك؟ قال خير ذكرت صبيتي. قال: لا والله إلا أنّ لك قصة إنما عهدك بصبيتك منذ ثلاث أو نحوها فلم يزل به حتى أخبره خبر الأعرابية فوضع رفيقه السفرة وجعل يبكي بكاء شديدًا. فقال سليمان: وأنت ما يبكيك؟ قال: أنا أحق بالبكاء منك لأني أخشى أنْ لو كنتُ مكانك لما صبرتُ عنها. فلم يزالا يبكيان فلمّا انتهى سليمان إلى مكة فسعى وطاف ثم أتى الحجر فاحتبى بثوبه فأخذته عينه فنام وإذا رجل وسيم طوال له شارة حسنة ورائحة طيبة فقال له سليمان: رحمك الله من أنت؟ قال له: أنا يوسف. قال: يوسف الصديق؟ قال: نعم. قال: إنّ في شأنك وشأن امرأة العزيز لعجبا. فقال له يوسف: شأنك وشأن صاحبة الأبواء أعجب. احياء العلوم ج۳ ص ۱۰۵ كتاب كسر الشهوتين بيان فضيلة من يخالف شهوة الفرج والعين

صحابه کرامو رضي الله عنهم ورته اوفرمايل: اې د الله رسوله! د لارې حق څه شی دی؟
نبي عليه السلام ورته اوفرمايل:

غَضُّ الْبَصَرِ، وَكَفُّ الْأَذَى، وَرَدُّ السَّلَامِ، وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ، وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ.

(د لارې حق دادی:) خپل نظر (ناجائزه ځايونو او پردو ښځو نه) ښکته ساتل، په لاره تلونکو ته تکليف نه ورکول، د سلام جواب ورکول، د ښه کارونو حکم او د بدو کارونو نه خلق منع کول. (۱)

## آيا زَنانه د پاره پرَدو سړو ته کتل جائز دي او که نه؟

**اتفاقي خبره**: دا خبره خو د ټولو علماؤ په نزد اتفاقي ده چې زَنانه ؤ د پاره په شهوت سره پرَدو سړو ته کتل حرام دي؛ ځکه په سورة النور کې لکه څرنګې چې الله تعالى مؤمنانو سړو ته د نظرونو ښکته کولو حکم کړی نو همدغه شان يې مؤمناتو ښځو ته هم د نظرونو ښکته ساتلو حکم کړی:

﴿وَقُلْ لِّلْمُؤْمِنٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ اَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ﴾. (۲)

ترجمه: او (اې پيغمبره!) ته مؤمنانو ښځو ته اُووايه چې دوی دې خپلې سترګې (او نظرونه) ښکته ساتي، او د خپلو شرمګاهو حفاظت دې کوي.

---

(۱) عَنْ أَبِي سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوْسَ بِالطُّرُقَاتِ» فَقَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ! مَا لَنَا مِنْ مَجَالِسِنَا بُدٌّ نَتَحَدَّثُ فِيْهَا. فَقَالَ: «إِذْ أَبَيْتُمْ إِلَّا الْمَجْلِسَ فَأَعْطُوا الطَّرِيْقَ حَقَّهُ» قَالُوْا: وَمَا حَقُّ الطَّرِيْقِ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ قَالَ: «غَضُّ الْبَصَرِ، وَكَفُّ الْأَذَى، وَرَدُّ السَّلَامِ، وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ، وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ». صحيح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابُ بَدْءِ السَّلَامِ رقم الحديث ۶۲۲۹، و رقم الحديث ۲۴۶۵ كِتَابُ الْمَظَالِمِ وَالْغَصْبِ بَابُ أَفْنِيَةِ الدُّورِ وَالْجُلُوسِ فِيهَا، وَالْجُلُوسِ عَلَى الصُّعُدَاتِ، صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّينَةِ بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْجُلُوسِ فِي الطُّرُقَاتِ وَإِعْطَاءِ الطَّرِيقِ حَقَّهُ رقم الحديث ۱۱۴(۲۱۲۱)، و رقم الحديث ۳(۲۱۶۱) كتاب السَّلَامِ بَابُ مِنْ حَقِّ الْجُلُوسِ عَلَى الطَّرِيقِ رَدُّ السَّلَامِ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ۴۸۱۵ باب فى الجلوس فى الطرقات

(۲) النور آية ۳۱.

**اختلاف** : البته اختلاف په دې کې دی چې بغیر د شهوت نه د زَنانه وُ د پاره پرَدو سرو ته کتل جائز دي او که نه ؟

## د عدمِ جواز واله علماؤ دلیل

نو ځنې علماء وایي چې دا مطلقًا ناجائز دي ، او د حضرت عبدالله بن مکتوم ﷺ په واقعه باندې استدلال کوي :

**هغه واقعه** داده : أمّ المؤمنین حضرت أمّ سَلَمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمایي چې یو ځل زه او حضرت میمونة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره موجود وو چې په دې وخت کې ناڅاپه حضرت عبدالله بن مکتوم ﷺ ( نابِینا صحابي ) نبي علیه السلام ته راغی ، دا د حِجاب حکم نازلیدو نه پس واقعه ده ، ( چونکه هغه نابِینا وُ ، مونږ ورنه د پرَدې اِراده اونکړه او په خپل ځای باندې ناستې وو )، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ دواړو ته اوفرمایل:

اِحْتَجِبَا مِنْهُ . تاسو دواړه دده نه پرَده اوکړئ .

مونږ ورته وویل : يَارَسُوْلَ اللهِ ! أَلَيْسَ أَعْمٰى لَا يُبْصِرُنَا وَلَا يَعْرِفُنَا ؟

اې د الله رسوله ! آیا دا نابِینا ندی ؟ دا خو مونږ نه ګوري ، او نه مو پیژني .

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل :

أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا . أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ ؟

آیا تاسو دواړه هم ړندې یَی ؟ آیا تاسو هغه نه ګورئ ؟

( یعنی که هغه نابِینا وي نو تاسو خو نابِینا نه یئ نو پرَده ورنه اوکړئ ) .[1]

---

(۱) عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كُنْتُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَيْمُوْنَةُ . فَأَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُوْمٍ ﷺ حَتّٰى دَخَلَ عَلَيْهِ. وَذٰلِكَ بَعْدَ أَنْ أَمَرَنَا بِالْحِجَابِ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : « اِحْتَجِبَا مِنْهُ » فَقُلْنَا: يَارَسُوْلَ اللهِ ! أَلَيْسَ أَعْمٰى لَا يُبْصِرُنَا وَلَا يَعْرِفُنَا ؟ قَالَ: « أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا . أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ » . مسند احمد مخرجا رقم الحدیث ۲۶۵۳۷ حدیث أم سلمة زوج النبي صلى الله عليه وسلم سنن الترمذي أبواب الأدب باب ما جاء في احتجاب النساء من الرجال رقم الحديث ۲۷۷۸ وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح ← ← ← ← ←

**فائده** : ددې حديث نه معلومه شوه چې د ښځو د پاره څومره ممکن وي پرَدو سړو ته دې د کتلو نه پرهيز کوي ، ځکه حضرت عبدالله بن مکتوم ﷺ نابينا ؤ ، پاک دَامن ؤ ، او د نبي عليه السلام بيبيانې هم پاکې وی ، د بَدنظرۍ هيڅ اِمکان نه ؤ خو بيا هم نبي ﷺ خپلو بيبيانو ته حکم اوکړو چې دده نه پرده اوکړئ .

## د جوازواله علماؤ دليل

ځنې فقهاء وايي چې که د فِتنې يَره وه نو بيا زَنانه د پاره د پرَدو سړو ته کتل حرام دي، خو که د فِتنې يَره نه وه نو بيا حرام ندي . او په دې سره به د احاديثو په مينځ کې تطبيق هم راشي .

دا فقهاء د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا په هغه واقعه باندې استدلال کوي کومه چې په بخاري شريف او مسلم شريف کې ذکر ده :

**هغه واقعه** داده : حضرت عائشة رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي : د اختر ورځ وه ، حبشو خلقو په ډَهال او وړو نيزو باندې لوبه کوله ، ما په خپله نبي عليه السلام ته د تماشې کتلو د پاره وويل ، يا نبي عليه السلام راته اوفرمايل : تَشْتَهِيْنَ تَنْظُرِيْنَ ؟ لوبه کتل غواړې ؟

ما ورته وويل : آو ( ګورم يې ) . نبي عليه السلام زه خپل شاته په داسې أنداز باندې أودرولم چې زما مخ ( آننګي ) د هغه په مخ باندې ؤ ( يعنی خپل سَر مې د هغوی په أوګې مبارکې باندې داسې کينبود چې زما مخ د هغوی د مخ سره يو ځای شو ) .

نبي عليه السلام هغوی ته اوفرمايل : اې بني أرفِدَه ؤ ( حبشو ) ! تکره شئ ، ( ديرښه ) .

حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا فرمايي چې بيا زه ( په ولاړه ) ستړې شوم ، نبي عليه السلام راته اوفرمايل : حَسْبُكِ ؟ بس دی ( يعنی دا کافي ده ) .

---

←←← سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: { وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ } رقم الحديث ۴۱۱۲ ، مشكوة المصابيح كتاب النِّكَاح بَابُ النظر إِلَى المَخطوبة وَبَيَان العورات اَلفَصْل الثاني رقم الحديث ۳۱۱۶ (۱۹) ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۱۹۷ ، صحيح ابن حبان رقم ۵۵۷۵ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۳۵۲۵ ، شرح السنة للبغوي ج ۹ ص ۲۴ .

ما ورته وويل : آو . دوی راته اوفرمايل : فَاذْهَبِيْ . پس ته (اوس) لاړه شه.(۱)

## صحيح قول

صحيح قول همدا دی چې زَنانه د پاره بغير د شهوت نه پَردي سړي ته کتل جائز دي خو صرف د نوم نه تر زَنګون پورې ځای ته به نه ګوري ؛ ځکه دا د سړي عورت دی.

او په کوم حديث کې چې ذکر دي " چې رسولُ الله صلی الله عليه وسلم خپلو بيبيانو ته حکم اوکړو چې د حضرت عبدالله بن مکتوم ﷺ (نابينا صحابي) نه پَرده اوکړئ " نو هغه حديث محمول دی په وَرع او تقولٰی باندی.

**د امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ قول :** امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي چې کله حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حبشو لوبه کتله نو په دې وخت کې ددې عُمر شپارس (۱٦) کاله وُ او د پَردې حکم هم نازل شوې وُ ليکن نبي عليه السلام دا بيا هم د حبشو ځوانانو کتلو نه منع نکړه ، ددينه معلوميږي چې زَنانه د پاره بغير د شهوت نه پرَدو سړو ته کتل جائز دي.

امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ د جواز د پاره بل دليل دا ذکر کړی چې د نبي ﷺ په زمانه کې به زَنانه جُمات ته د مانځه د پاره راتللی نو خامخا به د دوی نظر په پرَدو سړو باندې لږيدو ، که دا ناجائز وی نو بيا به نبي عليه السلام زَنانهٔ ته جُمات ته د راتلو اجازت نهٔ ورکړی.

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا . قَالَتْ ..... وَكَانَ يَوْمَ عِيدٍ، يَلْعَبُ السُّودَانُ بِالدَّرَقِ وَالْحِرَابِ ، فَإِمَّا سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَإِمَّا قَالَ: « تَشْتَهِينَ تَنْظُرِينَ ؟ » فَقُلْتُ : نَعَمْ ، فَأَقَامَنِي وَرَاءَهُ ، خَدِّي عَلَى خَدِّهِ ، وَهُوَ يَقُولُ : « دُونَكُمْ يَا بَنِي أَرْفِدَةَ » حَتَّى إِذَا مَلِلْتُ ، قَالَ: « حَسْبُكِ ؟ » قُلْتُ : نَعَمْ ، قَالَ: « فَاذْهَبِي » . صحيح البخاري أَبْوَابُ الْعِيدَيْنِ بَابُ الْحِرَابِ وَالدَّرَقِ يَوْمَ الْعِيدِ رقم الحديث ۹۵۰ ، و رقم الحديث ۲۹۰۷ كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ الدَّرَقِ . صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بَابُ الرُّخْصَةِ فِي اللَّعِبِ الَّذِي لَا مَعْصِيَةَ فِيهِ فِي أَيَّامِ الْعِيدِ رقم الحديث ۱۹ (۸۹۲) ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۰۹۷۷ .

وفي رواية : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ، قَالَتْ: جَاءَ حَبَشٌ يَزْفِنُونَ فِي يَوْمِ عِيدٍ فِي الْمَسْجِدِ ، فَدَعَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَوَضَعْتُ رَأْسِي عَلَى مَنْكِبِهِ ، فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَى لَعِبِهِمْ ، حَتَّى كُنْتُ أَنَا الَّتِي أَنْصَرِفُ عَنِ النَّظَرِ إِلَيْهِمْ . صحيح مسلم كِتَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بَابُ الرُّخْصَةِ فِي اللَّعِبِ الَّذِي لَا مَعْصِيَةَ فِيهِ فِي أَيَّامِ الْعِيدِ رقم الحديث ۲۰ (۸۹۲) .

امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ د جواز د پاره دريم دليل دا ذکر کړی چې ښځو ته د سړو نه د پردې حکم شوی خو سړو ته د ښځو نه د پردې حکم ندې شوی ، ددينه هم معلوميږي چې زنانه د پاره بغير د شهوت نه پردو سړو ته کتل جائز دي ، خو د نوم نه تر زنګون پورې به ورته نه ګوري ؛ ځکه دا عورت دی . (١)

په فتاوُو کې هم دا مسئله ذکر ده چې که د شهوت او فِتنې يَره نه وي نو بيا د زنانهوُ د پاره د سړو د عورت د ځايونو نه علاوه د سړو نور بدن ته کتل جائز دي . خو د ځوانې ښځې د پاره پردي سړي ته کتل افضل ندي ؛ ځکه په دې کې د شهوت او فِتنې خطره ده . (٢)

---

(١) (اَلسِّتُّمَا تُبْصِرَانِهِ) قِيْلَ فِيْهِ تَحْرِيْمُ نَظَرِ الْمَرْأَةِ إِلَى الْأَجْنَبِيِّ مُطْلَقًا . وَبَعْضٌ خَصَّهُ بِحَالِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ عَلَيْهَا جَمْعًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَوْلِ عَائِشَةَ كُنْتُ أَنْظُرُ إِلَى الْحَبَشَةِ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ بِحِرَابِهِمْ فِي الْمَسْجِدِ . وَمَنْ أَطْلَقَ التَّحْرِيْمَ قَالَ ذٰلِكَ قَبْلَ آيَةِ الْحِجَابِ . وَالْأَصَحُّ إِنَّهُ يَجُوْزُ نَظَرُ الْمَرْأَةِ إِلَى الرَّجُلِ فِيْمَا فَوْقَ السُّرَّةِ وَتَحْتَ الرُّكْبَةِ بِلَا شَهْوَةٍ . وَهٰذَا الْحَدِيْثُ مَحْمُوْلٌ عَلَى الْوَرَعِ وَالتَّقْوٰى . قَالَ السُّيُوْطِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : كَانَ النَّظَرُ إِلَى الْحَبَشَةِ عَامَ قُدُوْمِهِمْ سَنَةَ سَبْعٍ وَلِعَائِشَةَ يَوْمَئِذٍ سِتَّ عَشْرَةَ سَنَةً وَذٰلِكَ بَعْدَ الْحِجَابِ فَيُسْتَدَلُّ بِهِ عَلٰى جَوَازِ نَظَرِ الْمَرْأَةِ إِلَى الرَّجُلِ اهـ . وَبِدَلِيْلِ أَنَّهُنَّ كُنَّ يَحْضُرْنَ الصَّلَاةَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَلَا بُدَّ أَنْ يَقَعَ نَظَرُهُنَّ إِلَى الرِّجَالِ فَلَوْ لَمْ يَجُزْ لَمْ يُؤْمَرْنَ بِحُضُوْرِ الْمَسْجِدِ وَالْمُصَلّٰى . وَلِأَنَّهُ أُمِرَتِ النِّسَاءُ بِالْحِجَابِ عَنِ الرِّجَالِ وَلَمْ يُؤْمَرِ الرِّجَالُ بِالْحِجَابِ . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ٥ ص ٢٠٥٥ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ النَّظَرِ في تشريح حديث ٣١١٦ .

امام ابوداوُد رحمه الله د حضرت عبدالله بن مکتوم رضي الله عنه د حديث ذکر کولو نه روستو فرمايي : قَالَ أَبُوْ دَاوُدَ: «هٰذَا لِأَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً. أَلَا تَرٰى إِلَى اعْتِدَادِ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُوْمٍ». قَدْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ: « اِعْتَدِّيْ عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُوْمٍ. فَإِنَّهُ رَجُلٌ أَعْمٰى تَضَعِيْنَ ثِيَابَكِ عِنْدَهُ . سنن ابى داود كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: (وَقُلْ لِلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ) في تشريح حديث ٤١١٢ .

**نوټ** : دا مسئله په تفسير معارف القرآن سورة النور کې د ٣١ آيت د لاندې هم د څه تفصيل سره ذکر ده . همدارنګې په مظاهرحق پنځم جلد کې هم ذکر ده . ابوالشمس عفي عنه

(٢) فتاوى عثمانيه ج ١٠ ص ٨٢ .

په بدائع الصنائع کې ذکر دي : (وَأَمَّا) الْمَرْأَةُ فَلَا يَحِلُّ لَهَا النَّظَرُ مِنَ الرَّجُلِ الْأَجْنَبِيِّ ←←←← ←←←←

**احتیاط** : بهر حال ، دا خو ما نفسِ مسئله درته ذکر کړه خو احتیاط په دې کې دی چې حتّی الوسع زَنانه پرَدي سړي ته اُو نه ګوري ، البته که د سفر په وخت په لاره تیریدلو سره یې بې اختیاره په سړو نظر اُولږي نو دا خبره دی خو قصدًا او ارادةً به ورته نه ګوري .

**په واده کې غلط رِواج** : نن صبا زَنانه بِلاضرورته ډیر ناجائز کارونه کوي ، مثلا په بعضو علاقو کې دا رواج وي چې کله ځلمې د ناوې پسې راشي نو د سلامی د پاره ځلمی کور ته داخل کړي ، هلته ورته خپلې او پرَدی ډیرې ښځې راجمع وي هغوی تولې ده ته ګوري ، بیا د ځلمي خینې ( د ښځې خورانې ) دده سره ټوقې کوي ، څوک ورنه څپلی پټوي او څوک ورسره نورې ټَخرې کوي ، نو دا کارونه ناجائز دي ؛ ځکه دا بِلاضرورت پرَدي سړې د ښځو مینځ ته دننَه کول دي ، او بیا داسې ځوان کس چې ځان یې هم جوړ کړې وی او پرَدی ښځې ده ته په غَور سره ګوري نو دا رِواج یقیني چې ناجائز دی ، او ډیر نقصانونه په کې دي .(۱)

## د غونډ تقریر خلاصه

د غونډ تقریر خلاصه دا رااُووته چې سترګې د الله تعالی عظیم نِعمت دی ، ددې صحیح استعمالول پکار دي . په مسلمان باندې د نظر حفاظت واجب دی ، نبي علیه السلام په

←←← مَا بَيْنَ السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ وَلَا بَأْسَ أَنْ تَنْظُرَ إِلَى مَا سِوَى ذٰلِكَ إِذَا كَانَتْ تَأْمَنُ عَلَى نَفْسِهَا . وَالْأَفْضَلُ لِلشَّابِّ غَضُّ الْبَصَرِ عَنْ وَجْهِ الْأَجْنَبِيَّةِ وَكَذَا الشَّابَّةُ لِمَا فِيهِ مِنْ خَوْفِ حُدُوثِ الشَّهْوَةِ وَالْوُقُوعِ فِي الْفِتْنَةِ يُؤَيِّدُهُ الْمَرْوِيُّ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضی الله عنه أَنَّهُ قَالَ فِي قَوْلِهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى {إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا} [النور آية ۳۱] أَنَّهُ الرِّدَاءُ وَالثِّيَابُ . فَكَانَ غَضُّ الْبَصَرِ وَتَرْكُ النَّظَرِ أَزْكَى وَأَطْهَرَ وَذٰلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ {قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذٰلِكَ أَزْكَى لَهُمْ} [النور آية ۳۰] وَرُوِيَ « أَنَّ أَعْمَيَيْنِ دَخَلَا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ بَعْضُ أَزْوَاجِهِ سَيِّدَتُنَا عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا وَأُخْرَى فَقَالَ لَهُمَا : قُومَا . فَقَالَتَا : إِنَّهُمَا أَعْمَيَانِ يَا رَسُولَ اللهِ . فَقَالَ لَهُمَا: أَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا » إِلَّا إِذَا لَمْ يَكُونَا مِنْ أَهْلِ الشَّهْوَةِ بِأَنْ كَانَا شَيْخَيْنِ كَبِيرَيْنِ لِعَدَمِ احْتِمَالِ حُدُوثِ الشَّهْوَةِ فِيهِمَا. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع ج ۵ ص ۱۲۲ كِتَابُ الإِسْتِحْسَانِ

(۱) شرَل پرده لمولانا محمد عاشق الهي بلند شهري ص ۵۹ .

ډیر تاکید سره صحابه کرامو رضي الله عنهم ته د نظر د حفاظت حکم کولو . په صحیح ځای کې نظر استعمالولو سره انسان ته ثواب ملاویږي .

**ځوک چې د نظر حفاظت کوي نو دداسې کس د پاره ډیرې خوشخبریانې ذکر شوي :**

د نظر په حفاظت سره مسلمان ته د ایمان حَلاوت (خوږوالې) نصیبه کیږي ، د جهنم د اور نه محفوظ کیږي ، د قیامت د ورځې د سختۍ نه په اَمن کیږي .

د نظر حفاظت کوونکي ته نبي علیه السلام د جنت ضمانت کړی .

د نظر په حفاظت سره د انسان عقل زیاتیږي ، دُعا یې قبلیږي ، شرمګاه یې محفوظ کیږي ، د الله ﷻ مدد ورسره ملګرې کیږي ، او د شیطان د حملو نه محفوظ کیږي .

لهذا د بَدنظرۍ په بیمارۍ کې د اَخته کیدو نه مخکې ددینه پرهیز پکار دی .

**سترګې لوي نعمت دی دا په صحیح ځای کې استعمالول پکار دي :** سترګې د قرآن کریم په تلاوت ، دیني کتابونو کتلو او نور د خیر په ځایونو کې استعمالول پکار دي . کائناتو ته د عبرت په نظر کتل په کار دي .

که د چا نظر غیر اختیاري په غلط ځای باندې اُولږي نو سمدستي مخ راړول پکار دي . په چا کې چې ایمان او غیرت وي هغه ځان د بَدنظرۍ او نورو ګناهونو نه بچ کولې شي .

که څوک د ضرورت د پاره په لار کې ناست وي نو د سترګو حفاظت به کوي ، او پردو ښځو ته به نه ګوري .

لکه څرنګې چې د سړو د پاره د نظر حفاظت ضروري دی نو همدغه شان د ښځو د پاره هم د نظر حفاظت ضروري دی ، ځکه په قرآن کریم کې مؤمنانو سړو او مؤمناتو ښځو دواړو ته د نظر ښکته کولو حکم شوی .

**دُعا :** الله تعالی دې زمونږ د ټولو نظرونه ناجائزو ځایونو ته د کتلو نه محفوظ کړي .

پروردګار دې مونږ ټول د بَدنظرۍ او نورو ګناهونو په خپل اَمن و اَمان کې اوساتي ، او څوک چې په بَدنظرۍ یا نورو ګناهونو کې اَخته وي هغوی ته دې ددینه د توبې توفیق ورکړي . آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا ﴾

الفرقان آية ٦٣ .

# د تواضع فضائل او فوائد

ورسره

# د نبي ﷺ، صحابه کرامو او نورو بزرگانو د تواضع واقعات

تاليف


آبُوالشَّمْس مولانا نُوْرُالْهُدٰى عُفِيَ عَنْهُ

مُدَرِّس دَارُالعلوم فيضُ القُرآن اكاخيل كالونی، مردان

# نوټ

دا آئنده موضوع مې په څلورو غټو عُنواناتو باندې تقسيم کړې :


## ۱ . د تواضع فضائل او فوائد صفحه ۲۰۱

(په دې کې د تواضع فضائل ، فوائد ، صورتونه ، او تواضع پيدا کولو طريقې ذکر دي)

## ۲ . د نبي عليه السلام تواضع صفحه ۲۳۸

(په دې کې د نبي عليه السلام د تواضع ډير واقعات ذکر دي)

## ۳ . د صحابه کرامو رضي الله عنهم تواضع صفحه ۲۶۹

(په دې کې د خلفاء راشدينو او نورو ډيرو صحابه کرامو د تواضع واقعات ذکر دي)

## ٤ . د نورو بزرګانو د تواضع واقعات صفحه ۲۹۹

( په دې کې د تابعينو او نورو بزرګانو د تواضع بهترين واقعات ذکر دي ) .


که مُقرّرين دا هر عُنوان په ځانله جُمعه بيان کړي نو هم صحيح ده ؛ ځکه هر عُنوان مستقل تقرير دی . او که د چا سره د تقرير د پاره وخت زيات وي (يعنې اُوږد تقرير کول غواړي) نو ټول تقرير په يو ځل هم بيانولې شي .

ابوالشمس علي عنه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د تواضع فضائل او فوائد

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ ، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ، وَنَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَنَشْهَدُ اَنَّ سَيِّدَنَا وَنَبِيَّنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ،

اَمَّا بَعْدُ فَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي الْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ وَالْفُرْقَانِ الْحَمِيْدِ :

﴿ وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا ﴾ .(۱)

وَقَالَ تَعَالٰى : ﴿ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ .(۲)

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .... مَا تَوَاضَعَ اَحَدٌ لِلّٰهِ اِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ ... (۳)

---

(۱) الفرقان آية ۶۳ .

(۲) الشعراء آية ۲۱۵ .

(۳) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ ، وَمَا زَادَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ اِلَّا عِزًّا ، وَمَا تَوَاضَعَ اَحَدٌ لِلّٰهِ اِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ . صحيح مسلم كِتَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ وَالْاٰدَابِ بَابُ اسْتِحْبَابِ الْعَفْوِ وَالتَّوَاضُعِ رقم الحديث ۶۹(۲۵۸۸) ، مشكوة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الاول رقم الحديث ۱۸۸۹(۲) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۹۰۰۸ ، موطاء مالک باب ماجاء في التعفف عن المسالة ، صحيح ابن حبان رقم ۳۲۴۸ ، شعب الايمان رقم ۷۹۷۴ ، كنزالعمال رقم ۱۵۷۶۷ ، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۸۵۸(۳) الترغيب في الصدقة والحث عليها .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللّٰهُ ، وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللّٰهُ . الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۱۲۵ اَلْكَبِيْرَةُ الرَّابِعَةُ الْكِبْرُ وَالْعُجْبُ وَالْخُيَلَاءُ ، كنزالعمال رقم الحديث ۵۷۳۴ ، الترغيب والترهيب للمنذري ج۱ ص ۱۵ رقم الحديث ۱۱۵ .

وفي رواية : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ... مَنْ تَوَاضَعَ رَفَعَهُ اللّٰهُ ، وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللّٰهُ .... التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ۱ ص ۱۰۱ رقم الحديث ۷۷ باب التواضع ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۳۸۹۴ ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۲۷ ، الترغيب والترهيب رقم ۴۹۶۹ ، مجمع الزوائد رقم ۱۸۲۹۴ ، الزواجر ج۱ ص ۱۲۷ .

وَ قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَ السَّلَامُ : إِنَّ اللهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوْا حَتَّى لَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ ، وَلَا يَبْغِيْ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ . (۱)

صَدَقَ اللهُ الْعَظِيْم .

## تمهيدي خبره

زما خوږو قدرمنو او عزت مندو مسلمانانو ورونو ! په قرآن کريم او احاديثو مبارکهٔ کې چې کوم ښه صفات ذکر شوي په هغې کې يو ښه صفت تواضع او عاجزي هم ده ، الله تعالی په تواضع سره د انسان مرتبه اُوچتوي ، تواضع د اِيمان حصه او بهترين عبادت دی ، ددې په وجه انسان د جنت مستحق ګرځي ، د تواضع په وجه انسان د الله ﷻ محبوب او مُقرّب ګرځي .

نن به إِنْ شاء الله زه تاسو ته د تواضع فضائل او فوائد بيانوم ، او ورسره ورسره به د نبي عليه السلام ، صحابه کرامو او د نورو بزرګانو د تواضع واقعات بيانوم .

خو اول درته د تواضع لغوي او اصطلاحي تعريف ذکر کوم :

## د تواضع لغوي او اِصطلاحي تعريف :

تواضع په لغت کې " ښکته کيدلو او عاجزي کولو " ته وايي . (۲)

---

(۱) صحيح مسلم كتاب الجَنَّةِ وَصِفَةِ نَعِيْمِهَا وَأَهْلِهَا بَابُ الصِّفَاتِ الَّتِيْ يُعْرَفُ بِهَا فِي الدُّنْيَا أَهْلُ الْجَنَّةِ وَأَهْلُ النَّارِ رقم الحديث ٦٤ (٢٨٦٥) . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابٌ فِي التَّوَاضُعِ رقم الحديث ٤٨٩٥ ، الادب المفرد مخرجا بَابُ الْمُسْتَبَّانِ مَا قَالَا فَعَلَى الْأَوَّلِ رقم الحديث ٤٢٦ ، و رقم الحديث ٤٢٨ ، سنن ابن ماجة كِتَابُ الزُّهْدِ باب : الْبَرَاءَةُ مِنَ الْكِبْرِ وَالتَّوَاضُعُ رقم الحديث ٤١٧٩ ، مشكوة المصابيح بَابُ الْمُفَاخَرَةِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ رقم الحديث ٤٨٩٨(٦) ، شعب الايمان رقم الحديث ٦٢٣٥ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ١٠٠٠ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ٢١٠٨٣ .

(۲) التواضع لغةً: مَصْدَرُ تَوَاضَعَ أَيْ أَظْهَرَ الضَّعَةَ . وَهُوَ مَأْخُوْذٌ مِنْ مَادَّةِ ( وض ع ) اَلَّتِيْ تَدُلُّ عَلَى الْخَفْضِ لِلشَّيْءِ وَحَطِّهِ . يُقَالُ : وَضَعْتُهُ بِالْأَرْضِ وَضْعًا . وَوَضَعَتِ الْمَرْأَةُ وَلَدَهَا . نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۲۵۵ التواضع .

مَعْنَى التَّواضع لغةً: يُقَالُ وَضَعَ فُلَانٌ نَفْسَهُ وَضْعًا . وَ وُضُوْعًا بالضَّمِ . وَضَعَةً . بِالْفَتْحِ : أَيْ أَذَلَّهَا . وَتَوَاضَعَ الرَّجُلُ : إِذَا تَذَلَّلَ . وَقِيْلَ : ذَلَّ وَتَخَاشَعَ . تاج العروس لمرتضى الزبيدي ۲۲/۳۴۳ وضع . ←←←←←← ←←

او اصطلاحي تعريف يې علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ په " فتح الباري " كې داسې كړى :

إِظْهَارُ التَّنَزُّلِ عَنِ الْمَرْتَبَةِ لِمَنْ يُرَادُ تَعْظِيمُهُ . وَقِيلَ : هُوَ تَعْظِيمُ مَنْ فَوْقَهُ لِفَضْلِهِ . (۱)

يعنى چې د چا د تعظيم اراده كولې شي د هغه د وړاندې عاجزي ښكاره كول .

يا : د هغه چا تعظيم كول چې هغه دده نه په مرتبه كې اُوچت وي ، او دا تعظيم د هغه د فضيلت په وجه وي .

په " الرسالة القشيرية " كې د تواضع تعريف داسې شوى :

اَلتَّوَاضُعُ : هُوَ الإِسْتِسْلَامُ لِلْحَقِّ وَتَرْكُ الإِعْتِرَاضِ عَلَى الْحُكْمِ . (۲)

تواضع ديته وايي : حق ته غاړه ايخودل ، او په څه حُكم باندې اعتراض نه كول .

د دينه علاوه علماؤ د تواضع نور تعريفونه هم كړي . (۳)

---

←←← وقال في الصحاح : وَضُعَ الرَّجُلُ بِالضَّمِّ يَوْضَعُ (ضَعَةً) بِفَتْحِ الضَّادِ وَكَسْرِهَا أَيْ صَارَ وَضِيعًا. مختار الصحاح للجوهري ج۱ ص ۳۴۱ وض ع ، موسوعة الأخلاق الإسلامية ج۱ ص ۱۴۶ التواضع .

(۱) فتح الباري شرح صحيح البخاري لابن حجر ج۱۱ ص ۳۴۱ قَوْلُهُ بَابُ التَّوَاضُعِ .

(۲) الرسالة القشيرية لعبد الكريم بن هوازن بن عبد الملك القشيري ص ۲۷۵ بَاب الخشوع والتواضع .

(۳) التواضع هو: ترك الترؤس، وإظهار الخمول، وكراهية التعظيم، والزيادة في الإكرام، وأن يتجنب الإنسان المباهات بما فيه من الفضائل، والمفاخرة بالجاه والمال، وأن يتحرز من الإعجاب والكبر . تهذيب الأخلاق للجاحظ ص۲۵ .

وقيل هو: رضا الإنسان بمنزلة دون ما يستحقه فضله ومنزلته. وهو وسط بين الكبر والضعة. فالضعة: وضع الإنسان نفسه مكانا يزري به بتضييع حقه . والكبر: رفع نفسه فوق قدره . الذريعة إلى مكارم الشريعة للراغب الأصفهاني ص ۲۹۹ . موسوعة الأخلاق الإسلامية ج۱ ص ۱۴۶ التواضع .

سُئِلَ الْفُضَيْلُ بْنُ عِيَاضٍ رَحِمَهُ اللهُ عَنِ التَّوَاضُعِ ؟ فَقَالَ : يَخْضَعُ لِلْحَقِّ ، وَيَنْقَادُ لَهُ ، وَيَقْبَلُهُ مِمَّنْ قَالَهُ.

وَقِيلَ : اَلتَّوَاضُعُ أَنْ لَا تَرَى لِنَفْسِكَ قِيمَةً . فَمَنْ رَأَى لِنَفْسِهِ قِيمَةً فَلَيْسَ لَهُ فِي التَّوَاضُعِ نَصِيبٌ . وَهٰذَا مَذْهَبُ الْفُضَيْلِ وَغَيْرِهِ .

وَقَالَ الْجُنَيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ : هُوَ خَفْضُ الْجَنَاحِ ، وَلِينُ الْجَانِبِ .

وَقَالَ أَبُو يَزِيدَ الْبِسْطَامِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : هُوَ أَنْ لَا يَرَى لِنَفْسِهِ مَقَامًا وَلَا حَالًا . ←←←←←←←←←←←←

# ځان ته د عاجزۍ الفاظ استعمالول تواضع نده . بلکه ځان عاجزه ګنړل تواضع ده

په دې خبره ځان پوهه کړئ چې ځان ته د تواضع الفاظ استعمالول تواضع نده ، بلکه ځان عاجزه ګنړل تواضع ده ، لهذا که یو کس ځان ته د " أحقر ، ګناهګار ، خطاکار ، ناچیز " وغیره الفاظ استعمالوي خو په زړه کې ورته ځان اُوچت معلومیږي نو دا تواضع نده ، بلکه د تواضع حقیقت دا دی چې یو کس ځان عاجزه ګنړي .

مثلاً دا ځان داسې ګنړي چې : " زما هیڅ حیثیت نشته ، ماته چې الله تعالی دا کوم نِعمتونه راکړي زه ددې هم مستحق نه ووم خو دا یې راته په خپل فضل و کرم سره راکړي ، او زه چې دا کوم نېک اعمال کوم دا د الله ﷻ په توفیق سره کوم په دېٔ کې زما هیڅ کمال نشته ، او دا کس ځان د نورو نه ښکته ګنړي " نو دا تواضع ده .(۱)

**تواضع معلومولو طريقه** : مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ذکر کړي چې د تواضع معلومولو طریقه دا ده چې کله یو کس د ځان په باره کې دا وایي چې :

" زه أحقر ، عاجز او ګناهګاریم او زما هیڅ حیثیت نشته "

نو که په دې وخت کې بل کس ده ته اووایي چې " ته یقیني همداسې یې ، ګناهګاریې او ستا هیڅ حیثیت نشته " نو که په دې سره دا کس خفه نه شو نو پوهه شه چې په ده کې تواضع شته او ده دا الفاظ د زړه نه ویلي وو .

خو که دا وریاندې خفه شو نو بیا پوهه شه چې تواضع په کې نشته او د تواضع دا الفاظ یې صرف ددې د پاره استعمال کړي ۇ چې دا خلق راته اووایي چې :

← ← ← ← وَقَالَ ابْنُ عَطَاءٍ رَحِمَهُ اللهُ : هُوَ قَبُوْلُ الْحَقِّ مِمَّنْ كَانَ . مدارج السالكين بين منازل اياک نعبد واياک نستعين لابن القيم الجوزية ج ۲ ص ۳۱۴ فَصْلٌ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلٌ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ .

قَالَ صَاحِبُ " الْمَنَازِلِ " ( شيخ الاسلام الهروي ) : اَلتَّوَاضُعُ : أَنْ يَتَوَاضَعَ الْعَبْدُ لِصَوْلَةِ الْحَقِّ . مدارج السالكين لابن القيم الجوزية ج ۲ ص ۳۱۷ فَصْلٌ تَعْرِيفُ التَّوَاضُعِ .

(۱) اصلاحي خطبات ج۵ ص ۲۹ .

" نه صاحب، ته خو ډير مُتّقي، او پرهيزګاريې، او ته ډير لوي سړی يې " . (۱)

## الله ﷻ د نېکانو بندګانو يو صفت " تواضع " ذکر کړی

الله تعالی د نېکانو بندګانو څه صفات ذکر کړي په هغې کې يو صفت دا هم دی چې دوی په تواضع باندې ګرځي ، ربِّ کريم فرمايي :

﴿ وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْاَرْضِ هَوْنًا ﴾ . (۲)

ترجمه : او د الله تعالی ( ربښتيني ) بندګان هغه خلق دي چې دوی په زمکه باندې په قلاره ( عاجزی ) سره ګرځي .

مُفسّرينو د " هَوْنًا " تشريح په سُکون او تواضع سره کړی ، يعنی دوی په وَقار او عاجزی سره ګرځي . (۳)

## نبي عليه السلام ته د نرمی او تواضع حُکم شوی ؤ

۱ . الله رب العزت نبي عليه السلام ته فرمايي :

﴿ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ . (۴)

---

(۱) اصلاحي خطبات ج۵ ص ۵۰ .

(۲) الفرقان آية ۶۳ .

(۳) {هَوْنًا} أَيْ بِسَكِيْنَةٍ وَتَوَاضُعٍ . تفسير الجلالين سورة الفرقان آية ۶۳ .
{هَوْنًا} يعني بِالسَّكِيْنَةِ وَالْوَقَارِ مُتَوَاضِعِيْنَ غَيْرَ أَشِرِيْنَ وَلَا مَرِحِيْنَ . وَلَا مُتَكَبِّرِيْنَ . وَقَالَ الْحَسَنُ : عُلَمَاءُ وَحُكَمَاءُ . وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الْحَنَفِيَّةِ : أَصْحَابُ وَقَارٍ وَعِفَّةٍ لَا يَسْفَهُوْنَ . وَإِنْ سُفِهَ عَلَيْهِمْ حلمُوْا . وَالْهَوْنُ فِي اللُّغَةِ : الرِّفْقُ وَاللِّيْنُ . معالم التنزيل في تفسير القرآن ( تفسير البغوي ) ج ۳ ص ۴۵۴ ، و تفسير خازن ج ۳ ص ۳۱۸ سورة الفرقان آية ۶۳ .

يو شاعر وايي ، وَلَا تَمْشِ فَوْقَ الْأَرْضِ إِلَّا تَوَاضُعًا ✿ فَكَمْ تَحْتَهَا قَوْمٌ هُمْ مِنْكَ أَرْفَعُ
فَإِنْ كُنْتَ فِيْ عِزٍّ وَخَيْرٍ وَمنعة ✿ فَكَمْ مَاتَ مِنْ قَوْمٍ هُمْ مِنْكَ أَوْضَعُ روضة العقلاء ص ۶۱ ، موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۶۹ . البحر المحيط في التفسير ج ۷ ص ۵۰ .

(۴) الحجر آية ۸۸ .

ترجمه : او (اې پیغمبره !) ته خپلې مټې مؤمنانو ته ښکته کړه .

علامه قرطبي رَحِمَهُ اللهُ ددې آیت ترجمه دا کړې :

أَيْ أَلِنْ جَانِبَكَ لِمَنْ آمَنَ بِكَ وَتَوَاضَعْ لَهُمْ . (۱)

یعنی چا چې په تا باندې اِیمان راوړی هغوی سره نرمي کوه او د هغوی سره تواضع (عاجزي) کوه .

۲ . بل ځای فرمایي : ﴿ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ . (۲)

ترجمه : ( اې پیغمبره ! ) ته خپلې مټې هغه مؤمنانو ته ښکته کړه کوم چې ستا تابعداري کوي .

په تفسیر بحر محیط کې ذکر دي :

( وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ) وَهُوَ كِنَايَةٌ عَنِ التَّوَاضُعِ .... فَكَأَنَّ الْمَعْنَى : أَنَّ مَنِ اتَّبَعَكَ مُؤْمِنًا فَتَوَاضَعْ لَهُ . (۳)

دا ( وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ ) کِنایه ده د تواضع نه ، نو د آیت مطلب دا شو : کوم مؤمن چې ستا تابعداري کوي د هغه سره تواضع کوه .

۳ . د مسلم شریف حدیث دی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :

إِنَّ اللهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوا حَتَّى لَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ ، وَلَا يَبْغِيَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ . (۴)

---

(۱) الجامع لأحكام القرآن (تفسیر القرطبي) ج ۱۰ ص ۵۷ سورة الحجر آية ۸۸ .

(۲) الشعراء آية ۲۱۵ .

(۳) البحر المحيط في التفسير ۱۹۷/۸ الشعراء آية ۲۱۵ .

(۴) صحيح مسلم كتاب الجَنَّةِ وَصِفَةِ نَعِيمِهَا وَأَهْلِهَا بَابُ الصِّفَاتِ الَّتِي يُعْرَفُ بِهَا فِي الدُّنْيَا أَهْلُ الْجَنَّةِ وَأَهْلُ النَّارِ رقم الحديث ۶۴ (۲۸۶۵) . سنن ابي داود كِتَابُ الأَدَبِ بَابٌ فِي التَّوَاضُعِ رقم الحديث ۴۸۹۵ ، الادب المفرد مخرجا بَابُ الْمُسْتَبَّانِ مَا قَالَا فَعَلَى الأَوَّلِ رقم الحديث ۴۲۶ ، و رقم الحديث ۴۲۸ ، سنن ابن ماجة كِتَابُ الزُّهْدِ بَابُ : الْبَرَاءَةُ مِنَ الْكِبْرِ وَالتَّوَاضُعُ رقم الحديث ۴۱۷۹ ، مشكوة المصابيح بَابُ الْمُفَاخَرَةِ اَلْفَصْلُ الأَوَّلُ رقم الحديث ۴۸۹۸(۶) ، شعب الايمان رقم الحديث ۶۲۴۵ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۰۰۰ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۲۱۰۸۳ .

بېشکه الله تعالی ماته دا وحي کړې چې تاسو تواضع (عاجزي) کوئ، تر دې چې يو کس دې په بل باندې فخر نه کوي، او يو دې په بل باندې ظلم نه کوي.

## د آخرت نعمتونه د تواضع کوونکو د پاره دي

الله تعالی فرمايي:

﴿ تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۚ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴾. (۱)

ترجمه: دا د آخرت کور مونږ د هغه خلقو د پاره مقرروو کوم چې په زمکه کې د لوېي (تکبر) او فساد اراده نه لري، او ښه انجام د مُتّقيانو د پاره دی.

علامه ابن کثير رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې الله تعالی په دې آيت کې دا خبر ورکړی چې د آخرت دائمي نعمتونه د هغه بندګانو د پاره دي چې مؤمنان مُتواضعين (عاجزي کوونکي) وي، او کوم چې په زمکه کې فساد نه کوي. (۲)

## په چا کې تواضع پيدا کيدل د الله ﷻ د محبت علامه ده

څوک چې د مؤمنانو د پاره نرم وي او د هغوی د وړاندې عاجزي کوي نو دا علامه د دې ده چې الله تعالی د دې کس سره محبت کوي او دا هم د الله تعالی سره محبت کوي.

الله ربّ العزت فرمايي:

﴿ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَاْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴾. (۳)

ترجمه: اې مؤمنانو! څوک چې په تاسو کې د خپل دين نه واوړي نو الله تعالی به دير

(۱) القصص آية ۸۳.

(۲) قال ابن كثير رَحِمَهُ اللهُ: يُخْبِرُ تَعَالَى أَنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ وَنَعِيْمَهَا الْمُقِيْمَ الَّذِيْ لَا يَحُوْلُ وَلَا يَزُوْلُ جَعَلَهَا لِعِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ الْمُتَوَاضِعِيْنَ الَّذِيْنَ لَا يُرِيْدُوْنَ عُلُوًّا فِي الْأَرْضِ. أَيْ: تَرَفُّعًا عَلَى خَلْقِ اللهِ وَتَعَاظُمًا عَلَيْهِمْ وَتَجَبُّرًا بِهِمْ. وَلَا فَسَادًا فِيْهِمْ. تفسير القرآن العظيم (تفسير ابن كثير) ۲۵۸/۶ سورة القصص آية ۸۳.

(۳) المائدة آية ۵۴

زړ داسې یو قوم راولي (یعنی نور خلق به پیدا کړي) چې الله تعالی به د دوی سره محبت کوي، او دوی به د الله ﷻ سره محبت کوي، په مؤمنانو باندې به نرم وي، او په کافرانو باندې به سخت وي.

مُفسّرینو ددې آیت په تفسیر کې لیکلي چې د کامِل مؤمنانو په صفاتو کې دا هم دي چې دا به د خپل اسلامي ورور د وړاندې تواضع (عاجزي) کوي، او په کافرانو باندې به سختي کوي. (۱)

مفسّرینو دا هم لیکلي چې د الله تعالی د محبت علامه د مؤمن سره داده چې دا به د خپلو مسلمانانو وروڼو د پاره نَرم او عاجزي کوونکې وي. (۲)

## په تواضع سره د انسان مرتبه نوره هم اوچتیږي

۱. د مسلم شریف حدیث دی، رسولُ الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

.... مَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ ... (۳)

---

(۱) قَال محمد علي الصابوني رَحِمَهُ اللهُ: { أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ } أي رحماء متواضعين للمؤمنين أشداء متعززين على الكافرين. صفوة التفاسير ج ۱ ص ۳۲۳ سورة المائدة آية ۵۴.

قَال ابن كثير رَحِمَهُ اللهُ: { أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ }: هٰذِهِ صِفَاتُ الْمُؤْمِنِينَ الْكُمَّلِ أَنْ يَكُونَ أَحَدُهُمْ مُتَوَاضِعًا لِأَخِيهِ وَوَلِيِّهِ، مُتَعَزِّزًا عَلَى خَصْمِهِ وَعَدُوِّهِ. كَمَا قَالَ تَعَالَى: { مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ } [ الفتح آية ۲۹]. وَفِي صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ: "الضَّحُوكُ الْقَتَّالُ" فَهُوَ ضَحُوكٌ لِأَوْلِيَائِهِ قَتَّالٌ لِأَعْدَائِهِ. تفسير القرآن العظيم (تفسير ابن كثير) ج ۳ ص ۱۳۶ سورة المائدة آية ۵۴.

(۲) ومِن علامةِ حبِّ الله تعالى للمؤمن أن يكونَ ليّن الجانب، متواضعًا لإخوانه المؤمنين، متسربلًا بالعزة، حيال الكافرين والمنافقين. صفوة التفاسير ج ۱ ص ۳۲۳ سورة المائدة آية ۵۴.

(۳) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ، وَمَا زَادَ اللهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا، وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللهُ. صحيح مسلم كتاب البِرِّ وَالصِّلَةِ وَالآدَابِ بَابُ اسْتِحْبَابِ الْعَفْوِ وَالتَّوَاضُعِ رقم الحديث ۶۹(۲۵۸۸)، مشكوة المصابيح باب فضل الصدقة الفصل الاول رقم الحديث ۱۸۸۹(۲)، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۹۰۰۸، موطاء مالك باب ماجاء في التعفف عن المسألة، صحيح ابن حبان رقم ۳۲۴۸، شعب الايمان رقم ۷۹۷۴، كنز العمال رقم ۱۵۷۶۷، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۸۵۸(۳) الترغيب في الصدقة والحث عليها.

چا چې د الله ﷻ د پاره تواضع (عاجزي) کړی نو الله تعالی (په دُنيا او آخرت دواړو کې) د هغه درجه نوره هم اُوچته کړی.

**د مرتبې اوچتولو مطلب**: امام نووي رَحِمَهُ اللهُ د مرتبې اُوچتولو دوه ملطبه ذکر کړي:

اول: څوک چې د الله تعالی د پاره تواضع اوکړي نو الله تعالی به په دُنيا کې د ده مرتبه اُوچته کړي، د خلقو په زړونو کې به د ده عزت پيدا کړي، او د خلقو په نزد به د ده مقام ډير اُوچت کړي. دويم مطلب دادی چې الله تعالی به په آخرت کې ده ته د تواضع په وجه ډير زيات اَجر و ثواب ورکړي. (١)

٢ . همدا مضمون په نورو احاديثو کې هم ذکر شوی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللهُ ، وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللهُ . (٢)

څوک چې د الله د پاره عاجزي اوکړي نو الله تعالی به د ده مرتبه اُوچته کړي، او څوک چې تکبّر اوکړي نو الله تعالی به د ده مرتبه ښکته کړي. (يعنی ذليل به يې کړي).

٣ . حديثِ قدسي دی، الله تعالی فرمايي: مَنْ تَوَاضَعَ لِيْ هٰكَذَا رَفَعْتُهُ هٰكَذَا.

څوک چې ماته داسې تواضع اوکړي (راوي د حديث د خپل لاس وَرغوې زمکې طرف ته ښکته کړو او زمکې ته يې نزدې کړو) نو زه به دا داسې اُوچت کړم (راوي د حديث د

---

(١) (رَفَعَهُ اللهُ) فِيهِ أَيْضًا وَجْهَانِ: أَحَدُهُمَا يَرْفَعُهُ فِي الدُّنْيَا . وَيُثْبِتُ لَهُ بِتَوَاضُعِهِ فِي الْقُلُوْبِ مَنْزِلَةً . وَيَرْفَعُهُ اللهُ عِنْدَ النَّاسِ وَيُجِلُّ مَكَانَهُ . وَالثَّانِي: أَنَّ الْمُرَادَ ثَوَابُهُ فِي الْآخِرَةِ وَرَفْعُهُ فِيهَا بِتَوَاضُعِهِ فِي الدُّنْيَا . قَالَ الْعُلَمَاءُ وَهٰذِهِ الْأَوْجُهُ فِي الْأَلْفَاظِ الثَّلَاثَةِ مَوْجُوْدَةٌ فِي الْعَادَةِ مَعْرُوْفَةٌ . وَقَدْ يَكُوْنُ الْمُرَادُ الْوَجْهَيْنِ مَعًا فِيْ جَمِيْعِهَا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ . وَاللهُ أَعْلَمُ . المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج (شرح النووي على مسلم) ج ١٦ ص ١٤٢ .

(٢) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج١ ص ١٢٥ اَلْكَبِيْرَةُ الرَّابِعَةُ الْكِبْرُ وَالْعُجْبُ وَالْخُيَلَاءُ ، كنز العمال رقم الحديث ٥٧٣٤ ، الترغيب والترهيب للمنذري ج ١ ص ١٥ رقم الحديث ١١٥ .

وفي رواية: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ... مَنْ تَوَاضَعَ رَفَعَهُ اللهُ ، وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللهُ .... التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ١ ص ١٠١ رقم الحديث ٧٧ باب التواضع ، المعجم الاوسط رقم الحديث ٤٨٩٤ ، احياء علوم الدين ج٣ ص ٣٢٧ ، الترغيب والترهيب رقم ٤٩٦٩ ، مجمع الزوائد رقم ١٨٢٩٤ ، الزواجر ج١ ص ١٢٧ .

خپل لاس وَرغوي آسمان طرف ته اُوچت کړو ). (۱)
يعنی چې څوک عاجزي اوکړي نو زه به يې مرتبه ډيره اُوچته کړم.

٤ . رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ دَرَجَةً يَرْفَعُهُ اللهُ دَرَجَةً حَتّٰى يَجْعَلَهُ فِيْ أَعْلَى عِلِّيِّيْنَ ، وَمَنْ تَكَبَّرَ عَلَى اللهِ دَرَجَةً يَضَعُهُ اللهُ دَرَجَةً حَتّٰى يَجْعَلَهُ فِيْ أَسْفَلِ السَّافِلِيْنَ ...

څوک چې د الله ﷻ د رَضا د پاره يوه درجه تواضع (عاجزي) اوکړي نو الله تعالی دده درجه اُوچتوي تر دې چې په عِلّيين کې اَعلٰی مقام ته يې اُورسوي ، او څوک چې په الله تعالی باندې يوه درجه تکبّر اوکړي نو الله تعالی دده مرتبه راښکته کوي تر دې چې اسفلُ السافلين ته يې اُورسوي. (۲)

۵ . يوه ورځ حضرت عُمر رضی الله عنه په ممبر باندې خلقو ته اوفرمايل : اې خلقو! تاسو تواضع (عاجزي) کوئ ، ځکه ما د رسولُ الله ﷺ نه اَوريدلي دي چې فرمايل يې :

مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللهُ فَهُوَ فِيْ نَفْسِهِ صَغِيْرٌ وَفِيْ أَعْيُنِ النَّاسِ عَظِيْمٌ ، وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللهُ فَهُوَ فِيْ أَعْيُنِ النَّاسِ صَغِيْرٌ ، وَفِيْ نَفْسِهِ كَبِيْرٌ حَتّٰى لَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِمْ مِنْ كَلْبٍ أَوْ خِنْزِيْرٍ . (۳)

---

(۱) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، عَنْ عُمَرَ رضی الله عنه قَالَ : لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا رَفَعَهُ ، قَالَ : يَقُوْلُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى : « مَنْ تَوَاضَعَ لِيْ هٰكَذَا ، وَجَعَلَ يَزِيْدُ بَاطِنَ كَفِّهِ إِلَى الْأَرْضِ وَأَدْنَاهَا إِلَى الْأَرْضِ ، رَفَعْتُهُ هٰكَذَا ، وَجَعَلَ بَاطِنَ كَفِّهِ إِلَى السَّمَاءِ ، وَرَفَعَهَا نَحْوَ السَّمَاءِ » . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۳۰۹ ، مسند البزار رقم الحديث ۱۷۵ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۲۰۱ ، شعب الايمان رقم الحديث ۷۷۸٦ ، و رقم الحديث ۷۷۸۷ ، مجمع الزوائد باب في التواضع رقم الحديث ۱۳۰٦۷ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۷۳۹ .

(۲) موارد الظمآن إلى زوائد ابن حبان كتاب الأدب باب التواضع رقم الحديث ۱۹۴۲ ، مسند احمد رقم الحديث ۱۱۷۲۴ ، الترغيب والترهيب للمنذري رقم الحديث ۴۳۹۴ الترغيب في التواضع والترهيب من الكبر والعجب والافتخار .

(۳) قَالَ عُمَرُ رضی الله عنه وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ : أَيُّهَا النَّاسُ ! تَوَاضَعُوْا فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ : مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللهُ ... شعب الايمان رقم الحديث ۷۷۹۰ ، مشكوة المصابيح باب الغضب والكبر رقم الحديث ۵۱۱۹ (۱٦) ، الزواجر الكبيرة الرابعة الكبر والعجب والخيلاء ج۱ ص ۱۲۵ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۷۳۷ .

څوک چې د الله ﷻ د رَضا د پاره تواضع (عاجزي) کوي نو الله تعالی به د هغه مرتبه اُوچته کړي ، پس داسې کس اگر چې په خپل نفس کې وړوکې وي (يعنې ځان وړوکې گڼري) خو د خلقو په نظرونو کې به ډير د اُوچتې مرتبې واله وي ، او څوک چې تکبر کوي نو الله تعالی هغه ذليله کوي ، پس داسې کس د خلقو په نظرونو کې وړوکې وي اگر چې په خپل نفس کې ځان د اُوچتې مرتبې گڼري ، تردې چې دا د خلقو په نظر کې د سپي او خِنزير نه هم زيات سپَک او ذليله شي .

٦ . يو شاعر وايي :

۱. تَوَاضَعْ تَكُنْ كَالنَّجْمِ لَاحَ لِنَاظِرٍ ✡ عَلَى صَفَحَاتِ الْمَاءِ وَهُوَ رَفِيْعٌ

۲. وَلَا تَكُ كَالدُّخَانِ يَعْلُوْ بِنَفْسِهٖ ✡ إِلَى طَبَقَاتِ الْجَوِّ وَهُوَ وَضِيْعٌ .(۱)

۱ . عاجزي کوه نو د ستوري په شان به شې چې دا ليدونکي ته د اُوبو د پاسه ښکاري حالانکه دا ډير اُوچت وي .

۲ . د لوگي په شان مه جوړيږه چې دا پورته فِضاء ته په خپله پورته کيږي حالانکه دا ذليل وي .

يو بل شاعر وايي :

إِذَا شِئْتَ أَنْ تَزْدَادَ قَدْرًا وَرِفْعَةً ✡ فَلِنْ وَتَوَاضَعْ وَاتْرُكِ الْكِبْرَ وَالْعُجْبَا .(۲)

کله چې ته غواړې چې ستا مرتبه او شان نور هم اُوچت شي نو نرمي او عاجزي کوه ، او تکبّر و عجب پريږده .

## د تواضع کوونکي د پاره خوشحالي

رسولُ الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

طُوْبٰى لِمَنْ تَوَاضَعَ مِنْ غَيْرِ مَنْقَصَةٍ ، وَذَلَّ فِيْ نَفْسِهٖ مِنْ غَيْرِ مَسْكَنَةٍ .

خوشحالي (او زيري) دی د هغه چا د پاره چې هغه بغير د کمي نه عاجزي اوکړي

(۱) موسوعة الأخلاق (الخراز) ج ۱ ص ۳۰۱ . موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱٦۹ التواضع .

(۲) موسوعة الأخلاق (الخراز) ج ۱ ص ۴۱۷ .

(يعنی ګناه ورسره اونکړي) ، او (خوشحالي ده د هغه چا د پاره) چې خپل ځان بغير د سوال کولو نه کمزوري اوګڼري . (۱)

## تواضع بهترين عبادت دی

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي :

إِنَّكُمْ لَتَغْفُلُوْنَ أَفْضَلَ الْعِبَادَةِ : اَلتَّوَاضُعَ . (۲)

بيشکه تاسو د بهترين عبادت نه غافل يَئ . چې هغه تواضع ده .

همدارنګې تواضع کوونکي ته بهترين کس ويل شو ی . (۳)

## تواضع د کامِل مؤمِن صفت دی ، او الله ﷻ يې خپل محبوب بندګانو له ورکوي

۱ . رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي :

أَرْبَعٌ لَا تَصِيْرُ إِلَّا فِي مُؤْمِنٍ : اَلصَّمْتُ وَهُوَ أَوَّلُ الْعِبَادَةِ . وَالتَّوَاضُعُ . وَذِكْرُ اللهِ تَعَالٰى . وَقِلَّةُ الشَّرِّ .

---

(۱) پوره حديث داسې دی : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: طُوْبٰى لِمَنْ تَوَاضَعَ مِنْ غَيْرِ مَنْقَصَةٍ، وَذَلَّ فِيْ نَفْسِهِ مِنْ غَيْرِ مَسْكَنَةٍ . وَأَنْفَقَ مَالًا جَمَعَهُ فِيْ غَيْرِ مَعْصِيَةٍ، وَرَحِمَ أَهْلَ الذُّلِّ وَالْمَسْكَنَةِ . وَخَالَطَ أَهْلَ الْفِقْهِ وَالْحِكْمَةِ . طُوْبٰى لِمَنْ طَابَ كَسْبُهُ وَصَلَحَتْ سَرِيْرَتُهُ وَكَرُمَتْ عَلَانِيَتُهُ وَعَزَلَ عَنِ النَّاسِ شَرَّهُ. طُوْبٰى لِمَنْ عَمِلَ بِعِلْمِهِ وَأَنْفَقَ الْفَضْلَ مِنْ مَالِهِ وَأَمْسَكَ الْفَضْلَ مِنْ قَوْلِهِ . المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۴۶۱۶ ، و رقم الحديث ۴۶۱۵ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۷۷۸۳ ، شعب الايمان رقم الحديث ۳۱۱۶ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۶۲۳ باب في الترغيب في التواضع ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۷۷۰۱ ، كنزالعمال رقم الحديث ۴۳۵۸۲ ، الترغيب والترهيب للمنذري ۳/ ۵۵۸ .

(۲) السنن الكبرى للنسائي كِتَابُ الْمَوَاعِظِ رقم الحديث ۱۱۸۵۲ ، الترغيب والترهيب لقوام السنّة رقم الحديث ۶۴۴ ، التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج۱ ص ۱۰۷ رقم الحديث ۸۰ ، صلاح الأمة ج۷ ص ۳۸۸ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱۵۱ . و رواه ابن المبارك في الزهد ۱/ ۱۳۲ ، و ابوداؤد في الزهد ص ۲۸۶ ، وابن حجر العسقلاني في الامالي المطلقة ص ۹۶ .

(۳) قِيْلَ لِعَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ : أَيُّ الرِّجَالِ أَفْضَلُ ؟ قَالَ : مَنْ تَوَاضَعَ عَنْ قُدْرَةٍ ، وَزَهَدَ عَنْ رَغْبَةٍ . وَتَرَكَ النُّصْرَةَ عَنْ قُوَّةٍ . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۴۲ بيان فضيلة التواضع ، نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۲۶۷ التواضع .

څلور (۴) صفتونه صرف په مؤمن کې وي: چپ والې چې دا اول (او جَرړه) د عبادت ده، عاجزي، د الله تعالى ذِکر، او بَدي کمه کول. (۱)

۳ . په یو حدیث کې راځي:

أَرْبَعٌ لَا يُعْطِيهِنَّ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا مَنْ يُحِبُّ.

څلور صفتونه داسې دي چې الله تعالى يې صرف هغه خلقو ته ورکوي چې هغه ورته محبوب وي.

په هغې کې يو صفت تواضع (يعنى عاجزي) هم ده. (۲)

## د تواضع په وجه قيمتي لباس پريخودونکي د پاره د قيامت په ورځ اِعزاز

د ترمذي شريف حديث دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

مَنْ تَرَكَ اللِّبَاسَ تَوَاضُعًا لِلّٰهِ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَيْهِ دَعَاهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ حَتَّى يُخَيِّرَهُ مِنْ أَيِّ حُلَلِ الْإِيْمَانِ شَاءَ يَلْبَسُهَا. (۳)

څوک چې (فخر واله) قيمتي لباس د الله ﷻ د وړاندې عاجزي کولو په خاطر پرېږدي او دا په دې باندې قادِر هم وي نو الله تعالى به دا د قيامت په ورځ د مخلوقاتو په مخ کې

---

(۱) تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين للسمرقندي ج ۱ ص ۲۱۳ بَابُ حِفْظِ اللِّسَانِ.

(۲) عَنْ أَبِي قَاسِمٍ. قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ شُبْرُمَةَ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: أَلَا أُحَدِّثُكَ بِحَدِيثٍ بَلَغَنِي عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ: هَاتِ فَرُبَّ حَدِيثٍ حَسَنٍ جِئْتَ بِهِ قَالَ: " أَرْبَعٌ لَا يُعْطِيهِنَّ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا مَنْ يُحِبُّ قَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ: مَا هُنَّ؟ قَالَ: اَلصَّمْتُ وَهُوَ أَوَّلُ الْعِبَادَةِ، وَالتَّوَكُّلُ عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَالتَّوَاضُعُ، وَالزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا. التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ص ۱۶۵. التوكل على الله لابن ابي الدنيا ج۱ ص ۴۸ رقم الحديث ۶، احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۴۱، الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۱۲۸.

(۳) سنن الترمذي أَبْوَابُ صِفَةِ الْقِيَامَةِ وَالرَّقَائِقِ وَالْوَرَعِ رقم الحديث ۲۴۸۱ وقال الترمذي: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۳۸۷، شعب الايمان رقم الحديث ۵۷۴۱، كنز العمال رقم الحديث ۵۷۳۳، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۰۷۲ الترغيب في ترك الترفع في اللباس تواضعا، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۵۶۳۱، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۳۷۲ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ. ووافقه الذهبي. السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۶۱۰۱.

راأوبلي او ده ته به اختیار ورکړي چې د ایمان په جوړو کې کومه جوړه دده خوښه وي هغه به واغوندي .

( یعنی الله تعالی چې د ایمان واله ؤ ته د جنت کومې جوړې ورکوي په هغې کې به ده ته اختیار ورکړې شي چې دا یې په کې ځانله خوښه کړي ) . (۱)

## ساده لباس اغوستل د کامل ایمان نښه ده

په لباس کې تواضع کول و ته د ایمان حصه ویل شوی چې دداسې خلقو ایمان کامل وي .

۱ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي :

اَلْبَذَاذَةُ مِنَ الْإِيْمَانِ . (۲)

په لباس کې تواضع د ایمان نخه ده .

( په بعضې احادیثو کې دا مذکوره جُمله نبي علیه السلام درې پېرې ذکر کړی ) .

۲ . په ابوداؤد شریف کې دا حدیث داسې ذکر دی چې یو ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو د دوی د وړاندې د دُنیا تذکره کوله ، نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

أَلَا تَسْمَعُوْنَ ، أَلَا تَسْمَعُوْنَ ، إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيْمَانِ ، إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيْمَانِ . يَعْنِي التَّقَحُّلَ .

آیا تاسو نه آورئ ؟ آیا تاسو نه آورئ ( یعنی په غور باندې یې واورئ ) چې په لباس کې تواضع د ایمان نخه ده ، په لباس کې تواضع د ایمان نخه ده .

---

(۱) امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ ددې معنی داسې کړی :

وَمَعْنَى قَوْلِهِ " حُلَلِ الْإِيْمَانِ " : يَعْنِيْ مَا يُعْطَى أَهْلُ الْإِيْمَانِ مِنْ حُلَلِ الْجَنَّةِ . سنن الترمذي في تشريح الحديث المذكور .

(۲) سنن ابن ماجة كِتَابُ الزُّهْدِ بَابُ مَنْ لَا يُؤْبَهُ لَهُ رقم الحديث ۴۱۱۸ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۹۱ ، و رقم الحديث ۷۸۸ ، المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۱۸ ، شعب الايمان رقم الحديث ۶۰۵۱ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۶۲۲ .

اَلْبَذَاذَةُ : رثاثة الهيئة. أراد التواضع في اللباس وترك التبجح به. شرح محمد فؤاد عبد الباقي على سنن ابن ماجة .

یعنې ساده ژوند تیرول او هر وخت زیب و زینت نه کول د ایمان نخه ده. (۱)

**مطلب**: ددې مذکوره احادیثو مطلب دادی چې ساده کپړې اَغوستل، د فخر د کپړو نه ځان ساتل، او د ډیر زینت نه ځان ساتل د ایمان والهٔ اخلاق دي، او دا نخه ددې ده چې ددې کس ایمان کامل دی. (۲)

## یو توَهم دفع کول

د مذکوره احادیثو مطلب دا ندی چې ګني انسان به هیڅ صفائي نه کوي، بلکه مطلب یې دادی چې د صفائي کولو سره سره به ساده لِباس اغوندي، ځکه خیرَني کپړې اغوستل یا بَبَر خِیرَن سَر ګرځیدل شریعت نه خوَښوي، بلکه په اسلام کې د صفائي ډیر اهتمام راغلی:

الله تعالی صفائي کوونکي خلق خوَښوي. (۳)

---

(۱) عَنْ أَبِي أُمَامَةَ رضي الله عنه، قَالَ: ذَكَرَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا عِنْدَهُ الدُّنْيَا. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « أَلَا تَسْمَعُوْنَ. أَلَا تَسْمَعُوْنَ، إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيْمَانِ. إِنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيْمَانِ » يَعْنِي التَّقَحُّلَ. سنن ابی داؤد كِتَابُ التَّرَجُّلِ رقم الحديث ۴۱۶۱، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۷۸۹، شعب الايمان رقم الحديث ۶۰۵۱، شرح السنة للبغوي ج۱۲ ص۴۵، مشكاة المصابيح كتاب اللباس اَلْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۳۳۵(۴۲)، كنز العمال رقم الحديث ۵۷۲۱، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۰۷۴۰(۳) الترغيب في ترک الترفع في اللباس تواضعًا...

(۲) (مِنَ الْإِيْمَانِ): أَيْ مِنْ كَمَالِ أَهْلِهِ. قَالَ التُّوْرِبِشْتِيُّ: يُقَالُ رَجُلٌ بَذُّ الْهَيْئَةِ أَيْ رَثُّ اللِّبْسَةِ. وَالْمُرَادُ مِنَ الْحَدِيْثِ أَنَّ التَّوَاضُعَ فِي اللِّبَاسِ وَالتَّوَقِّيَ عَنِ الْفَائِقِ فِي الزِّيْنَةِ مِنْ أَخْلَاقِ أَهْلِ الْإِيْمَانِ، وَالْإِيْمَانُ هُوَ الْبَاعِثُ عَلَيْهِ. (أَنَّ الْبَذَاذَةَ مِنَ الْإِيْمَانِ): كَرَّرَهُ لِلتَّأْكِيْدِ. فَفِيْهِ اخْتِيَارُ الْفَقْرِ وَالْكَسْرِ. فَلُبْسُ الْخَلَقِ مِنَ الثِّيَابِ مِنْ خُلُقِ أَهْلِ الْإِيْمَانِ بِالْكِتَابِ. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج۷ ص ۲۷۸۲ في تشريح حديث ۴۳۳۵(۴۲).
(إِنَّ الْبَذَاذَةَ): البذاذة رثاثة الهيئة وترک ما يدخل في باب الزينة. يقال: رجل بذ الهيئة وباذ الهيئة أي رث اللبسة، وفي هيئته بذاذة. شرح المشكاة للطيبي ج۹ ص ۲۹۰۱.

(۳) په قرآن کريم کې ذکر دي، ﴿ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ﴾ ترجمه: بیشکه الله جل جلاله توبه کوونکي او ځان پاک لرونکي خلق خوښوي. البقرة آيت ۲۲۲.

صفائي نيم ايمان دى . (١)

الله تعالى ښائست كوونكي خلق خوښوي . (٢)

نبي عليه السلام هغه كس بَد اُوګڼړل چې بَبَر سَر او خيرَنې جامې يې وى :

د ابوداؤد شريف حديث دى : حضرت جابر بن عبدالله ﷺ فرمايي چې مونږ ته رسولُ الله ﷺ تشريف راوړو نو يو كس يې اُوليد چې پَراګنده حالت يې ؤ ، او د سَر ويښتان يې بَبَر وو نو رسولُ الله ﷺ اوفرمايل : أَمَا كَانَ يَجِدُ هٰذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ شَعْرَهُ ؟

آيا ده داسې څيز نه موندلو چې خپل ويښتان يې ورباندې صحيح (او صفا) كړي وى ؟

بيا نبي ﷺ يو بل كس اُوليد چې خيرَنې كپړې يې اغوستې وى نو وې فرمايل :

أَمَا كَانَ هٰذَا يَجِدُ مَاءً يَغْسِلُ بِهِ ثَوْبَهُ ؟

آيا ده اُوبه نه موندلى چې خپلې كپړې يې ورباندې وينځلې وى ؟ . (٣)

نبي ﷺ په ده باندې اِنكار ځكه اوكړو چې خيرَن والي سره انسان ذليله كيږي . (۴)

---

(١) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلطُّهُوْرُ شَطْرُ الْإِيْمَانِ ... صحيح مسلم كِتَابُ الطَّهَارَةِ بَابُ فَضْلِ الْوُضُوءِ رقم الحديث ١(٢٢٣) . رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : صفائي نيم ايمان دى .

(٢) نبي عليه السلام فرمايي : إِنَّ اللهَ جَمِيْلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ .... صحيح مسلم كِتَابُ الْإِيْمَانِ بَابُ تَحْرِيْمِ الْكِبْرِ وَبَيَانِهِ رقم الحديث ١٣٧(٩١) ، و رقم الحديث ١٣٩(٩١) ، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْكِبْرِ رقم الحديث ١٩٩٩ ، مسند احمد رقم الحديث ٣٩٤٧ . بيشكه الله تعالى جَمِيل دى او جمال خوښوي .

(٣) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنهما . قَالَ : أَتَانَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى رَجُلًا شَعِثًا قَدْ تَفَرَّقَ شَعْرُهُ فَقَالَ : أَمَا كَانَ يَجِدُ هٰذَا مَا يُسَكِّنُ بِهِ شَعْرَهُ ؟ وَرَأَى رَجُلًا آخَرَ وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ وَسِخَةٌ. فَقَالَ : أَمَا كَانَ هٰذَا يَجِدُ مَاءً يَغْسِلُ بِهِ ثَوْبَهُ ؟ . سنن ابي داود كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي غَسْلِ الثَّوْبِ وَفِي الْخُلْقَانِ رقم الحديث ۴٠٦٢ قال الالباني : صحيح . سنن النسائي رقم الحديث ٥٢٣٦ تسكين الشعر ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ٥۴٨٣ ذِكْرُ الْأَمْرِ بِالْإِحْسَانِ إِلَى الشَّعْرِ لِتَزْيِيْنِهِ وَلِتَطْيِيْبِ الثِّيَابِ، إِذِ اللَّطَافَةُ مِنَ الدِّيْنِ . المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ٧٣٨٠ ، وقال الحاكم : هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . ووافقه الذهبي .

(۴) قَالَ الطِّيْبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : أَنْكَرَ عَلَيْهِ بَذَاذَتَهُ لِمَا يُؤَدِّيْ إِلَى ذِلَّتِهِ. وَأَمَّا قَوْلُهُ: " اَلْبَذَاذَةُ مِنَ الْإِيْمَانِ " فَإِثْبَاتُ التَّوَاضُعِ لِلْمُؤْمِنِ. كَمَا جَاءَ: اَلْمُؤْمِنُ مُتَوَاضِعًا وَلَيْسَ بِذَلِيْلٍ. وَلَهُ الْعِزَّةُ دُوْنَ التَّكَبُّرِ". ←←←←←←←←←←

ددې حديث نه معلومه شوه چې اسلام د صفائي حکم کوي.

دا ضروري نده چې لباس دې قيمتي وي بلکه ضروري داده چې لباس صفا وي اګرچې د کم قيمت واله وي.

**قيمتي لباس اغوستل هم جائز دی :** چاته چې الله ﷻ مال و دولت ورکړې وي نو قيمتي لباس اغوستل هم جائز دی، ځکه:

۱ . نبي عليه السلام ته يو مالدار صحابي راغلې ؤ چې کمزورې کپړې (جامې) يې اغوستې وې، نو نبي عليه السلام ورته اوفرمايل:

أَلَكَ مَالٌ؟ آيا مال درسره شته؟

هغه ووېل: آو (راسره شته). پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمايل: کوم قِسمه مال درسره دی؟ هغه ووېل: الله تعالى راته اُوښان، چيلۍ، آسونه او غلامان راکړي.

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل:

فَإِذَا آتَاكَ اللهُ مَالًا فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللهِ عَلَيْكَ وَكَرَامَتِهِ.

چې کله الله تعالى تاته مال درکړې دی نو په کار ده چې د الله ﷻ د نِعمت او د هغه د عزت آثر په تا باندې اُوليدې شي.(۱)

۲ . د ترمذي شريف حديث دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي:

---

←←← وَمِنْهُ حَدِيثُ أَبِي بَكْرٍ رضي الله عنه: "إِنَّكَ لَسْتَ مِمَّنْ يَفْعَلُهُ خُيَلَاءَ" قُلْتُ: اَلصَّوَابُ أَنَّ الْبَذَاذَةَ وَهِيَ الْقَنَاعَةُ بِالدُّونِ مِنَ الثِّيَابِ لَا تُنَافِي النَّظَافَةَ الَّتِي وَرَدَ: أَنَّهَا مِنَ الدِّينِ، وَلَا تَسْتَلْزِمُ الْمَذَلَّةَ عِنْدَ أَرْبَابِ الْيَقِينِ. كَمَا أَشَرْنَا إِلَيْهِ فِيمَا تَقَدَّمَ. وَاللهُ أَعْلَمُ. مرقاة المفاتيح ج۷ ص۲۷۸۴ في تشريح حديث ۴۳۵۱، شرح المشكاة للطيبي ج۹ ص۲۹۰۲ في تشريح حديث ۴۳۵۱.

(۱) عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَوْبٍ دُونٍ، فَقَالَ: «أَلَكَ مَالٌ؟» قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: «مِنْ أَيِّ الْمَالِ؟» قَالَ: قَدْ آتَانِيَ اللهُ مِنَ الْإِبِلِ، وَالْغَنَمِ، وَالْخَيْلِ، وَالرَّقِيقِ، قَالَ: «فَإِذَا آتَاكَ اللهُ مَالًا فَلْيُرَ أَثَرُ نِعْمَةِ اللهِ عَلَيْكَ، وَكَرَامَتِهِ». سنن ابي داود كِتَاب اللِّبَاسِ بَابٌ فِي غَسْلِ الثَّوْبِ وَفِي الْخُلْقَانِ رقم الحديث ۴۰۶۳ قال الالباني: صحيح، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۹۴۸۵، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۶۱۰.

إِنَّ اللهَ يُحِبُّ أَنْ يَرٰى أَثَرَ نِعْمَتِهٖ عَلٰى عَبْدِهٖ. (۱)

بيشكه الله تعالى دا خوښوي چې په خپل بنده باندې د خپل نعمت آثر اوګوري.

**فائده** : ددې حديث نه علماؤ دا مسئله معلومه کړې چې کله يو چا ته الله تعالى د دُنيا د نعمتونو نه يو نِعمت ورکړې وي نو په کار ده چې دده په بدن باندې د هغې آثر ښکاره شي، مثلاً يو کس مالدار وي نو د خپل حالت موافق کپړې (جامې) دې آغوندي ددې د پاره چې د الله تعالى د نِعمت اِظهار هم اوشي او غريبانانو ته هم پته اُولږي چې دا مالدار دى نو د زکوة او صدقاتو د پاره به ده ته رجوع کوي. (۲)

په " شامي " کې ذکر دي چې د الله ﷻ د نِعمت ظاهرولو په خاطر باندې ښائسته جامې اچول مستحب دي.

په فتاوى هنديه کې ذکر دي چې کله په انسان کې د ښائسته کپړو په اچولو سره تکبّر نه پيدا کيږي يعنى د کپړو اچولو نه مخکې يې چې څنګه حالت وي هماغه شان حالت يې د ښائسته کپړو اچولو نه پس هم وي په زړه کې يې څه تکبّر نه راځي نو بيا ښائسته کپړې

(۱) سنن الترمذي أَبْوَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ إِنَّ اللهَ تَعَالٰى يُحِبُّ أَنْ يَرٰى أَثَرَ نِعْمَتِهٖ عَلٰى عَبْدِهٖ رقم الحديث ۲۸۱۹ وقال الترمذي: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. مسند احمد رقم الحديث ۸۱۰۷، و رقم الحديث ۱۹۹۳۴، مشكاة المصابيح كِتَابُ اللِّبَاسِ رقم الحديث ۴۳۵۰(۴۷)، رياض الصالحين ج۱ ص ۲۶۱ رقم الحديث ۱/۸۰۱.

وفي رواية: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَتَصَدَّقُوْا فِيْ غَيْرِ سَرَفٍ وَلَا مَخِيلَةٍ إِنَّ اللهَ تَعَالٰى يُحِبُّ أَنْ يَرٰى أَثَرَ نِعْمَتِهٖ عَلٰى عَبْدِهٖ. المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۷۱۸۸، وقال الحاكم: هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ، ووافقه الذهبي. الآداب للبيهقي رقم الحديث ۴۸۸، شعب الايمان رقم الحديث ۴۲۵۱، و رقم الحديث ۵۷۸۵، و رقم الحديث ۵۷۸۶.

(۲) په مرقاة کې د مشکوة شريف د حديث تشريح داسې ذکر ده: (إِنَّ اللهَ يُحِبُّ أَنْ يُرٰى): بِصِيغَةِ الْمَجْهُولِ أَيْ يُبْصَرَ وَيَظْهَرَ (أَثَرُ نِعَمِهِ) : أَيْ إِحْسَانِهِ وَكَرَمِهِ تَعَالٰى (عَلٰى عَبْدِهٖ) : فَمِنْ شُكْرِهَا إِظْهَارُهَا، وَمِنْ كُفْرَانِهَا كِتْمَانُهَا. قَالَ الْمُظْهِرُ: يَعْنِي إِذَا آتَى اللهُ عَبْدًا مِنْ عِبَادِهٖ نِعْمَةً مِنْ نِعَمِ الدُّنْيَا فَلْيُظْهِرْهَا مِنْ نَفْسِهٖ. بِأَنْ يَلْبَسَ لِبَاسًا يَلِيقُ بِحَالِهٖ، لِإِظْهَارِ نِعْمَةِ اللهِ عَلَيْهِ، وَلِيَقْصِدَهُ الْمُحْتَاجُونَ لِطَلَبِ الزَّكَاةِ وَالصَّدَقَاتِ. وَكَذٰلِكَ الْعُلَمَاءُ يُظْهِرُوا عِلْمَهُمْ لِيَسْتَفِيدَ النَّاسُ مِنْهُمْ. مرقاة المفاتيح ج۷ ص ۲۷۸۳ كِتَابُ اللِّبَاسِ في تشريح حديث ۴۳۵۰

اچول مباح دي. (١)

امام غزالي رحمه الله هم په احياء العلوم کې دا خبره په تفصيل سره ذکر کړې. (٢)

**ښائسته کپړې اچول د تواضع خلاف ندي**: دا ياد ساتئ چې ښائسته کپړې اچول د

(١) إعْلَمْ أَنَّ الْكِسْوَةَ مِنْهَا فَرْضٌ وَهُوَ مَا يَسْتُرُ الْعَوْرَةَ وَيَدْفَعُ الْحَرَّ وَالْبَرْدَ ...... وَمُسْتَحَبٌّ: وَهُوَ الزَّائِدُ لِأَخْذِ الزِّينَةِ وَ إِظْهَارِ نِعْمَةِ اللهِ تَعَالَى قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ « إِنَّ اللهَ يُحِبُّ أَنْ يَرَى أَثَرَ نِعْمَتِهِ عَلَى عَبْدِهِ ». وَمُبَاحٌ وَهُوَ الثَّوْبُ الْجَمِيلُ لِلتَّزَيُّنِ فِي الْأَعْيَادِ وَالْجُمَعِ وَمَجَامِعِ النَّاسِ لَا فِي جَمِيعِ الْأَوْقَاتِ لِأَنَّهُ صَلَفٌ وَخُيَلَاءُ. وَ رُبَّمَا يَغِيظُ الْمُحْتَاجِينَ فَالتَّحَرُّزُ عَنْهُ أَوْلَى. وَمَكْرُوهٌ وَهُوَ اللُّبْسُ لِلتَّكَبُّرِ.

وَفِي الْهِنْدِيَّةِ عَنِ السِّرَاجِيَّةِ: لُبْسُ الثِّيَابِ الْجَمِيلَةِ مُبَاحٌ إِذَا لَمْ يَتَكَبَّرْ. وَتَفْسِيرُهُ أَنْ يَكُونَ مَعَهَا كَمَا كَانَ قَبْلَهَا. رد المحتار على الدر المختار ج٦ ص ٣٥١ كِتَابُ الْحَظْرِ وَالْإِبَاحَةِ فَصْلٌ فِي اللُّبْسِ

په الموسوعة الفقهية کې ذکر دي: قَالَ فِي الْفَتَاوَى الْهِنْدِيَّةِ: وَالْحَاصِلُ أَنَّ كُلَّ مَا كَانَ عَلَى وَجْهِ التَّكَبُّرِ يُكْرَهُ. وَ إِنْ فُعِلَ لِحَاجَةٍ أَوْ ضَرُورَةٍ لَا، أَيْ: لَا يُكْرَهُ. الفتاوى الهندية ٥ / ٣٥٩ طبع دار إحياء التراث العربي بيروت

عَلَى هٰذَا فَإِنَّ مَنْ لَبِسَ الثِّيَابَ الْجَمِيلَةَ الرَّفِيعَةَ مِنْ غَيْرِ نِيَّةِ التَّكَبُّرِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ. قَالَ الشَّوْكَانِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: وَهٰذَا مِمَّا لَا خِلَافَ فِيهِ فِيمَا أَعْلَمُ. نيل الأوطار ٢ / ١٠٩، وانظر: الفتاوى البزازية لابن البزاز الكردري ٦ / ٣٦٨ مطبوعة بهامش الفتاوى الهندية، والفتاوى الهندية ٥ / ٣٣٦.

بَلْ إِنَّ لُبْسَ رَفِيعِ الثِّيَابِ مِنْ غَيْرِ نِيَّةِ التَّكَبُّرِ، بَلْ بِنِيَّةِ أَنْ يَكُونَ لَهُ وَقْعٌ فِي قُلُوبِ سَامِعِيهِ وَهُوَ يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ كَانَ مُثَابًا. قَالَ الشَّوْكَانِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: إِنَّ الْأَعْمَالَ بِالنِّيَّاتِ. فَلُبْسُ الْمُنْخَفِضِ مِنَ الثِّيَابِ تَوَاضُعًا وَكَسْرًا لِسَوْرَةِ النَّفْسِ الَّتِي لَا يُؤْمَنُ عَلَيْهَا مِنَ التَّكَبُّرِ إِنْ لَبِسَتْ غَالِيَ الثِّيَابِ مِنَ الْمَقَاصِدِ الصَّالِحَةِ الْمُوجِبَةِ لِلْمَثُوبَةِ مِنَ اللهِ. وَلُبْسُ الْغَالِي مِنَ الثِّيَابِ عِنْدَ الْأَمْنِ عَلَى النَّفْسِ مِنَ التَّسَامِي الْمَشُوبِ بِنَوْعٍ مِنَ التَّكَبُّرِ لِقَصْدِ التَّوَصُّلِ بِذٰلِكَ إِلَى تَمَامِ الْمَطَالِبِ الدِّينِيَّةِ مِنْ أَمْرٍ بِمَعْرُوفٍ أَوْ نَهْيٍ عَنْ مُنْكَرٍ عِنْدَ مَنْ لَا يَلْتَفِتُ إِلَّا إِلَى ذَوِي الْهَيْئَاتِ لَا شَكَّ أَنَّهُ مِنَ الْمُوجِبَاتِ لِلْأَجْرِ. لٰكِنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَقْيِيدِ ذٰلِكَ بِمَا يَحِلُّ لُبْسُهُ شَرْعًا. نيل الأوطار ٢ / ١١٠. الموسوعة الفقهية الكويتية ج ٣٤ ص ١٦٧ حرف الكاف كبر

(٢) إعلم أن الثوب الجديد ليس من ضرورته أن يكون من التكبر في حق كل أحد في كل حال. وهو الذي أشار إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وهو الذي عرفه رسول الله صلى الله عليه وسلم من حال ثابت بن قيس إذ قال إني امرؤ حبب إلي من الجمال ما ترى ... احياء علوم الدين ج ٣ ص ٣٥٦ كتاب ذم الكبر والعجب

تواضع خلاف ندي، او دا په تکبّر کې ندي داخلی، بلکه تکبّر ديته وايي چې انسان د حق نه انکار کوي او نور و خلقو ته په سپک نظر گوري. (۱)

## په تواضع کې شرافت دی

۱. حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه فرمايي:

وَجَدْنَا الْكَرَمَ فِي التَّقْوٰى، وَالْغِنٰى فِي الْيَقِيْنِ، وَالشَّرَفَ فِي التَّوَاضُعِ. (۲)

مونږ عزت په تقوٰی کې اُوموند، مالداري مو په يقين کې اُومونده، او شرافت مو په تواضع (عاجزۍ) کې اُوموند.

۲. ابراهيم بن شَيبان رَحِمَهُ اللهُ فرمايي:

اَلشَّرَفُ فِي التَّوَاضُعِ، وَالعِزُّ فِي التَّقْوٰى، وَالْحُرِّيَّةُ فِي الْقَنَاعَةِ. (۳)

شرافت په عاجزۍ کې دی، عزت په تقوٰی کې دی، او آزادي په قناعت کې ده.

## تواضع د نېک بختيا علامه ده

ذوالنون مصري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د نېک بَختۍ درې علامې دي:

---

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: « لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ كِبْرٍ » قَالَ رَجُلٌ: إِنَّ الرَّجُلَ يُحِبُّ أَنْ يَكُوْنَ ثَوْبُهُ حَسَنًا وَنَعْلُهُ حَسَنَةً. قَالَ: « إِنَّ اللهَ جَمِيْلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ. اَلْكِبْرُ بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ ». صحيح مسلم كِتَابُ الْإِيْمَانِ بَابُ تَحْرِيْمِ الْكِبْرِ وَبَيَانِهِ رقم الحديث ۱۴۷(۹۱)، و رقم الحديث ۱۴۹(۹۱)، سنن الترمذي أَبْوَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْكِبْرِ رقم الحديث ۱۹۹۹، مسند احمد رقم الحديث ۳۹۴۷، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۴۶۶، الاداب للبيهقي رقم الحديث ۴۸۶، شعب الايمان رقم الحديث ۵۷۸۲، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۵۸۷ باب الكبر ووعيد المتكبرين، مشكوة المصابيح بَابُ الْغَضَبِ وَالْكِبْرِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ رقم الحديث ۵۱۰۸(۵)، كنزالعمال رقم الحديث ۷۷۴۷، صحيح الترغيب والترهيب رقم الحديث ۲۹۱۲(۲۳).

(۲) احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۴۳ بيان فضيلة التواضع، نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۲۶۷ التواضع.

(۳) مدارج السالكين بين منازل اياک نعبد واياک نستعين لابن القيم ج ۲ ص ۳۱۴ فَصْلٌ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلٌ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ. نضرة النعيم ج ۴ ص ۱۲۶۸ التواضع. موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۱۶۹

۱ . څومره چې دده عُمر زياتيږي نو حِرص يې کميږي .

۲ . څومره يې چې مال زياتيږي نو سخاوت يې زياتيږي .

۳ . وَمَتٰى مَازِيْدَ فِيْ قَدْرِهِ زِيْدَ فِيْ تَوَاضُعِهِ .

څومره چې دده مرتبه زياتيږي نو همدومره يې تواضع هم زياتيږي . (۱)

## په کوم نِعمت باندې چې شکريه اَداء شي او تواضع ورباندې اُوشي نو د هغې نه انسان ته نفع رسي

حضرت کعب رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي : په کوم بنده باندې چې الله تعالى په دُنيا کې څه نِعمت اوکړي او دا ورباندې د الله تعالى شکريه اَداء کړي او الله ﷻ ته تواضع اوکړي نو الله تعالى ده ته ددې نِعمت فائده په دُنيا کې ورکوي او په آخرت کې ورله په دې سره درجې اُوچتوي .

او په کوم بنده باندې چې الله تعالى په دُنيا کې څه نِعمت اوکړي او دا ورباندې د الله تعالى شکريه اَداء نکړي او د الله ﷻ د وړاندې تواضع اونکړي نو الله تعالى په دُنيا کې ده ته ددې نِعمت نه نفع نه ورکوي .... (۲)

(۱) قَالَ ذُوالنّون المصري رَحِمَهُ اللّٰهُ : علامة السعادة ثلاث : متى ما زِيدَ في عُمره نقص من حرصه ، ومتى ما زيد في ماله زيد في سخائه ، وَمَتٰى مَازِيْدَ فِيْ قَدْرِهِ زِيْدَ فِيْ تَوَاضُعِهِ . صلاح الأمة في علوّ الهمة ج ۷ ص ۳۸۷ علو الهمّة في التواضع .

(۲) عَنْ كَعْبٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ . قَالَ: مَا أَنْعَمَ اللهُ عَلىٰ عَبْدٍ مِنْ نِعْمَةٍ فِي الدُّنْيَا فَشَكَرَهَا لِلّٰهِ . وَتَوَاضَعَ بِهَا لِلّٰهِ إِلَّا أَعْطَاهُ نَفْعَهَا فِي الدُّنْيَا وَيَرْفَعُ اللهُ لَهُ بِهَا دَرَجَةً فِي الْآخِرَةِ ، وَمَا أَنْعَمَ اللهُ عَلَى الْعَبْدِ مِنْ نِعْمَةٍ فِي الدُّنْيَا فَلَمْ يَشْكُرْ لِلّٰهِ . وَلَمْ يَتَوَاضَعْ بِهَا لِلّٰهِ إِلَّا مَنَعَهُ اللهُ نَفْعَهَا فِي الدُّنْيَا . وَفَتَحَ لَهُ طَبَقًا مِنَ النَّارِ . يُعَذِّبُهُ إِنْ شَاءَ . أَوْ يَتَجَاوَزَ عَنْهُ . الشكر لابن ابي الدنيا ص ۶۴ رقم ۱۸۹ ، حلية الاولياء وطبقات الاصفياء ج۶ ص ۴۳ ، نضرة النعيم ج۴ ص ۱۲۶۸ التواضع ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۴۲ .

## چې د نعمت باوجود تواضع نه کوي نو دا به د قيامت په ورځ دده د پاره وَبال وي

حضرت قتادة رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

مَنْ أُعْطِيَ مَالًا أَوْ جَمَالًا وَثِيَابًا وَعِلْمًا ثُمَّ لَمْ يَتَوَاضَعْ كَانَ عَلَيْهِ وَبَالًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ .

چاته چې مال، جَمال، (ښه) کپړې او عِلم ورکړې شو او بيا ده تواضع اونکړه نو دا به د قيامت په ورځ په ده باندې وَبال وي. (۱)

## حِکمت او پُوهه په هغه زړه کې وي چې په هغې کې تواضع وي

حضرت عيسىٰ عليه السلام فرمايي : فصل په نرم ځای کې رازَرغونيږي ، په سخت کانړي باندې نه رازَرغونيږي ، همدغه شان حِکمت (پوهه) هم د هغه چا په زړه کې وي چې په هغه کې تواضع (عاجزي) وي ، د متکبّر سړي په زړه کې حِکمت نه وي ، آيا تاسو نه گورئ چې څوک پاس چَت طرف ته سَر اُوچتوي نو دې خپل سَر زخمي کوي ، او څوک چې خپل سَر ښکته کړي نو سَر يې محفوظ وي. (۲)

مولانا رُوم رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

هر کجا پستی است آب آنجا رود ✡ هر کجا مشکل جواب آنجا رود

چيرته چې تِيټ (او ژُوَر) ځای وي نو اُوبه هلته ځي ، او چيرته چې مشکل وي نو جواب هلته ځي .

---

(۱) التواضع والخمول لابن ابي الدنيا بَابُ التَّوَاضُعِ ص ۱۱۹ رقم ۹۰ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱۵۱ اقوال السلف والعلماء في التواضع .

(۲) قَالَ الْمَسِيحُ عَلَيْهِ السَّلَامُ : إِنَّ الزَّرْعَ يَنْبُتُ فِي السَّهْلِ وَلَا يَنْبُتُ عَلَى الصَّفَا . كَذٰلِكَ الْحِكْمَةُ تَعْمَلُ فِي قَلْبِ الْمُتَوَاضِعِ وَلَا تَعْمَلُ فِي قَلْبِ الْمُتَكَبِّرِ . أَلَا تَرَوْنَ أَنَّ مَنْ شَمَخَ بِرَأْسِهِ إِلَى السَّقْفِ شَجَّهُ . وَمَنْ طَأْطَأَ أَظَلَّهُ وَأَكَنَّهُ . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۴۵ كتاب ذم الكبر والعجب بيان حقيقة الكبر و آفته ، نضرة النعيم ج ۱۱ ص ۵۳۷۵ الكبر والعجب .

## هر کس په خپل ځان باندې اُوچت ګڼړل تواضع ده

۱ . حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

اَلتَّوَاضُعُ أَنْ تَخْرُجَ مِنْ مَنْزِلِك فَلَا تَلْقَى مُسْلِمًا إِلَّا رَأَيْتَ لَهُ عَلَيْك فَضْلًا . (۱)

تواضع داده چې ته د کور نه اُووځې او کوم مسلمان چې د تا سره مخامخ کيږي نو ته هغه په خپل ځان باندې اَفضل ګڼړې .

۲ . ابوزيد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : مَا دَامَ الْعَبْدُ يَظُنُّ أَنَّ فِي الْخَلْقِ مَنْ هُوَ شَرٌّ مِنْهُ فَهُوَ مُتَكَبِّرٌ .

تر څو پورې چې بنده دا ګمان کوي چې په مخلوقاتو کې دده نه بَدترين کس بل شته نو دا کس مُتکَبّر دی .

بيا ده ته ووېلې شو : انسان متواضِع ( عاجزي کوونکې ) کله جوړيږي ؟

ده ورته ووېل : چې کله انسان د خپل ځان د پاره څه مقام او مرتبه نه ګوري نو داسې کس متواضع دی ، او څومره چې انسان خپل رَب او خپل ځان پيژني نو همدومره به په ده کې تواضع زياته وي . (۲)

## د تواضع جَرړه : '' د غريبانانو د وړاندې عاجزي کول ''

عبدالله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي : د تواضع جَرړه داده چې کوم کس د تا نه دُنياوي اعتبار

---

(۱) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج ۱ ص ۱۲۹ خَاتِمَةٌ فِي فَضَائِلِ التَّوَاضُعِ .

خَرَجَ الْحَسَنُ وَيُونُسُ وَأَيُّوبُ يَتَذَاكَرُونَ التَّوَاضُعَ . فَقَالَ لَهُمُ الْحَسَنُ : « وَهَلْ تَدْرُونَ مَا التَّوَاضُعُ ؟ اَلتَّوَاضُعُ : أَنْ تَخْرُجَ مِنْ مَنْزِلِكَ فَلَا تَلْقَ مُسْلِمًا إِلَّا رَأَيْتَ لَهُ عَلَيْكَ فَضْلًا » . التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ۱ ص ۱۵۲ ص ۱۱٦ بَابُ التَّوَاضُعِ ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۴۲ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ۷ ص ۳۸٦ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۱۵۱ .

(۲) قَالَ أَبُو يَزِيدَ: مَا دَامَ الْعَبْدُ يَظُنُّ أَنَّ فِي الْخَلْقِ مَنْ هُوَ شَرٌّ مِنْهُ فَهُوَ مُتَكَبِّرٌ . فقيل له : فمتى يكون متواضعًا قال إذا لم ير لنفسه مقامًا ولا حالًا وتواضع كل إنسان على قدر معرفته بربه عز وجل ومعرفته بنفسه . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۴۳ كتاب ذم الكبر والعجب بيان فضيلة التواضع ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۱۵۷ . وهكذا في صفة الصفوة ج ۲ ص ۳۰۵ ، و حلية الاولياء ج ۱۰ ص ۳٦ .

سره کم وي ( یعنی هغه غریب وي او ته مالداریی ) ته د هغه د وړاندې عاجزي اوکړې، ددې د پاره چې ته هغه ته دا اُوښایې چې ستا د پاره په هغه باندې د دُنیاوي مال و دولت په وجه څه فضیلت نشته.

او کوم کس چې په تا باندې دُنیاوي اِعتبار سره پورته وي ( یعنی هغه مالدار وي او ته غریب یې ) ته د هغه د وړاندې ځان اُوچت حساب کړې ددې د پاره چې ته هغه ته دا اُوښایې چې ستا د پاره د دُنیاوي مال و دولت په وجه په ما باندې څه فضیلت نشته. (١)

## چې په چا کې تواضع نه وي نو تکبر په کې پیدا کیږي

تواضع دومره اَهم صفت دی چې دا په چا کې نه وي نو د هغه نه د فرعون او نمرود په شان متکبّره کس جوړیږي، ځکه چې تواضع په کې نه وي نو خامخا به یې په زړه کې تکبّر وي، او تکبّر خو د ټولو باطني بیماریو جرړه ده.

( **نوټ** : د تکبّر تفصیلي موضوع په څوارلسم جلد کې تیره شوی . ابوالشمس عفي عنه )

## د تواضع فائدې

د تواضع ډیرې فائدې دي، یو څو په کې دادي ؛

١. د مؤمنانو په اخلاقو کې تواضع بهترین صفت دی، او د الله ﷻ د محبت دلیل دی.

٢. د تواضع په وجه انسان ته د الله ﷻ رَضا او جنت حاصلیږي.

٣. د تواضع په وجه انسان د الله ﷻ او مخلوقاتو په نزد مُقرّب کرځي.

٤. د تواضع په وجه انسان ته د دواړو جهانو سعادت نصیبه کیږي.

٥. الله تعالی د متواضعینو سره محبت کوي، د دوی حفاظت کوي، او په دوی باندې خپله مهرباني کوي.

---

(١) قَالَ عَبْدُاللهِ ابْنُ الْمُبَارَكِ رَحِمَهُ اللهُ: رَأْسُ التَّوَاضُعِ أَنْ تَضَعَ نَفْسَكَ عِنْدَ مَنْ هُوَ دُوْنَكَ فِيْ نِعْمَةِ الدُّنْيَا حَتّٰى تُعْلِمَهُ أَنْ لَيْسَ لَكَ بِدُنْيَاكَ عَلَيْهِ فَضْلٌ، وَأَنْ تَرْفَعَ نَفْسَكَ عَمَّنْ هُوَ فَوْقَكَ فِيْ نِعْمَةِ الدُّنْيَا حَتّٰى تُعْلِمَهُ أَنَّهُ لَيْسَ لَهُ بِدُنْيَاهُ عَلَيْكَ فَضْلٌ. التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ١ ص ١٥٢ ص ١١٩ رقم ٩٨ بَابُ التَّوَاضُعِ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ١ ص ١٥١ . احياء علوم الدين ج٣ ص ٣٤٢ ، صلاح الامة في علو الهمة ج ٧ ص ٣٨٥ .

٦. متواضعين به د قيامت په ورځ د الله ﷻ د عذاب نه په آمن وي.

٧. تواضع دليل دى په دې باندې چې د انسان آخره خاتمه به ښه وي، او دا دليل د خوش اخلاقۍ د انسان دى.

٨. د تواضع په وجه د انسان په مال او عُمر كې بركت پيدا كيږي. (١)

٩. د تواضع په وجه د انسان مرتبه اُوچتيږي، او عزت يې زياتيږي، بيا حق ته غاړه ږدي

١٠. په تواضع كې د دين او دُنيا دواړو مصلحت دى، په دې سره د خلقو د مينځ نه نَفرتونه ختميږي، او مينه محبت پيدا كيږي.

١١. په تواضع سره د شريف په شرافت كې نور هم زيادت راځي، او انسان اُوچتې مرتبې ته رسي. (٢)

---

(١) مِنْ فَوَائِدِ التَّوَاضُعِ : ١. اَلتَّوَاضُعُ خُلُقٌ كَرِيْمٌ مِنْ أَخْلَاقِ الْمُؤْمِنِيْنَ. وَ دَلِيْلُ مَحَبَّةِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ. ٢. وَ هُوَ طَرِيْقٌ مُوْصِلٌ إِلَى مَرْضَاةِ اللهِ وَإِلَى جَنَّتِهِ ٣. وَ هُوَ السَّبِيْلُ إِلَى الْقُرْبِ مِنَ اللهِ وَمِنْ ثَمَّ الْقُرْبِ مِنَ النَّاسِ ٤. اَلتَّوَاضُعُ عُنْوَانُ سَعَادَةِ الْعَبْدِ فِي الدَّارَيْنِ ٥. يُحِبُّ اللهُ الْمُتَوَاضِعِيْنَ وَيَكْلَؤُهُمْ بِرِعَايَتِهِ وَيُحِيْطُهُمْ بِعِنَايَتِهِ ٦. اَلْمُتَوَاضِعُوْنَ آمِنُوْنَ مِنْ عَذَابِ اللهِ يَوْمَ الْفَزَعِ الْأَكْبَرِ ٧. وَهُوَ دَلِيْلٌ عَلَى حُسْنِ الْخَاتِمَةِ وَعَلَى حُسْنِ الْخُلُقِ ٨. اَلتَّوَاضُعُ يُؤَدِّيْ إِلَى حُصُوْلِ النَّصْرِ وَالْبَرَكَةِ فِي الْمَالِ وَالْعُمْرِ. نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ٤ ص ١٢٦٨ التواضع.

(٢) لا شك أن التواضعَ مِن أخلاقِ الصالحين والفضلاء، ويكفي أنّ النبيّ صلّى الله عليه وسلم كان من سماته التواضع. فمن آثاره: ١. أن التواضع يرفع المرءَ قدرًا ويعظم له خطرًا ويزيده نبلا. روضة العقلاء ص ٦١. ٢. التواضع يؤدي إلى الخضوع للحق والانقياد له ٣. التواضع هو عين العز. لأنه طاعة لله و رجوع إلى الصواب ٤. يكفي المتواضع محبة عباد الله له ورفع الله إياه. الأخلاق الإسلامية لحسن المرسي ص ٢٠٩ بتصرف ٥. التواضع فيه مصلحة الدّين والدّنيا، ويزيل الشحناء بين الناس، ويريح من تعب المباهاة والمفاخرة. فتح الباري لابن حجر بتصرف ١١/ ٣٤١. ٦. التواضع يكسب السّلامة ويورث الألفة ويرفع الحقد ويذهب الصد ٧. ثمرة التواضع المحبّة كما أن ثمرة القناعة الراحة، وإن تواضع الشريف يزيد في شرفه كما أن تكبّر الوضيع يزيد في ضعته. روضة العقلاء ص ٦١. ٨. التواضع يؤلف القلوب، ويفتح مغاليقها، ويجعل صاحبه جليل القدر، رفيع المكانة. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ١ ص ١٥٣ التواضع من آثار خلق التواضع.

# د تواضع صورتونه

د تواضع څو غټې صورتونه دي ، زه يې ذرته خلاصه رانقل کوم :

## ۱ . انسان به ځان د نورو نه عاجزه ګنړي

د تواضع اول صورت دادى چې انسان به ځان د نورو نه عاجزه ګنړي ، يعنى دا ګمان به نه کوي چې " زه د نورو خلقو نه ډير پوهه ، مُتّقِي او پرهيزګار يم " بلکه نور به د ځان نه افضل ګنړي ، او په مسلمانانو کې به بل کس د ځان نه بَدتر نه ګنړي .

همدارنګې خپل نيک اعمال به هم ډير لوي نه ګنړي ، ځکه ډير کرتې انسان غټ عمل اوکړي خو بيا هم د څه عوارضو په وجه قبول نشي .

همدارنګې د بل مسلمان نصيحت ته به هم غوږ نيسي ، او د نورو عيبونه به نه بيانوي . (۱)

## ۲ . د عِلم زده کولو په وخت عاجزي کول

د عِلم زده کولو په وخت هم تواضع په کار ده ، ځکه دا بغير د تواضع او تکليفونو نه نه حاصليږي .

---

(۱) صور التواضع : تواضع الإنسان في نفسه : ويكون ذلك بألّا يظن أنه أعلم من غيره، أو أتقى من غيره أو أكثر ورعًا من غيره ، أو أكثر خشية لله من غيره ، أو يظن أنّ هناك من هو شر منه، ولا يظن أنّه قد أخذ صكاً بالغفران!! وآخر بدخول الجنة !!! لأنّ القلوب بين إصبعين من أصابع الرحمن يقلّبها كيف يشاء. يقول الله تعالى: وَاعْلَمُوا أَنَّ اللهَ يَحُولُ بَيْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهِ وَأَنَّهُ إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ [ الأنفال آية ۲۴ ]..... ومن التواضع ألا يعظم في عينك عملك، إن عملت خيرًا، أو تقربت إلى الله تعالى بطاعة ، فإنّ العمل قد لا يقبل، وَإِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ [ المائدة آية ۲۷ ] . ولهذا قال بعض السلف: لو أعلم أنّ الله قبل مني تسبيحة لتمنيتُ أن أموت الآن! ومن ذلك التواضع عندما تسمع نصيحة، فإن الشيطان يدعوك إلى ردها، وسوء الظن بالناصح ... فالمستكبر صاحب نفسية متعاظمة لا يكاد يمدح أحدًا أو يذكره بخير، وإن احتاج على ذلك شفعه بذكر بعض عيوبه . أمّا إن سمع من يذكره ببعض عيوبه فهيهات أن ينصاع أو يلين .... موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۷ التواضع صور التواضع

اصمعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي: مَنْ لَمْ يَحْتَمِلْ ذُلَّ التَّعَلُّمِ سَاعَةً بَقِيَ فِيْ ذُلِّ الْجَهْلِ أَبَدًا. (۱)
څوک چې د زده کړې ذِلّت لږ وخت برداشت نکړي نو ټول عُمر به د جهالت په ذِلّت کې پاتې وي.

بل دا چې په چا کې تواضع څومره زياته وي نو همدومره به دده عِلم هم زيات وي؛ ځکه اوبه په هغه ځای کې جمع کيږي چې کوم ځای ښکته وي، نو عِلم هم هغه سِينې ته زر مُنتقِل کيږي په کومه کې چې تواضع زياته وي. (۲)

## ۳. د خلقو سره تواضع کول

د مسلمان شان دادی چې دا به د خلقو سره په معاشره کې يو ځای ژوند تيروي او هغوی به نېکو کارونو طرف ته رابلي، خو ددې د پاره دا ضروري ده چې دا به د خلقو سره تواضع کوي؛ ځکه د عامو خلقو طبعيت داسې جوړ شوی چې دوی د هغه چا خبره مني چې په هغه کې تواضع وي.

او په چا کې چې تکبّر وي نور خلق ورته سپَک ښکاري او خپل ځان اُوچت ګڼړي نو که دا خلقو ته حق خبره کوي خو بيا هم دده خبرې ته غوږ نه نيسي.

همدارنګې د مسلمانانو د پاره دا ضروري ده چې دا د معاشرې هرې طبقې واله خلقو سره کيني، د هغوی سره د هغوی د فَهم مطابق خبره اوکړي، او د غريبانانو سره هم په

---

(۱) موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۷ التواضع صور التواضع، أدب الدنيا والدين للماوردي ص ۶۷ فصل في أدب المتعلم.

دا خبره په تفسير ابن كثير كې داسې ذكر ده، مَنْ لَمْ يَصْبِرْ عَلَى ذُلِّ التَّعَلُّمِ سَاعَةً، بَقِيَ فِيْ ذُلِّ الْجَهْلِ أَبَدًا. تفسير ابن كثير ج ۳ ص ۴۷۵ الاعراف آية في للتربيع آية ۱۴۶.

څوک چې د زده کړې په ذِلّت باندې لږ ساعت صبر اونکړي نو ټول عُمر به د جهالت په ذِلّت کې پاتې وي.

(۲) التواضع في التعلم: قال الشافعي: لا يطلب هذا العلم أحد بالملك وعزة النفس فيفلح. لكن من طلبه بذلة النفس، وضيق العيش، وخدمة العلم، وتواضع النفس أفلح. وعن الأصمعي قال: من لم يحمل ذل التعلم ساعة، بقي في ذل الجهل أبداً. قال عبد الله بن المعتز: المتواضع في طلب العلم أكثرهم علماً، كما أن المكان المنخفض أكثر البقاع ماء. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۷ التواضع صور التواضع.

مجلس کې کيني.(۱)

## ٤ . د هَمزولو سره تواضع کول

د خپلو هَمزولو سره هم تواضع په کار ده ، ځکه ډير خلق د خپلو هَمزولو سره حسد کوي ، د هغوی نه په مال و دولت کې د مخکې کيدو کوشش کوي ، په هغوی باندې ځان اُوچت ګنړي ، په هغوی کې عېبونه رااُوباسي او د هغوی په تکليف باندې خوشحاليږي حالانکه دا ټولې خبرې د شريعت خلاف دي ، لهذا د همزولو خيرخواهي پکار ده او د هغوی سره تواضع پکار ده.(۲)

## ۵. د ځان نه ښکته مرتبې واله کس سره تواضع کول

مسلمان به د ځان نه ښکته مرتبې واله کس سره تواضع کوي که هغه دده نه په عُمر کې کم وي او يا په مرتبه کې ورنه کم وي خو هغه ته به سپَک نه ګوري ؛ ځکه کيدې شي چې هغه کس الله ﷻ ته ډير مُقرّب وي او د هغه ګناهونه دده نه کم وي ، تر دې چې که يو کس فاسق اوګوري نو په هغه باندې به هم تکبّر نه کوي ، بلکه په خپل حالت باندې به د الله تعالی

---

(۱) التواضع مع الناس : فالمسلم يخالط الناس ويدعوهم إلى الخير، وإلى الأخلاق الإسلامية. ومن طبيعة الناس أنهم لا يقبلون قول من يعظم نفسه ويحقرهم، ويرفع نفسه ويضعهم. وإن كان ما يقوله حقا. بل عليه أن يعرف أن جميع ما عنده هو فضل من الله. فالمسلم المتواضع هو الذي لا يعطي لنفسه حظاً في كلامه مع الآخرين. ومن تواضع المسلم مع الناس أن يجالس كل طبقات المجتمع، ويكلم كلا بما يفهمه. ويجالس الفقراء والأغنياء. يقول تعالى: ﴿ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَا تُطِعْ مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ﴾ [ الكهف آية ۲۸]. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۷ التواضع صور التواضع .

(۲) التواضع مع الأقران : ومن التواضع أن يتواضع المرء مع أقرانه. وكثيرًا ما تثور بين الأقران والأنداد روحُ المنافسة والتحاسد ، و ربما استعلى الإنسان على قرينه، و ربما فرح بالنيل منه. والحط من قدره وشأنه، وعيبه بما ليس فيه، أو تضخيم ما فيه، وقد يظهر ذلك بمظهر النصيحة والتقويم وإبداء الملاحظات، ولو سمى الأمور بأسمائها الحقيقة لقال: الغيرة. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۸ التواضع صور التواضع .

شکر اداء کوي چې زه يې د هغه ګناه نه ساتلې يم په کومه کې چې دا بل کس اَخته دی ، او ورسره ورسره به دا سوچ هم کوي چې کيدې شي زما په دې نېک عمل کې رِيا يا تکبر وي چې ددې په وجه به دا نېک عمل بَرباد شي او کيدې شي په هغه فاسق کې عاجزي او د الله ﷻ نه يَره وي د خپلې ګناه نه توبه اُوباسي نو د هغه ټول ګناهونه به معاف شي . (۱)

د مسلم شريف حديث دی رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې يو سړي اوفرمايل :

وَاللهِ لَا يَغْفِرُ اللهُ لِفُلَانٍ. قَسَم په الله ، چې فلانکي کس ته به الله تعالى مغفرت اونکړي . الله تعالى اوفرمايل :

مَنْ ذَا الَّذِيْ يَتَأَلَّى عَلَيَّ أَنْ لَا أَغْفِرَ لِفُلَانٍ ، فَإِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لِفُلَانٍ ، وَأَحْبَطْتُ عَمَلَكَ .

دا څوک چې په ما باندې قَسَم خوري چې زه به فلانکي ته مغفرت نه کوم ، بيشکه ما فلانکي ته مغفرت اوکړو او ستا عمل مې برباد (ضائع) کړو . (۲)

## ۶ . د مالدار د پاره هم تواضع په کار ده

چاته چې الله تعالى مال و دولت ورکړي ، قوّت او بچي ورکړي نو ده ته هم په دې نِعمتونو باندې د شکريې اداء کولو سره سره تواضع په کار ده ، ځکه ډير خلق د همدې مال و

---

(۱) تواضع الإنسان مع من هو دونه : ومن التواضع: التواضع مع من هو دونك. فإذا وجدت أحدًا أصغر منك سنًا . أو أقل منك قدرًا فلا تحقره . فقد يكون أسلم منك قلبًا . أو أقل منك ذنبًا. أو أعظم منك إلى الله قربًا. حتى لو رأيت إنسانًا فاسقًا وأنت يظهر عليك الصلاح فلا تستكبر عليه. واحمد الله على أن نجاك مما ابتلاه به. وتذكر أنه ربما يكون في عملك الصالح رياء أو عجب يحبطه. وقد يكون عند هذا المذنب من الندم والانكسار والخوف من خطيئته ما يكون سببًا في غفران ذنبه. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۸ التواضع صور التواضع .

(۲) عَنْ جُنْدَبٍ ؓ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ : وَاللهِ لَا يَغْفِرُ اللهُ لِفُلَانٍ. وَإِنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ: مَنْ ذَا الَّذِيْ يَتَأَلَّى عَلَيَّ أَنْ لَا أَغْفِرَ لِفُلَانٍ. فَإِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لِفُلَانٍ، وَأَحْبَطْتُ عَمَلَكَ . أَوْ كَمَا قَالَ. صحيح مسلم كتاب البِرِّ وَالصِّلَةِ وَالآدَابِ بَابُ النَّهْيِ عَنْ تَقْنِيطِ الإِنْسَانِ مِنْ رَحْمَةِ اللهِ تَعَالَى رقم الحديث ۱۳۷ (۲۶۲۱) ، مشكاة المصابيح باب الاستغفار والتوبة الفصل الاول رقم الحديث ۲۳۳۴(۱۲) ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۷۱۱ ، المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث ۱۶۷۹ ، شعب الايمان رقم الحديث ۶۲۶۱ ، كنز العمال رقم الحديث ۷۹۰۱ .

دولت په وجه په تکبّر کې مبتلاء کیږي.

همدارنګې چاته چې الله تعالی بل څه نعمت ورکړې وي نو دا به هم د شکریې اَداء کولو سره سره تواضع کوي ؛ ځکه الله تعالی په دې باندې قادر دی چې دده نه دا ټول نِعمتونه واپس واخلي. (۱)

انسان به دا سوچ کوي چې د دُنیا حالات بدلیږي رابدلیږي ، الله تعالی فرمايي :

﴿ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ﴾. (۲)

ترجمه : او دا ورځې مونږ د خلقو په مینځ کې اَړوُو راړَوُو . (یعنی د خلقو حالات وار په وار بدلوو).

نو که الله تعالی دده نه دا ټول نعمتونه واخلي نو بیا به خالي لاس پاتې شي ، هیڅ به ورسره نه وي ، لهذا د مالدار د پاره هم تواضع په کار ده. (۳)

---

(۱) تواضع صاحب المال: فإن مَن مَنّ الله عليهم بالمال، والجاه، والقوة، والنفوذ، أحوج الخَلْقِ إلى خُلُقِ التواضع. لأنّ هذه النعم مدعاة إلى الكبر والفخر. وما ابتليت الأمة بمصيبة الكبر إلا من هؤلاء، ولو نظر صاحب المال مثلاً إلى سالف أمره، إذا ما رزق مالاً أن يشكر ربه الذي أغناه بعد فقر، وأعطاه بعد حرمان، وأشبعه بعد جوع، وأمنه بعد خوف، وأن يجعل التواضع فراشه، ودثاره، وزينته، هذا هو الشكر العملي الحقيقي، فكن أخي عثماني المنهج، ولا تكن قاروني!! أما أن يتكبر وهذا حاله، فلا أدري بما يوصف هذا الإنسان، وقد بدلت لديه المفاهيم والموازين. وكذلك يقال لصاحب كل نعمة أن عليك بالتواضع، فلربما دارت عليك الأيام، وبدل الحال. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۸ التواضع صور التواضع .

(۲) آل عمران آية ۱۴۰ .

(۳) وهذا شيء يجب أن يكون مركوزًا في فطرة كلّ إنسان، وخاصة إذا كان بالمرء تيه وعجب، عليه أن يعلم أن الأيام دول، يوم لك ويوم عليك، فلا ينبغي للعاقل أن يفرح بدنيا أقبلت عليه ومن ثم يشمخ بها، ويتعالى بنعم الله على عباد الله والله يقول: وَتِلْكَ الْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ . فمن تذكر دائمًا هذه السنة الكونية خضع لإخوانه ولعامة الناس، وخفض جناحه لهم، لأنه ربما تقلبت به الدنيا، فيذل بعد أن كان عزيزًا، ويفتقر بعد أن كان غنيًا، ويعلو عنه من كان يترفع عليه، فلم الكبر والتيه والعجب؟! . موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۶۰ التواضع صور التواضع .

## ۷ . مشر به د خپلو ماتحتو سره تواضع کوي

د يو قائِد (مشر) د پاره دا ضروري ده چې دا به د خپلو ماتَحتو آفرادو سره تواضع کوي نو بيا به دا په خپلو کارګُنانو کې محبوب وي او هغوی به په آخلاق او محبت سره دده تابعداري کوي . الله رب العزت نبي عليه السلام ته فرمايي :

﴿ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴾ . (۱)

ترجمه : ( اې پيغمبره ! ) ته خپلې مَتې هغه مؤمنانو ته ښکته کړه کوم چې ستا تابعداري کوي .

لهذا قائد (مشر) به د خپلو ماتَحتو د رأى احترام کوي ، او د هغوی سره به مشوره کوي نو بيا به کامياب وي . (۲)

**د تواضع نور صورتونه او علامات** : د تواضع يوه علامه دا هم ده چې انسان به (د تکبّر په وجه) د ځان پسې شاته نور خلق تلل نه خوښوي ، يعنی دا به نه خوښوي چې د تکبر په وجه دا مخکې ځانله روان وي او نور خلق دده پسې شاته روان وي ، بلکه يا خو د خپلو ملګرو سره يو ځای تلل په کار دي او يا مکمل داسې ځان له تلل په کار دي چې دده پسې شاته بل هيڅوک نه وي . (۳)

---

(۱) الشعراء آية ۲۱۵ .

(۲) تواضع القائد مع الأفراد : القائد النّاجح هو الذي يخفض جناحه للأفراد الذين هم تحته ، لأنّه كلما تواضع لهم وخفض لهم جناحه كان أقرب إلى نفوسهم ، وكان أمره لهم محببًا إليهم . فهم يطيعونه عن حب وإخلاص . يقول تعالى : وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ . ومن مظاهر هذا التواضع عدم الاستبداد بالرأي والإنفراد باتخاذ القرار ، وذلك أنّ استفراغ ما عند الأفراد من آراء وأفكار لاشك أنّ ذلك يفتح أبوابًا كانت مغلقة على القادة . والاستماع إليها والنزول عن الرأي إليها - إذا كانت صحيحة - تقلل من نسبة الخطأ في القرار ، وببركة الشورى قد يجبر الله ما بها من قصور . موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱۵۹

(۳) مَا رُئِيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مُتَّكِئًا قَطُّ ، وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ . سنن ابي داؤد كِتَابُ الأَطْعِمَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ مُتَّكِئًا رقم الحديث ۳۷۷ قال الالباني : صحيح . هيڅ کله نبي عليه السلام داسې ندې ليدل شوی چې تکيه وهلو سره خوراک کوي ، او نه داسې ليدل شوی چې دوه کسانو ته مخکې وي ←←←←←← ←

د تواضع يوه علامه دا هم ده چې انسان به د مريضانو معذورينو او غريبانانو خلقو سره د کيناستلو نه کرکه نه کوي . (۱)

همدارنګې څوک چې مخامخ دده د تقوى او نيکئ تذکره کوي نو دا به يې بده ګڼي . (يعنى مخامخ به خپل صفت نه خوښوي) . (۲)

او د هر چا دعوت به قبلوي . (۳)

## په عبادت کې هم تواضع په کار ده

انسان چې کوم عبادات يا نور نيک اعمال کوي نو دا به په خپل ځان باندې د الله ﷻ اِحسان ګڼي چې هغه راته ددې توفيق راکړى .

همدارنګې د هر چا د وړاندې به اوس ددې تذکره نه کوي چې : " ما داسې لوى عبادت اوکړو او زه ډير لوى بزرګ يم " .

---

←←← وَحُكِيَ أَنَّ قَوْمًا مَشَوْا خَلْفَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ : أَبْعِدُوا عَنِّي خَفْقَ نِعَالِكُمْ فَإِنَّهَا مُفْسِدَةٌ لِقُلُوبِ نَوْكَى الرِّجَالِ . وَمَشَوْا خَلْفَ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه فَقَالَ : اِرْجِعُوا فَإِنَّهَا زِلَّةٌ لِلتَّابِعِ وَفِتْنَةٌ لِلْمَتْبُوعِ . ادب الدنيا والدين للماوردي ج۱ ص ۲۳۹ اَلْبَابُ الْخَامِسُ أَدَبُ النَّفْسِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ فِي مُجَانَبَةِ الْكِبْرِ وَالْإِعْجَابِ .

(۱) ومن التواضع : أن لا يتوقى من مجالسة المرضى والمعلولين كِبرًا منه وترفعًا . عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ فَأَدْخَلَهُ مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ، ثُمَّ قَالَ: «كُلْ بِسْمِ اللهِ، ثِقَةً بِاللهِ، وَتَوَكُّلًا عَلَيْهِ» . سنن الترمذي أَبْوَابُ الْأَطْعِمَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ مَعَ الْمَجْذُومِ رقم الحديث ۱۸۱۷ ، سنن ابي داؤد رقم الحديث ۳۹۲۵ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ الطِّبِّ بَابٌ فِي الطِّيَرَةِ رقم الحديث ۳۹۲۵ ، سنن ابن ماجة رقم ۳۵۴۲ . صلاح الامة ج ۷ ص ۳۸۳ .

(۲) قال عبدالله بن عمر رضي الله عنهما : مِنْ عَلَامَةِ تَوَاضُعِكَ أَنْ تَكْرَهُ ذِكْرَكَ بِالْبِرِّ وَالتَّقْوَى بَيْنَ النَّاسِ . صلاح الامة ج ۷ ص ۳۸۷ .

(۳) نبي عليه السلام فرمايي : لَوْ دُعِيتُ إِلَى ذِرَاعٍ أَوْ كُرَاعٍ لَأَجَبْتُ . وَلَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ ذِرَاعٌ أَوْ كُرَاعٌ لَقَبِلْتُ . صحيح البخاري كِتَابُ الْهِبَةِ وَفَضْلِهَا وَالتَّحْرِيضِ عَلَيْهَا بَابُ الْقَلِيلِ مِنَ الْهِبَةِ رقم الحديث ۲۵۶۸ ، و رقم الحديث ۵۱۷۸ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَنْ أَجَابَ إِلَى كُرَاعٍ .

که چيرته زه د حيوان د ليچي (لاس) يا پُنډۍ غوښې طرف ته اوبللې شم نو زه به يې ضرور قبول کړم ، او که چيرته ماته د حيوان د ليچي يا پُنډۍ غوښه هديه راکړې شي نو زه به يې خامخا قبول کړم .

د عربي مشهوره محاوره ده: صَلِّ الحَائِكُ رَكْعَتَيْنِ وَانْتَظَرَ الوَحْيَ.

یو جُولا دوه رکعته نفلي مونځ اوکړو بیا د وَحي په انتظار ناست ؤ.

ځکه ده دا ګمان کولو چې ګني ډیر غټ کار مې اوکړو اوس به راباندې د الله ﷻ د طرفه وَحي راشي.

لهذا دعبادت کولو نه پس د تکبّر په وجه هر چاته ددې تذکره نده پکار، خو ورسره ورسره دا عبادت هم سپَک ګنړل ندي پکار، بلکه په دې به د الله تعالی شکر اداء کوي او ورسره به استغفار هم وایي چې که کوم کمې په کې راغلې وي هغه به په دې استغفار سره پوره شي.

## بار بار د عبادت توفیق ملاویدل د " مقبولیت علامه " ده

چې کله یو کس ته الله تعالی بار بار د عبادت توفیق ورکوي نو دا علامه ددې ده چې مخکینې عبادت یې قبول شوی.

حاجي امداد الله مهاجر مکي رَحِمَهُ اللهُ ته یو کس ووېل: حضرت! زه ډیرو ورځو نه مونځ کوم پته نه لږي چې د الله ﷻ په نزد به مقبول وي او که نه؟

حاجي صاحب ورته ووېل: کله چې تاته الله ﷻ په دویم ځل د عبادت کولو توفیق درکړي نو دا غټه علامه ددې ده چې اَولنې عبادت الله ﷻ قبول کړی ګني تاته به یې بیا دعبادت توفیق نه ؤ درکړی.

مولانا رُومي رَحِمَهُ اللهُ په مَثنوي کې د یو بزرګ واقعه لیکلی چې د ډیر وخت نه یې مونځونه کول، روژې یې نیولی او ذِکر یې کولو، یوه ورځ یې په زړه کې خیال راغی چې زه خو د ډیر وخت نه دا عبادت کوم خو د الله ﷻ د طرفه هیڅ جواب نه راځي، پته نه لږي چې دا قبول شوی او که نه؟

آخر خپل شیخ ته ورغی او هغه ته یې دا ووېل: حضرت! زه د ډیر وخت نه عبادت کوم خو د الله ﷻ د طرفه هیڅ جواب نه راځي.

شیخ ورته ووېل: دا تاته چې بیا بیا د عبادت توفیق ملاویږي دا په خپله د الله ﷻ د طرفه

جواب دی ؛ ځکه که د الله ﷻ په نزد دا مقبول نه وی نو بیا به یې درته د نور عبادت توفیق نه درکولو ، لهذا د الله ﷻ د طرفه د بل جواب ضرورت نشته . (۱)

# تواضع پیدا کوونکي اسباب

بعضې اَسباب داسې دي چې د هغې په وجه په انسان کې تواضع پیدا کیږي ، زه یې درته اِجمالاً ذکر کوم :

۱. **تقوی ( د الله ﷻ نه یره )** : په چا کې چې تقوی راشي نو په ده کې تواضع پیدا کیږي ، د الله ﷻ د غضب نه محفوظ کیږي ، تکبّر او نور خراب صفتونه ورنه ختمیږي .

۲. **چې د ځان د پاره څنګه معامله خوښوي هماغه شان د بل سره کول** : هر انسان دا غواړي چې نور خلق دې زما د وړاندې عاجزي کوي ، د ماسره دې نرمي کوي ، او په ما دې تکبّر نه کوي نو همدغه شان ده له هم په کار دي چې د نورو سره تواضع او نرمي اوکړي. دا خو هیڅ کله نشي کیدی چې دا دې په نورو باندې تکبّر کوي او نور دې دده سره د تواضع معامله اوکړي . نو چې انسان دا سوچ اوکړي نو په دې سره په ده کې تواضع پیدا کیږي .

۳. **انسان دې خپل اَصل ته نظر اوکړي** : انسان دې خپل اَصل ته نظر اوکړي چې زه په اصل کې خاوره وُوم ، بیا د نُطفې په شکل وُوم ، بیا د تشو مِتیازو د لارې نه دوه ځل رااُوتې یم ، چې پیدا شوم نو په هیڅ څیز باندې نه پوهیدم ، الله تعالی راله عقل ، پوهه او قوّت راکړو ، نو بیا ولې تکبّر اوکړم ؟

۴. **سخت مرضونه او تکلیفونه رایادول** : انسان دې دا سوچ اوکړي چې که په ما باندې سخت مرضونه یا تکلیفونه راشي نو زه خو بیا هیڅ نشم کولی بلکې د بل کس محتاج به شم ، نو زه ولې تکبّر اوکړم ؟ نو چې انسان د الله ﷻ د سختو اِمتحاناتو تصوّر کوي نو په ده کې پخپله تواضع پیدا کیږي .

۵. **زړه د رُوحاني بیماریانو نه صفا کول** : انسان به خپل زړه د هغه رُوحاني بیماریانو نه صفا کوي د کومو په وجه چې تواضع ختمیږي او تکبّر پیدا کیږي ، لکه : حسَد ، عُجب ،

(۱) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۵۶ .

تکبّر، غُرور او نورې باطني بيمارياني؛ ځکه چې کله زړه د رُوحاني بيماريانو نه صفا وي نو ټول وجود د شريعت موافق وي، تواضع او نور ښائسته صفتونه په کې پيدا کيږي. (۱)

---

(۱) الأسباب التي تعين على التواضع: . تقوى الله: وهذا من أول الأمور والأسباب التي تعين المرء على التواضع، وتردعه عن أخلاق أهل السفه والكبر. لأن التقوى وقاية من كل ما يغضب الله تعالى، وفعل جميع الطاعات التي أمر الله تعالى بها. فالكبر كبيرة من الكبائر ولا يتصف بها أهل التقوى. والتواضع من محاسن الأخلاق وحتماً ولابد أنه يكون في أهل التقوى .. ۲. عامل الناس بما تحب أن يعاملوك به: مما لا شك فيه أن المرء يحب أن يتواضع له الناس، ويخفضوا جناحهم له، ويعاملوه برفق ولين. ويبغض من ناحية أخرى، من يغلظ له. ومن يتكبر عليه بأي صورة من الصور ولو كان المرء جرابًا حشي كبرًا لتألم وتأفف أيضًا ممن يتكبر عليه. فلم الكيل بمكيالين؟!! ۳. التفكر في أصل الإنسان: إذا عرف الإنسان نفسه، علم أنه أذل من كل ذليل، ويكفيه نظرة في أصل وجوده بعد العدم من تراب، ثم من نطفة خرجت من مخرج البول، ثم من علقة، ثم من مضغة. فقد صار شيئًا مذكورًا، بعد أن كان لا يسمع ولا يبصر. ولا يغني شيئًا. فقد ابتدأ بموته قبل حياته. وبضعفه قبل قوته. وبفقره قبل غناه. وقد أشار الله سبحانه وتعالى إلى هذا بقوله:
﴿ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ﴾ [عبس آية ۱۸، ۱۹].
ثم امتن عليه بقوله: ﴿ ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ﴾ [عبس آية ۲۰]. وبقوله: ﴿ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴾ [الإنسان آية ۲]. لقد أحياه الله بعد موت، وأحسن تصويره، وأخرجه إلى الدنيا، فأشبعه وأرواه، وكساه وهداه، وقواه. فمن هذا بدايته، فأي وجه لتكبره وفخره وخيلائه؟! قال ابن حبان رحمه الله: وكيف لا يتواضع من خلق من نطفة مذرة، وآخره يعود إلى جيفة قذرة، وهو بينهما يحمل العذرة. روضة العقلاء ونزهة الفضلاء ص ٦١.
٤. تذكر الأمراض والأوجاع والمصائب: وما أجمل التواضع واللين!! فلو رأيت أهل البلاء بشتى صنوفهم للمست التواضع يعلو وجوههم وأبدانهم! انظر إلى من غلبه المرض، واستوثق منه الوجع، وهده الألم. انظر إليه إذا جاء الزائر يزوره! وطالع محياه، تسترى فاقة وكسرة وحاجة إلى كل إنسان! فهو يأنس بهذا!! ويشد على يد هذا!! ويطلب الدعاء من آخر! ويتشوف إلى رنين الهاتف فلربما سمع كلمة تشد من أزره أو ربما سعد بدعوة مجابة أو... أليس في هذا الحال درس لكل من اختال يوماً أو تطاول حينًا، أو تكبر زمنًا؟! بلى والله.
٥. طهير القلب: القلب إذا صلح صلح العمل كله بإذن الله تعالى فعلى من أراد اكتساب خلق التواضع أن يطهر قلبه من الأمراض التي عصفت به من حقد وحسد وعجب وغرور لأن القلب هو موطن هذه الأمراض كلها. دروس إيمانية في الأخلاق الإسلامية ص ٥٧ لخميس السعيد - بتصرف. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ١٦٠.

# د تواضع پیدا کولو آسانه طریقه

علماؤ د تواضع پیدا کولو آسانه طریقه دا خودلې چې انسان ته الله تعالی کوم نِعمتونه ورکړي دا دې دا گمان اوکړي چې زه ددې مستحق نهووم خو الله تعالی راله په خپل فضل و کرم سره دا راکړي دي. خپل ځان دې په نورو باندې اُوچت نه گنړي، او هر وخت دې د الله تعالی د نِعمتونو شکریه اَداء کوي نو په دې سره به په ده کې تواضع پیدا شي.

# په تواضع او ذِلت کې فرق

په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چې په تواضع او ذِلت کې غټ فرق دی: هغه دا چې تواضع دیته وایي چې کله یو انسان ته د الله ﷻ او د هغه د صفاتو په باره کې عِلم حاصل شي، خپل ځان او خپل عیبونه اُوپیژني نو ددې په وجه چې په ده کې کوم صفت پیدا شي دا تواضع ده، بیا ددې په وجه ددې کس زړه د الله ﷻ د وړاندې عاجزي اِختیار کړي، په بندگانو یې رَحم پیدا شي، خپل ځان په نورو اُوچت نه گنړي، بلکه نور خلق د خپل ځان نه افضل گنړي او د هغوی د حقوقو لحاظ ساتي. د تواضع دا صفت الله تعالی خپل محبوب او مُقرّب خلقو ته ورکوي.

او ذِلت دیته وایي چې یو کس د خپل شهوَت پوره کولو او د ځانه د څه طمعې د پاره د هغه د وړاندې ځان ذلیله کوي نو دا ذِلت دی، دا د الله ﷻ په نزد ناخوښه صفت دی. (۱)

---

(۱) وَالْفَرْقُ بَيْنَ التَّوَاضُعِ وَالْمَهَانَةِ (أَوِ الذُّلِّ): أَنَّ التَّوَاضُعَ يَتَوَلَّدُ مِنْ بَيْنِ الْعِلْمِ بِاللهِ سُبْحَانَهُ وَمَعْرِفَةِ أَسْمَائِهِ وَصِفَاتِهِ وَنُعُوتِ جَلَالِهِ وَتَعْظِيمِهِ وَمَحَبَّتِهِ وَإِجْلَالِهِ. وَمِنْ مَعْرِفَتِهِ بِنَفْسِهِ وَتَفَاصِيلِهَا وَعُيُوبِ عَمَلِهَا وَآفَاتِهَا. فَيَتَوَلَّدُ مِنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ خُلُقٌ هُوَ التَّوَاضُعُ وَهُوَ انْكِسَارُ الْقَلْبِ لِلّٰهِ وَخَفْضُ جَنَاحِ الذُّلِّ وَالرَّحْمَةِ لِعِبَادِهِ فَلَا يَرَى لَهُ عَلَى أَحَدٍ فَضْلًا وَلَا يَرَى لَهُ عِنْدَ أَحَدٍ حَقًّا بَلْ يَرَى الْفَضْلَ لِلنَّاسِ عَلَيْهِ وَالْحُقُوقَ لَهُمْ قِبَلَهُ. وَهٰذَا خُلُقٌ إِنَّمَا يُعْطِيهِ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ مَنْ يُحِبُّهُ وَيُكْرِمُهُ وَيُقَرِّبُهُ. وَأَمَّا الْمَهَانَةُ (الذُّلُّ) فَهِيَ الدَّنَاءَةُ وَالْخِسَّةُ وَبَذْلُ النَّفْسِ أَوِ ابْتِذَالُهَا فِي نَيْلِ حُظُوظِهَا وَشَهَوَاتِهَا. كَتَوَاضُعِ السَّفِلِ فِي نَيْلِ شَهَوَاتِهِمْ وَتَوَاضُعِ طَالِبِ كُلِّ حَظٍّ لِمَنْ يَرْجُوْ نَيْلَ حَظِّهِ مِنْهُ. فَهٰذَا كُلُّهُ ضِعَةٌ لَا تَوَاضُعٌ وَاللهُ سُبْحَانَهُ يُحِبُّ التَّوَاضُعَ وَيُبْغِضُ الضِّعَةَ وَالْمَهَانَةَ. نضرة النعيم في مكارم اخلاق الرسول الكريم صلى الله عليه وسلم ج ۴ ص ۱۲۵۶ التواضع الفرق بين التواضع والذل والمهانة.

چا ددینه علاوه نور فرقونه هم بیان کړي.(۱)

## په تواضع او اِحساسِ کمترۍ کې فرق

بعضې بې دِینه خلق په اسلام باندې دا اعتراض کوي چې په تواضع سره په انسان کې احساسِ کمتري (مایُوسي) پیدا کیږي، او احساسِ کمتري خو خراب صفت دی.

نو دوی ته جواب دادی چې په تواضع او احساسِ کمترۍ کې ډیر غټ فرق دی، هغه دا چې په احساسِ کمترۍ کې د الله ﷻ نه شکایت وي، او په تواضع کې د الله ﷻ په نِعمت باندې شکریه وي.

ددې تفصیل دادی چې احساسِ کمتري (مایوسي) په انسان کې ددې په وجه پیدا کیږي چې دې دا گمان کوي چې گنې زه مستحق د ډیر څه ووم خو ماته کم راکړل شوي، یا مثلاً ماته ډیر مال پکار وُ خو لږ راکړل شوی، یا زما ښائسته صورت پکار وُ خو زه بَدرنگ پیدا شوې یم، یا زما اُوچته مرتبه پکار وه خو ماته کمه مرتبه راکړل شوی، یا داسې نور شکایتونه د الله ﷻ نه کوي چې ددې په وجه په ده کې مایوسي او سستي پیدا شي، یا د نورو خلقو سره په نِعمتونو باندې حسد کوي، حالانکه دا خرابه بیماري ده.

ددې په مقابله کې تواضع ده. دا په انسان کې د الله ﷻ په نِعمتونو باندې شکریه اَداء کولو سره پیدا کیږي؛ ځکه دا کس دا سوچ کوي چې زه خو ددې نِعمتونو مستحق نه ووم خو بیا هم الله ﷻ راسره اِحسان اوکړو او دا نِعمتونه یې راکړل. نو د تواضع په وجه انسان مطمئِن وي، د الله ﷻ نه راضي وي، او دا ډیر ښه صفت دی.(۲)

---

(۱) الفرق بين التواضع والتذلّل: أنّ التذلل: إظهار العجز عن مقاومة من يتذلّل له. والتواضع: إظهار قدرة من يتواضع له سواء كان ذا قدرة على المتواضع أو لا. ألا ترى أنه يقال: العبدُ متواضع لخدمه أي يعاملهم معاملة من لهم عليه قدرة، ولا يقال: يتذلل لهم؛ لأنّ التذلّل إظهار العجز عن مقاومة المتذلل له وإنه قاهر وليست هذه صفة الملك مع خدمه. الفروق اللغوية لأبي هلال العسكري ص ۱۲۲. موسوعة الأخلاق الإسلامية ج۱ ص۱۴۷.

(۲) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۴۹.

# د نبي علیه السلام تواضع او عاجزي

په رسولُ الله صلی الله علیه وسلم کې ټول ښه صفات په کامِلې طریقې سره موجود وو ، په دې ښه صفاتو کې یو صفت تواضع او عاجزي هم ده ، دا صفت هم په پیغمبر علیه السلام کې په کامِلې طریقې سره موجود وُ :

دوی په خپله باندې عَبدِیت او تواضع خوښه کړې وه . (۱)

نبي علیه السلام په خپله فرمایي : آكُلُ كَمَا يَأْكُلُ الْعَبْدُ ، وَأَجْلِسُ كَمَا يَجْلِسُ الْعَبْدُ

زه داسې خوراک کوم لکه څنګه چې غلام خوراک کوي ، او داسې کینم لکه څنګه غلام کیني . (۲)

دغه وجه ده چې کله به رسولُ الله صلی الله علیه وسلم خوراک اوکړو نو د خپل لاس مبارک درې (۳) ګوتې به یې څټلې ( په کومو باندې به یې چې خوراک کړې وُ ) ، او اُمت ته یې هم دا حُکم کړی چې د خوراک په وخت کومه نوړۍ اُوغورځیږي هغه دې راواخلي ، صفا دې یې کړي او بیا دې یې اُوخوري ، او د کاسې صفا کولو حُکم یې کړی . (۳)

---

(۱) عَنْ أَبِي زُرْعَةَ ، قَالَ : وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه ، قَالَ : جَلَسَ جِبْرِيلُ عليه السلام إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ ، فَإِذَا مَلَكٌ يَنْزِلُ ، فَقَالَ جِبْرِيلُ عليه السلام : إِنَّ هٰذَا الْمَلَكَ مَا نَزَلَ مُنْذُ يَوْمِ خُلِقَ قَبْلَ السَّاعَةِ ، فَلَمَّا نَزَلَ قَالَ : يَا مُحَمَّدُ ! أَرْسَلَنِي إِلَيْكَ رَبُّكَ : أَفَمَلِكًا نَبِيًّا يَجْعَلُكَ أَوْ عَبْدًا رَسُولًا ؟ قَالَ جِبْرِيلُ عليه السلام : تَوَاضَعْ لِرَبِّكَ يَا مُحَمَّدُ . قَالَ : بَلْ عَبْدًا رَسُولًا . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۷۱۶۰ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۶۳۶۵ ، مجمع الزوائد باب في تواضعه صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۱۴۲۰۹ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۶۸۳ ، مسند البزار رقم الحديث ۹۸۰۷ .

(۲) شرح السنة للبغوي ج ۱۳ ص ۲۴۸ رقم الحديث ۳۶۸۳ . مشكوة المصابيح كتاب الفضائل والشمائل باب في أخلاقه وشمائله صلى الله عليه وسلم الفصل الثالث رقم الحديث ۵۸۳۶(۳۶) ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۴۲۱۰ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۵۷۲ .

(۳) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَكَلَ طَعَامًا لَعِقَ أَصَابِعَهُ الثَّلَاثَ ، قَالَ : وَقَالَ : « إِذَا سَقَطَتْ لُقْمَةُ أَحَدِكُمْ فَلْيُمِطْ عَنْهَا الْأَذَى وَلْيَأْكُلْهَا ، وَلَا يَدَعْهَا لِلشَّيْطَانِ » ، وَأَمَرَنَا أَنْ نَسْلُتَ الْقَصْعَةَ ، قَالَ : « فَإِنَّكُمْ لَا تَدْرُونَ فِي أَيِّ طَعَامِكُمُ الْبَرَكَةُ » . صحيح مسلم كتاب الأشربة باب استحباب لعق الأصابع والقصعة وأكل اللقمة الساقطة بعد مسح ما يصيبها من أذى ، وكراهة مسح اليد قبل لعقها رقم الحديث ۱۳۶ (۲۰۳۴) .

# نبي عليه السلام خپل ځان اوچت نه ګڼړل

**۱** : د مسلم شريف ، ابوداؤد شريف ، او ترمذي شريف حديث دی : حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې يو کس رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغی او ورته وې فرمايل :

يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ. اې په ټولو مخلوقاتو کې غوره انسانه .

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ( د تواضع او ادب په وجه ) اوفرمايل :

ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ .

دا ( خَيرُ البَرِيّة ) حضرت ابراهيم عليه السلام وُ . (۱)

نبي عليه السلام دا خبره د الله جل جلاله د وړاندې د تواضع او د حضرت ابراهيم عليه السلام د ادب په وجه اوکړه چې هغه خَيْرُ الْبَرِيَّةِ دی ، حالانکه پيغمبر عليه السلام د ټولو بني آدمو سردار دی . (۲)

**۲** . همدا رنګې يو کس نبي عليه السلام ته ووېل :

يَا مُحَمَّدُ يَا سَيِّدَنَا وَابْنَ سَيِّدِنَا، وَخَيْرَنَا وَابْنَ خَيْرِنَا .

اې محمد ، اې زمونږ سرداره او زمونږ د سردار ځويه ، اې په مونږ کې غوره شخصيته ،

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ . صحيح مسلم كتاب الفَضَائِلِ بَابٌ مِن فَضَائِلِ إِبْرَاهِيمَ الخَلِيلِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۱۵۰ (۲۳۶۹) ، سنن ابي داؤد كِتَاب السُّنَّةِ بَابٌ فِي التَّخْيِيرِ بَيْنَ الأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رقم الحديث ۴۶۷۲ ، سنن الترمذي أَبْوَابُ تَفْسِيرِ القُرْآنِ بَابٌ: وَمِنْ سُورَةِ لَمْ يَكُنْ رقم الحديث ۳۳۵۲ وقال الترمذي : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ ، مشكوة المصابيح باب المفاخرة الفصل الاول رقم الحديث ۴۸۹۶(۴) ، مسند احمد رقم الحديث ۱۲۸۲۶ .

(۲) ( فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ) أَيْ: تَوَاضُعًا لِرَبِّهِ وَأَدَبًا مَعَ جَدِّهِ ( ذَاكَ ) أَيِ : الْمُشَارُ إِلَيْهِ الْمَوْصُوفُ بِخَيْرِ الْبَرِيَّةِ هُوَ ( إِبْرَاهِيمُ عليه السلام ) . قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : فِيهِ وُجُوهٌ . أَحَدُهَا: أَنَّهُ قَالَ هَذَا تَوَاضُعًا وَاحْتِرَامًا لِإِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِخُلَّتِهِ وَأُبُوَّتِهِ وَإِلَّا فَنَبِيُّنَا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " « أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ وَلَا فَخْرَ » . مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج ۷ ص ۳۰۷۰ في تشريح رقم الحديث ۴۸۹۶ .

او د غوره شخصيت څويه .

نو رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ورته اوفرمايل : اې خلقو ! تقوىٰ په ځان کې پيدا کړئ ، شيطان دې تاسو لره دُهوکه نکړي .

أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِاللهِ عَبْدُ اللهِ وَ رَسُولُهُ . وَاللهِ مَا أُحِبُّ أَنْ تَرْفَعُوْنِيْ فَوْقَ مَنْزِلَتِي الَّتِيْ أَنْزَلَنِي اللهُ.

زه محمد د عبدالله ځوي يم ، د الله ﷻ بنده او د هغه رسول يم ، قسَم په الله زه دا نه خوَښوم چې تاسو ما د هغې مرتبې نه پورته کړی کومه چې ماته الله ﷻ راکړی . (۱)

## د نبي عليه السلام لِباس هم د تواضع وُ

د بخاري شريف حديث دی ، حضرت ابُوبردة ﷛ فرمايي چې حضرت عائشې ﷞ مونږ ته يو څادر او زِيګ تار واله تِهبَند رااُويست ، او وې فرمايل :

قُبِضَ رُوْحُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَيْنِ .

د نبي عليه السلام رُوح مبَارک په دې دوه کپړو کې قبض شوې وُ . (۲)

يعنى د نبي عليه السلام د وفات په وخت د دوی په بدن مبارک باندې دا دوه کپړې وی .

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷛ ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ : يَا مُحَمَّدُ يَا سَيِّدَنَا وَابْنَ سَيِّدِنَا ، وَخَيْرَنَا وَابْنَ خَيْرِنَا . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يَا أَيُّهَا النَّاسُ عَلَيْكُمْ بِتَقْوَاكُمْ ، لَا يَسْتَهْوِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ . أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِاللهِ عَبْدُ اللهِ وَ رَسُوْلُهُ ، وَاللهِ مَا أُحِبُّ أَنْ تَرْفَعُوْنِيْ فَوْقَ مَنْزِلَتِي الَّتِيْ أَنْزَلَنِي اللهُ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۲۵۵۱ ، و رقم الحديث ۱۳۵۹۶ ، السنن الكبرى للنسائي رقم الحديث ۱۰۰۰۶ ، و رقم الحديث ۱۰۰۰۷ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۳۱۰ ، كنزالعمال رقم الحديث ۸۳۴۲ ، وجوّد اسناده الشوكاني في الفتح الرباني ۳۳۶/۱ ، و صحح اسناده احمد شاكر في عمدة التفسير ۶۱۱/۱ .

(۲) عَنْ أَبِي بُرْدَةَ ﷛ . قَالَ : أَخْرَجَتْ إِلَيْنَا عَائِشَةُ كِسَاءً وَ إِزَارًا غَلِيْظًا ، فَقَالَتْ : قُبِضَ رُوْحُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ هٰذَيْنِ . صحيح البخاري كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ الأَكْسِيَةِ وَالخَمَائِصِ رقم الحديث ۵۸۱۸ .

وفي رواية : عَنْ أَبِي بُرْدَةَ ﷛ ، قَالَ : دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ ﵂ ، فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا إِزَارًا غَلِيْظًا مِمَّا يُصْنَعُ بِالْيَمَنِ ، وَكِسَاءً مِنَ الَّتِيْ يُسَمُّوْنَهَا الْمُلَبَّدَةَ ، قَالَ : فَأَقْسَمَتْ بِاللهِ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُبِضَ فِيْ هٰذَيْنِ الثَّوْبَيْنِ . صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّيْنَةِ بَابُ التَّوَاضُعِ فِي اللِّبَاسِ .... رقم الحديث ۲۴(۲۰۸۰) .

## نبي عليه السلام به په تواضع سره تللو

نبي عليه السلام به ډېر په تواضع سره تللو ، د صحابه کرامو سره به يو ځای تللو ، او د هغوی نه به مخکې نه تللو.

د ابوداؤد شريف حديث دی :

مَا رُئِيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مُتَّكِئًا قَطُّ . وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ .

هيڅ کله نبي عليه السلام داسې ندې ليدل شوی چې تکيه وهلو سره خوراک کوي ، او نه داسې ليدل شوی چې دوه کسانو ته مخکې وي . (۱)

(يعنې د خلقو نه به مخکې يواځې نه تللو ، بلکه د هغوی سره به يو ځای تللو ، او يا به د هغوی شاته روان ؤ ) . (۲)

لهذا انسان ته په کار دي چې د خپلو ملګرو او مُعتقدينو سره يو ځای روان وي ، دا مناسب ندي چې نور خلق دده شاته روان وي او دا ځانله د هغوی مخکې روان وي ، ځکه په دې سره په انسان کې تکبّر پيدا کيږي ، بلکه ياخو مکمل داسې ځان له تلل په کار دي چې دده پسې شاته بل هيڅوک نه وي ، او که نور خلق ورسره وي نو دا دې د هغوی سره يو ځای روان وي . (۳)

## د نبي ﷺ په بالخت او بِستره کې د مالوچو په ځای د قجورو پُوستکي وو

۱ . د مسلم شريف او ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي :

كَانَ وِسَادَةُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِيْ يَتَّكِئُ عَلَيْهَا مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيْفٌ .

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَطْعِمَةِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْأَكْلِ مُتَّكِئًا رقم الحديث ۳۷۷۰ قال الالباني: صحيح . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۶۵۴۹ ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۵۸۱۴ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۵۷۰ ، مشكاة المصابيح كِتَابُ الْأَطْعِمَةِ الْفَصْلُ الثَّانِي رقم الحديث ۴۲۱۲ (۵۴) ، كنز العمال رقم الحديث ۱۸۱۸۶ .

(۲) ( وَلَا يَطَأُ عَقِبَهُ رَجُلَانِ ) : أَيْ لَا يَمْشِي قُدَّامَ الْقَوْمِ . بَلْ يَمْشِي فِي وَسَطِ الْجَمْعِ . أَوْ فِي آخِرِهِمْ تَوَاضُعًا . مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۲۷۱۵ في تشريح حديث ۴۲۱۲ .

(۳) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۳۲ .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم به چې په کومه تکيه باندې ډَډَه وهله هغه د څرمنې وه ، دننه په کې د قجورو پوستکي وو . (۱)

(يعنى مالوچ په کې نه وو بلکه د مالوچو په ځاى د قجورو پُوستکو نه ډکه شوې وه ) .

۲ . په مسلم شريف کې دا حديث هم ذکر دی ، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي :

إِنَّمَا كَانَ فِرَاشُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ يَنَامُ عَلَيْهِ أَدَمًا حَشْوُهُ لِيفٌ .

بيشکه رسولُ الله صلى الله عليه وسلم به چې په کومه بِستره اُوده کيدو هغه د څرمنې وه او دننه په کې د قجورو پوستکي وو . (۲)

۳ . د نبي عليه السلام پُوزکي ( چټائي ) هم د قجورو د پوستکو نه جوړه شوې وه :

په بخاري شريف کې اُوږد حديث ذکر دی ، حضرت عُمر رضي الله عنه فرمايي .... زه رسولُ الله صلى الله عليه وسلم ته ورغلم ، هغوی د قجورو د پوستکو نه په جوړ شوي پُوزکي ( چټائي ) باندې پروت ؤ ، د دوی د جِسم او پوزکي په مينځ کې بل هيڅ څيز نه ؤ ، د سَر د لاندې يې د څرمنې تکيه وه چې دننه د قجورو د پوستکو نه ډکه شوې وه ، خپو طرف ته يې د اُونې ديرې پاڼړې پرتې وې ( په کومو باندې چې څرمن رَنګ کولې شي ) ، او سَر طرف ته يې د څرمنې مشکيزه زوړَنده وه .

ما چې د نبي عليه السلام په اَړخ مبارک باندې د پُوزکي نخې اُوليدی نو ما اُوژړل ، رسولُ الله صلى الله عليه وسلم راته اُوفرمايل : ولې ژاړې ؟ ما ورته وويل :

اې د الله رسوله ! کِسرىٰ او قيصر ته د دُنيا هر قِسمه آرام و راحت حاصل دی او تاسو خو د الله رسول يَی ( نو د الله جل جلاله نه دُعا اُوغواړئ چې هغه فراخي راولي ) .

نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

---

(۱) صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّيْنَةِ بَابُ التَّوَاضُعِ فِي اللِّبَاسِ، وَالِاقْتِصَارِ عَلَى الْغَلِيظِ مِنْهُ وَالْيَسِيرِ فِي اللِّبَاسِ وَالْفِرَاشِ وَغَيْرِهِمَا..... رقم الحديث ۳۷ (۲۰۸۲) ، سنن ابي داؤد كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابٌ فِي الْفُرُشِ رقم الحديث ۴۱۴۶ .

(۲) صحيح مسلم كتاب اللِّبَاسِ وَالزِّيْنَةِ بَابُ التَّوَاضُعِ فِي اللِّبَاسِ، وَالِاقْتِصَارِ عَلَى الْغَلِيظِ مِنْهُ وَالْيَسِيرِ فِي اللِّبَاسِ وَالْفِرَاشِ وَغَيْرِهِمَا..... رقم الحديث ۳۸ (۲۰۸۲) ، سنن الترمذي باب ماجاء في فراش النبي صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۱۷۶۱ ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۸۷۸ ، شرح السنّة للبغوي رقم الحديث ۳۱۲۲ باب الفراش .

أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ لَهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْآخِرَةُ ؟

آيا ته په دې راضي نه يې چې د هغوى په حصه كې دُنيا ده او زمونږ په حصه كې آخرت دى ؟ . (۱)

## نبي عليه السلام به په كور كې هم كار كولو

**۱** . د بخاري شريف حديث دى ، (مشهورتابعي) حضرت أسود رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

ما د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه اوكړه چې نبي عليه السلام به په كوز كې څه كار كولو ؟ حضرتِ عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا راته اوفرمايل :

كَانَ يَكُونُ فِي مِهْنَةِ أَهْلِهِ ـ تَعْنِي خِدْمَةَ أَهْلِهِ ـ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ خَرَجَ إِلَى الصَّلٰوةِ .

نبي عليه السلام به دُ خپل كوز والهؤ خدمت كې (يعني د هغوى سره په كورني كارونو كې مدد كولو د پاره) مشغول ؤ ، چې كله به د مونځ وخت راغى نو مانځه ته به اُووت . (۲)

---

(۱) قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : .... وَإِنَّهُ لَعَلَى حَصِيرٍ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ شَيْءٌ ، وَتَحْتَ رَأْسِهِ وِسَادَةٌ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ ، وَإِنَّ عِنْدَ رِجْلَيْهِ قَرَظًا مَصْبُوبًا ، وَعِنْدَ رَأْسِهِ أَهَبٌ مُعَلَّقَةٌ . فَرَأَيْتُ أَثَرَ الْحَصِيرِ فِي جَنْبِهِ ، فَبَكَيْتُ ، فَقَالَ : « مَا يُبْكِيكَ ؟ » فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ كِسْرَى وَقَيْصَرَ فِيمَا هُمَا فِيهِ ، وَأَنْتَ رَسُولُ اللهِ . فَقَالَ : « أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ لَهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْآخِرَةُ ؟ . صحيح البخاري . كِتَابُ تَفْسِيرِ الْقُرْآنِ بَابُ {تَبْتَغِي مَرْضَاةَ أَزْوَاجِكَ} رقم الحديث ۴۹۱۳ ، ورقم الحديث ۲۴۶۸ كِتَابُ الْمَظَالِمِ وَالْغَصْبِ بَابُ الْغُرْفَةِ وَالْعُلِّيَّةِ الْمُشْرِفَةِ وَغَيْرِ الْمُشْرِفَةِ فِي السُّطُوحِ وَغَيْرِهَا ، ورقم الحديث ۵۱۹۱ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَوْعِظَةِ الرَّجُلِ ابْنَتَهُ لِحَالِ زَوْجِهَا ، ورقم الحديث ۵۸۴۳ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَجَوَّزُ مِنَ اللِّبَاسِ وَالبُسْطِ . صحيح مسلم كِتَابُ الطَّلَاقِ بَابٌ فِي الْإِيلَاءِ ، وَاعْتِزَالِ النِّسَاءِ ، وَتَخْيِيرِهِنَّ . رقم الحديث ۳۱(۱۴۷۹) .

(۲) عَنِ الأَسْوَدِ ، قَالَ : سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ فِي بَيْتِهِ ؟ قَالَتْ : كَانَ يَكُونُ فِي مِهْنَةِ أَهْلِهِ ـ تَعْنِي خِدْمَةَ أَهْلِهِ ـ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ خَرَجَ إِلَى الصَّلٰوةِ . صحيح البخاري كِتَابُ الأَذَانِ بَابُ : مَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَهْلِهِ فَأُقِيمَتِ الصَّلاَةُ فَخَرَجَ رقم الحديث ۶۷۶ ، ورقم الحديث ۵۳۶۳ كِتَابُ النَّفَقَاتِ بَابُ خِدْمَةِ الرَّجُلِ فِي أَهْلِهِ ، ورقم الحديث ۶۰۳۹ كِتَابُ الأَدَبِ بَابٌ : كَيْفَ يَكُونُ الرَّجُلُ فِي أَهْلِهِ . سنن الترمذي رقم الحديث ۲۴۸۹ ، مشكوة المصابيح كتاب الفضائل والشمائل بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم الفصل الأول رقم الحديث ۵۸۱۶(۱۶) .

**فائده** : په دې حديث کې حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په خپله تشريح اوکړه چې د کور واله کوم خلق به د خدمت مستحق وو نبي عليه السلام به د هغوی خدمت کولو ، او په کور کې به چې کوم کارونه هغه به يې کولو ، لکه چيلۍ لوشل ، خپلې څپلۍ ګنډل ، خپلو کپړو ته پيوند لږول وغيره . (۱)

۳ . په يو بل حديث کې پوره تشريح موجود ده ، چې يو سړي د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه پوښتنه اوکړه : آيا رسولُ الله صلی الله عليه وسلم به په کور کې کار کولو ؟

حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ورته اوفرمايل :

نَعَمْ ، كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْصِفُ نَعْلَهُ ، وَيَخِيْطُ ثَوْبَهُ ، وَيَعْمَلُ فِيْ بَيْتِهِ كَمَا يَعْمَلُ أَحَدُكُمْ فِيْ بَيْتِهِ .

آو ، رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپلې څپلۍ په خپله ګنډلې ، خپلې (نوې يا زړې) کپړې به يې په خپله ګنډلې ، او په خپل کور کې به يې داسې کار کولو لکه څرنګې چې په تاسو کې يو کس په خپل کور کې کار کوي . (۲)

۴ . په احاديثو کې دا هم ذکر دي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په جواب کې اوفرمايل :

كَانَ بَشَرًا مِنَ الْبَشَرِ يَفْلِيْ ثَوْبَهُ ، وَيَحْلُبُ شَاتَهُ ، وَيَخْدُمُ نَفْسَهُ . (۳)

---

(۱) مظاهر حق ج۹ .

(۲) سَأَلَ رَجُلٌ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا : هَلْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْمَلُ فِيْ بَيْتِهِ شَيْئًا ؟ قَالَتْ : نَعَمْ ، كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْصِفُ نَعْلَهُ ، وَيَخِيْطُ ثَوْبَهُ ، وَيَعْمَلُ فِيْ بَيْتِهِ كَمَا يَعْمَلُ أَحَدُكُمْ فِيْ بَيْتِهِ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث رقم الحديث ۲۵۳۴۲ ، و رقم الحديث ۱۱۲۸۹ ، و رقم الحديث ۳۶۷۵ .

(۳) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ، قَالَتْ : سُئِلَتْ مَا كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْمَلُ فِيْ بَيْتِهِ ؟ قَالَتْ : كَانَ بَشَرًا مِنَ الْبَشَرِ يَفْلِيْ ثَوْبَهُ ، وَيَحْلُبُ شَاتَهُ ، وَيَخْدُمُ نَفْسَهُ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث رقم الحديث ۲۶۱۹۴ ، الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۵۴۱ باب ما يعمل الرجل في بيته ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۵۶۷۵ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۶۷۶ ، مشكوة المصابيح كتاب الفضائل والشمائل بَابٌ فِيْ أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفَصْلُ الثَّانِيْ رقم الحديث ۵۸۲۲(۲۲).

نبي عليه السلام هم د نورو انسانانو په شان انسان وُ ، خپلې کپړې به يې په خپله کتلی (چې څه ضرري څيز خو په کې نشته) ، خپلې چيلی به يې په خپله لوَشلی ، او خپل (ذاتي) خدمت به يې په خپله کولو (بل چاته به يې د خپل ذاتي کار حُکم نه کولو).

**نوټ** : د نبي عليه السلام په بدن کې سپږې نه کيدلی ، مچ او ماشي هم ورته تکليف ندې ورکړی خو بيا به هم نبي عليه السلام اِحتياطًا خپلې کپړې کتلی چې څه ضرري څيز خو په کې نشته.

حضرت عائشې رضي الله عنها چې کله دا اُوفرمايل چې " هغه د نورو انسانانو په شان انسان وُ " نو په دې کې يې د کافرانو په عقيده باندې هم رَد اوکړو چې هغوی د پيغمبرۍ سره دا کارونه منافي گنړل ، او دا به يې ويل چې : " پيغمبر به د بادشاهانو په شان ژوند تيروي د عامو خلقو په شان کارونه به نه کوي " نو حضرت عائشې رضي الله عنها ورباندې رَد اوکړو چې نبي عليه السلام د نورو انسانانو په شان انسان وُ خو الله تعالی ورته د نبوّت شرافت ورکړې وُ او د تواضع په وجه يې د عامو خلقو سره يو شان ژوند تيرولو . (۱)

## نبي عليه السلام به قجورې ځان له په خپله صفا کولی

د ابوداؤد شريف حديث دی ، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي :

أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ عَتِيقٍ فَجَعَلَ يُفَتِّشُهُ يُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ .

---

(۱) (يَفْلِيْ ثَوْبَهُ) أَيْ: يَنْظُرُ فِي الثَّوْبِ هَلْ فِيهِ شَيْءٌ مِنَ الْقَمْلِ؟ وَهُوَ لَا يُنَافِي مَا رُوِيَ: مِنْ أَنَّ الْقَمْلَ لَمْ يَكُنْ يُؤْذِيْهِ. وَقَالَ شَارِحٌ أَيْ: يَلْتَقِطُ الْقَمْلَ ... قَالَ الطِّيبِيُّ رَحِمَهُ اللهُ. قَوْلُهَا: " كَانَ بَشَرًا " تَمْهِيدًا لِمَا بَعْدَهُ. لِأَنَّهُ لَمَّا رَأَتْ مِنِ اعْتِقَادِ الْكُفَّارِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَلِيقُ بِمَنْصِبِهِ أَنْ يَفْعَلَ مَا يَفْعَلُ غَيْرُهُ مِنْ عَامَّةِ النَّاسِ وَجَعَلُوهُ كَالْمُلُوكِ. فَإِنَّهُمْ يَتَرَفَّعُونَ عَنِ الْأَفْعَالِ الْعَادِيَّةِ الدَّنِيَّةِ تَكَبُّرًا. كَمَا حَكَى اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ فِي قَوْلِهِ: {مَالِ هٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ} [الفرقان آية ۷] ، فَقَالَتْ: إِنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ خَلْقًا مِنْ خَلْقِ اللهِ تَعَالَى. وَ وَاحِدًا مِنْ أَوْلَادِ آدَمَ. شَرَّفَهُ اللهُ بِالنُّبُوَّةِ. وَكَرَّمَهُ بِالرِّسَالَةِ. وَكَانَ يَعِيشُ مَعَ الْخَلْقِ بِالْخُلُقِ. وَمَعَ الْحَقِّ بِالصِّدْقِ. فَيَفْعَلُ مِثْلَ مَا فَعَلُوا، وَيُعِينُهُمْ فِي أَفْعَالِهِمْ تَوَاضُعًا وَإِرْشَادًا لَهُمْ إِلَى التَّوَاضُعِ. وَ رَفْعِ التَّرَفُّعِ. وَتَبْلِيغِ الرِّسَالَةِ مِنَ الْحَقِّ إِلَى الْخَلْقِ. كَمَا أَمَرَ. قَالَ تَعَالَى: {قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ} [الكهف آية ۱۱۰] . مرقاة المفاتيح ج۹ ص ۳۷۱۷ في تشريح حديث حديث ۵۸۲۲(۲۲).

نبي عليه السلام ته زړې قجورې راوړې شوې (چې په هغې کې چينجي وو)، دوی هغه په صحيح طريقې سره کتلی، او د هغې نه يې چينجي ويستل (او صفا کولې يې). (۱)

## نبي عليه السلام په خپله مَمانړې راشوکولی، او ګډې يې هم څرولی

۱. د بخاري شريف او مسلم شريف حديث دی، حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنهما فرمايي چې (يو ځل) مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره (په سفر کې) وو، مونږ به مَمانړې راشوکولی، نبي عليه السلام به فرمايل:

په دې کې چې کومې تورې دي هغه راشوکوئ ځکه هغه ډيرې خوَندَه وَرې دي.

صحابه کرامو د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوکړه:

أَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ؟ آيا تاسو ګډې څرولي دي؟

نبي عليه السلام اوفرمايل:

وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ رَعَاهَا. هر يو نبي ګډې څرولي دي. (۲)

۲. د بخاري په يو حديث کې دا هم دي چې نبي عليه السلام (صحابه کرامو ته) اوفرمايل:

---

(۱) سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَطْعِمَةِ بَابٌ فِي تَفْتِيشِ التَّمْرِ الْمُسَوَّسِ عِنْدَ الْأَكْلِ رقم الحديث ۳۸۳۲ قال الالباني: صحيح. السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۴۶۳۴ باب ماجاء في تفتيش التمر عند الأكل، شعب الايمان رقم الحديث ۵۴۹۴.

وفي رواية: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتَى بِالتَّمْرِ فِيهِ دُودٌ. فَجَعَلَ يُفَتِّشُهُ يُخْرِجُ السُّوسَ مِنْهُ. سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَطْعِمَةِ بَابٌ فِي تَفْتِيشِ التَّمْرِ الْمُسَوَّسِ عِنْدَ الْأَكْلِ رقم الحديث ۳۸۳۳ قال الالباني: صحيح. كنز العمال رقم الحديث ۱۸۱۸۹، السنن الكبرى رقم الحديث ۱۴۶۳۵، شعب الايمان رقم الحديث ۵۴۹۵.

(۲) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَجْنِي الْكَبَاثَ، وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: «عَلَيْكُمْ بِالْأَسْوَدِ مِنْهُ. فَإِنَّهُ أَطْيَبُهُ» قَالُوا: أَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ؟ قَالَ: «وَهَلْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ رَعَاهَا». صحيح البخاري كِتَابُ أَحَادِيثِ الْأَنْبِيَاءِ بَابٌ (يَعْكُفُونَ عَلَى أَصْنَامٍ لَهُمْ) رقم الحديث ۳۴۰۶، و رقم الحديث ۵۴۵۳ كِتَابُ الْأَطْعِمَةِ بَابُ الْكَبَاثِ وَهُوَ ثَمَرُ الْأَرَاكِ، صحيح مسلم بَابُ فَضِيلَةِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْكَبَاثِ رقم الحديث ۱۶۳ (۲۰۵۰)، مشكوة المصابيح كتاب الاطعمة رقم الحديث ۴۱۸۶(۲۸).

(اَلْكَبَاثُ) ثمر الأراك يشبه التين يأكله الناس وغيرهم. تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري.

مَابَعَثَ اللهُ نَبِيًّا إِلَّا رَعَى الغَنَمَ .

الله تعالى چې هر نبي راليږلې دى نو هغه ګډې څرولې دي .

صحابه کرامو د نبي عليه السلام نه پوښتنه اوکړه : (اې د الله رسوله ! ) تاسو هم ګډې څرولې دي ؟

پيغمبر عليه السلام ورته اوفرمايل : نَعَمْ، كُنْتُ أَرْعَاهَا عَلَى قَرَارِيطَ لِأَهْلِ مَكَّةَ .

آو ، ما هم د اهلِ مکهٔ واله د پاره د يو څو قيراطو په بدل کې ګډې څرولې دي . (۱)

## د ګډو څرولو حکمت

په پيغمبرانو باندې د ګډو څرولو حِکمت دادى چې په دوى کې صبر او شفقت پيدا شي ، ځکه چې کله دوى د ګډو څرولو په مشقت باندې صبر اوکړي ، د دَرِنده ګانو نه يې محفوظې کړي ، د دوى مختلف طبعيتونه ورته معلوم شي ، د دوى يو ځاى والې او جداوالې ورته معلوم شي ، د دوى اُولږه او تَنده معلومه کړي ، د يوې چراه ګاه نه يې بلې چراګاه ته نقل کړي نو بيا چې کله دا پيغمبران خپل اُمت ته د دِين دعوت ورکوي او د خلقو د طرفه دوى ته کوم تکليفونه رسي نو هغه په آسانه برداشت کوي ، ځکه د مخکې نه دديې سره عادت شوي وي .

نبي عليه السلام به هم د اهلِ مکهٔ د پاره په مزدورۍ باندې ګډې څرولې ، هره ورځ به يې ورته يو يو قِيراط ورکول ، او يو قيراط د دِرهم شپږمه حصه وي .

په نبي عليه السلام کې دومره تواضع وه چې صحابه کرامو ته يې اوفرمايل چې ما هم د اهلِ مکهٔ د پاره د مياشتې په يو څو قيراطونو باندې ګډې څرولې . (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : « مَا بَعَثَ اللهُ نَبِيًّا إِلَّا رَعَى الغَنَمَ » ، فَقَالَ أَصْحَابُهُ : وَأَنْتَ ؟ فَقَالَ : « نَعَمْ، كُنْتُ أَرْعَاهَا عَلَى قَرَارِيطَ لِأَهْلِ مَكَّةَ » . صحيح البخاري كتاب الإجارة باب رَعْيِ الغَنَمِ عَلَى قَرَارِيطَ رقم الحديث ۲۲۶۲ ، مشكوة المصابيح باب الاجارة الفصل الاول رقم الحديث ۲۹۸۳(۳) .

(۲) ( إِلَّا رَعَى الغَنَمَ ) قَالَ المُظْهِرُ: عِلَّةُ رَعْيِهِمُ الغَنَمَ أَنَّهُمْ إِذَا خَالَطُوا الغَنَمَ زَادَ لَهُمُ الحِلْمُ وَالشَّفَقَةُ، فَإِنَّهُمْ إِذَا صَبَرُوا عَلَى مَشَقَّةِ رَعْيِهَا وَدَفَعُوا عَنْهَا السَّبُعَ الضَّارِيَةَ وَاليَدَ الخَاطِفَةَ وَعَلِمُوا اخْتِلَافَ طِبَاعِهَا ←←←←

# نبي ﷺ د مسجد نبوي جوړولو په وخت پخپله خختې او کاڼي راوړل

د نبي علیه السلام مدینې منورې ته د هجرت واقعه په بخاري شریف کې په تفصیل سره ذکر ده ، د هغې په آخر کې ذکر دي چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته راغی ، په سوَرلۍ (اُوښه) باندې سور ؤ ، نور مسلمانان هم ورسره وو ، آخر د نبي علیه السلام سوَرلۍ په هغه ځای باندې کیناسته چیرته چې اوس مسجد نبوي دی ، په دې ځای کې به په دغه ورځو کې څه مسلمانانو مونځونه کول ، دا ځای د سُهیل رضی الله عنه او سهل رضی الله عنه د دوه یتیمانو هلکانو ؤ ، دا د دوی د قجرړو اُچولو ( او ذخیره کولو) ځای ؤ ، دا دواړه یتیمان د حضرت اسعد بن زُراره رضی الله عنه په پَرورش کې وو .

کله چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم اُوښه په دې ځای باندې کیناسته نو دوی اوفرمایل :

هٰذَا إِنْ شَاءَ اللهُ الْمَنْزِلُ . اِن شاء الله همدا د قیام ځای دی .

بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دا دوه یتیمان هلکان رااُوغوښتل او د دوی نه یې دا ځای په قیمت باندې اخیستل اوغوښتل ددې د پاره چې په دې ځای باندې جُمات جوړ کړي ، دواړو هلکانو ورته وویل :

مونږ دا په تاسو باندې نه خرڅوو بلکه همداسې یې درته (بغیر د قیمت نه) هبه کوو .

نبي علیه السلام د هبې په طور ددې ځای قبلولو نه اِنکار اوکړو بلکه دا زمکه یې ورنه په قیمت واخیسته او بیا یې وریاندې جُمات جوړ کړو .

وَطَفِقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ مَعَهُمُ اللَّبِنَ فِيْ بُنْيَانِهِ .

---

←←← وَعَلَى جَمْعِهَا مَعَ تَفَرُّقِهَا فِي الْمَرْعَى وَالْمَشْرَبِ وَعَرَفُوْا ضَعْفَهَا وَاحْتِيَاجَهَا إِلَى النَّقْلِ مِنْ مَرْعًى إِلَى مَرْعًى وَمِنْ مَسْرَحٍ إِلَى مَسْرَحٍ عَرَفُوْا مُخَالَطَةَ النَّاسِ مَعَ اخْتِلَافِ أَصْنَافِهِمْ وَطِبَاعِهِمْ وَقِلَّةِ عُقُوْلِ بَعْضِهِمْ . وَرَزَانَتَهَا فَصَبَرُوْا عَلَى لُحُوْقِ الْمَشَقَّةِ مِنَ الْأُمَّةِ إِلَيْهِمْ . فَلَا تَنْفِرُ طِبَاعُهُمْ وَلَا تَمَلُّ نُفُوْسُهُمْ بِدَعْوَتِهِمْ إِلَى الدِّيْنِ لِاعْتِيَادِهِمُ الضَّرَرَ وَالْمَشَقَّةَ . وَعَلَى هٰذَا شَأْنُ السُّلْطَانِ مَعَ الرَّعِيَّةِ ..... فَإِنَّهُ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ تَوَاضُعًا لِلّٰهِ تَعَالَى وَتَصْرِيْحًا بِمِنَّتِهِ عَلَيْهِ . مرقاة المفاتيح ج ۵ ص ۱۹۹۱ في تشريح حديث ۲۹۸۳

ددې تعمير په وخت به رسولُ الله صلی الله علیه وسلم پخپله د صحابه کرامو سره کچه خښتې (او کانړي) راوړل.

او د راوړلو په وخت يې څه اشعار هم ويل. (۱)

## نبي علیه السلام د غزوه خندق په وخت پخپله خاورې وړلی

حضرت براء رضي الله عنه فرمايي :

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَتَّى أَغْمَرَ بَطْنَهُ، أَوِ اغْبَرَّ بَطْنُهُ.

نبي علیه السلام به د غزوه خندق په ورځ (يعنی د خندق کنستلو په وخت) خاورې وړلی، تر دې چې د دوی خيټه مبارکه په خاورو باندې گرد جَنه شوه.

او څه اشعار يې ويل. (۲)

---

(۱) ..... ثُمَّ رَكِبَ رَاحِلَتَهُ، فَسَارَ يَمْشِي مَعَهُ النَّاسُ حَتَّى بَرَكَتْ عِنْدَ مَسْجِدِ الرَّسُولِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ، وَهُوَ يُصَلِّي فِيهِ يَوْمَئِذٍ رِجَالٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، وَكَانَ مِرْبَدًا لِلتَّمْرِ، لِسُهَيْلٍ وَسَهْلٍ غُلاَمَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي حَجْرِ أَسْعَدَ بْنِ زُرَارَةَ رضي الله عنه . فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ بَرَكَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ: « هَذَا إِنْ شَاءَ اللهُ الْمَنْزِلُ». ثُمَّ دَعَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغُلاَمَيْنِ فَسَاوَمَهُمَا بِالْمِرْبَدِ، لِيَتَّخِذَهُ مَسْجِدًا، فَقَالاَ: لاَ، بَلْ نَهَبُهُ لَكَ يَا رَسُولَ اللهِ، فَأَبَى رَسُولُ اللهِ أَنْ يَقْبَلَهُ مِنْهُمَا هِبَةً حَتَّى ابْتَاعَهُ مِنْهُمَا، ثُمَّ بَنَاهُ مَسْجِدًا، وَطَفِقَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ مَعَهُمُ اللَّبِنَ فِي بُنْيَانِهِ وَيَقُولُ، وَهُوَ يَنْقُلُ اللَّبِنَ: " هَذَا الْحِمَالُ لاَ حِمَالَ خَيْبَرْ، هَذَا أَبَرُّ رَبَّنَا وَأَطْهَرْ ، وَيَقُولُ : اللَّهُمَّ إِنَّ الأَجْرَ أَجْرُ الآخِرَهْ ، فَارْحَمِ الأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَهْ" . صحيح البخاري كتاب مناقب الأنصار بَابُ هِجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ رقم الحديث ۳۹۰۶ ، مصنف عبدالرزاق الصنعاني رقم الحديث ۹۷۴۳، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۷۶۳.

(۲) عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ التُّرَابَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَتَّى أَغْمَرَ بَطْنَهُ، أَوِ اغْبَرَّ بَطْنُهُ، يَقُولُ :

وَاللهِ لَوْلاَ اللهُ مَا اهْتَدَيْنَا ✡ وَلاَ تَصَدَّقْنَا وَلاَ صَلَّيْنَا

فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا ✡ وَثَبِّتِ الأَقْدَامَ إِنْ لاَقَيْنَا

إِنَّ الأُلَى قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا ✡ إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا

وَرَفَعَ بِهَا صَوْتَهُ: « أَبَيْنَا أَبَيْنَا » . صحيح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِي بَابُ غَزْوَةِ الْخَنْدَقِ وَهِيَ الأَحْزَابُ رقم الحديث ۴۱۰۴ ، صحيح مسلم رقم الحديث ۱۲۵(۱۸۰۳) كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ غَزْوَةِ الأَحْزَابِ وَهِيَ الْخَنْدَقُ ، مشكاة المصابيح باب البيان والشعر الفصل الاول رقم الحديث ۴۷۹۲(۱۰) ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۷۹۲.

# نبي عليه السلام د ګډ پخولو د پاره پخپله لرګي راجمع کړل

يو ځل رسولُ الله صلی الله عليه وسلم په سفر کې ؤ ، صحابه کرامو رضي الله عنهم ته يې حکم اوکړو چې يو ګډ ذبح کړئ .

يو صحابي ووېل : په ما باندې ګډ حلالول شو ( يعنی زه به ګډ حلال کړم ) .

بل ووېل : زه به ورنه څرمن اُوباسم . بل ووېل : زه به يې پوخ کړم .

رسولُ الله صلی الله عليه وسلم اوفرمايل :

وَعَلَيَّ جَمْعُ الْحَطَبِ .

او په ما باندې لرګي راجمع کول شو ( يعنی زه به ورله لرګي راجمع کړم ) .

صحابه کرامو رضي الله عنهم ورته اوفرمايل : د کار د پاره مونږ کافي يو ( تاسو ته د کار کولو ضرورت نشته ) . نبي ﷺ ورته اوفرمايل :

عَلِمْتُ أَنَّكُمْ تَكْفُوْنَنِيْ وَلٰكِنْ أَكْرَهُ أَنْ أَتَمَيَّزَ عَلَيْكُمْ، وَإِنَّ اللهَ سُبْحَانَهُ وَتَعَالٰى يَكْرَهُ مِنْ عَبْدِهِ أَنْ يَرَاهُ مُتَمَيِّزًا بَيْنَ أَصْحَابِهِ .

ماته معلومه ده چې تاسو زما په ځای کافي يئ ، ليکن زه دا بده ګڼړم چې په تاسو باندې اِمتياز اُولرم ، او بيشکه الله تعالی هم هغه بنده نه خوښوي چې هغه په ملګرو کې ځان ممتاز ګڼړي . (۱)

---

(۱) قَدْ رُوِيَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ فِيْ سَفَرٍ وَأَمَرَ أَصْحَابَهُ بِإِصْلَاحِ شَاةٍ . فَقَالَ رَجُلٌ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! عَلَيَّ ذَبْحُهَا. وقال آخر : عَلَيَّ سَلْخُهَا . وقال آخر: عَلَيَّ طَبْخُهَا . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : وَعَلَيَّ جَمْعُ الْحَطَبِ . فَقَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ نَكْفِيْكَ الْعَمَلَ . فَقَالَ : عَلِمْتُ أَنَّكُمْ تَكْفُوْنَنِيْ وَلٰكِنْ أَكْرَهُ أَنْ أَتَمَيَّزَ عَلَيْكُمْ، وَإِنَّ اللهَ سُبْحَانَهُ وَتَعَالٰى يَكْرَهُ مِنْ عَبْدِهِ أَنْ يَرَاهُ مُتَمَيِّزًا بَيْنَ أَصْحَابِهِ . موارد الظمآن لدروس الزمان ج ۴ ص ۱۸۸ فصل في ذكر نماذج من تواضع المصطفى صلى الله عليه وسلم ، و ج ۴ ص ۴۰۳ من مزحه صلى الله عليه وسلم وعفوه وتواضعه . شرف المصطفى ج۴ ص ۳۷۸ ، خلاصة سير البشر ج ۱ ص ۸۷ ، شرح الشفاء ج۱ ص ۶۰۸ ، شرح الزرقاني على المواهب ج۶ ص ۴۸ ، السيرة النبوية على ضوء القرآن ج۲ ص ۶۳۷ ، الرحيق المختوم ج۱ ص ۴۴۶ ، جمع الوسائل في شرح الشمائل ج۲ ص ۱۲۹ ، سبل الهدى والرشاد في سيرة خير العباد ج۷ ص ۱۳ ، المواهب اللدنية بالمنح المحمدية ج ۲ ص ۱۱۴ .

# نبي علیه السلام به د خپلو ملګرو خدمت کولو

په رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې دومره تواضع وه چې د خپلو ملګرو خدمت به یې کولو.

**صحابه کرامو ته د څکلو د پاره اوبه اچول :** په مسلم شریف او مشکوة شریف کې اوږد حدیث ذکر دی، حضرت ابو قتادة رضي الله عنه د نبي علیه السلام د یو سفر واقعه بیانوي چې مونږ ډیر مزل اوکړو، سخته ګرمي وه، اوبه نه وی، صحابه کرامو رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اوفرمایل: اې د الله رسوله! مونږ هلاکیږو سخت تږي یو.

نبي علیه السلام ورته اوفرمایل: تاسو به (د تندې د وجې) نه هلاکیږئ.

بیا پیغمبر عليه السلام اوفرمایل: زما وړه پیاله ما له راوړئ، او (د اوبو) لوټه یې هم رااوغوښته، نبي علیه السلام به اوبه اچولی او ابو قتادة به په خلقو باندې څکلی.

کله چې خلقو په لوټه کې اوبه اولیدی نو پدې لوټه باندې یې رَش جوړ کړو (یو په بل وَرلویدل چې اوبه حاصلې کړي، ځکه دا یَره ورسره وه چې هسې نه اوبه ختمې شي).

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمایل: نرمي اوکړئ (اَخلاق صحیح کړئ) ټولو ته به اوبه اورسي، نو ټول خلق مطمئن شو.

(حضرت ابو قتادة رضي الله عنه فرمایي:)

فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُبُّ وَأَسْقِيهِمْ.

رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اوبه اچولی او ما به په خلقو باندې څکلی.

تر دې چې د ما او نبي علیه السلام نه بغیر بل څوک پاتې نه شو.

ابو قتادة رضي الله عنه فرمایي:

ثُمَّ صَبَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ لِي: اِشْرَبْ.

بیا رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوبه واچولی او ماته یې اوفرمایل: (اوس) ته اوڅکه.

ما ورته وویل: اې د الله رسوله! تر څو پورې چې تاسو نه وي څکلي تر هغې پورې یې زه نه څکم. نبي عليه السلام اوفرمایل: إِنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا

بیشکه په قوم باندې اوبه څکوونکی (پخپله) په آخر کې اوبه څکي.

نو ما اُوبه اُوڅکلې ، بيا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُوڅکلې .

بيا خلق د (نورو) اُوبو ځای ته په آرام او اطمينان باندې اُورسيدل . (۱)

## نبي عليه السلام صحابي ته د ناستې د پاره خپل څادر ورکړو

حضرت جرير بن عبد الله بَجَلي رضي الله عنه د نبي عليه السلام په خدمت کې حاضر شو ، په دې وخت کې پيغمبر عليه السلام په يو کور کې موجود ؤ چې ټول د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه ډک ؤ ، حضرت جرير رضي الله عنه په دروازه کې اُودريد ، نبي عليه السلام چې هغه اُوليد نو په کور کې يې اَخوا ديخوا اُوکتل خو د ناستې ځای يې په کې پيدا نکړو ، نو خپل څادر يې راغونډ کړو ، حضرت جرير رضي الله عنه ته يې وَر اُوويشت او ورته وې فرمايل : په دې کينه .

حضرت جرير رضي الله عنه څادر اُونيولو ، خپلې سينې سره يې اُولږول ، ښُکل (چَپ) يې کړو ، نبي عليه السلام ته يې واپس ور اُوليږل ، او ورته وې ويل :

اې د الله رسوله ! الله جل جلاله دې ستاسو داسې قدر اوکړي څنګه چې تاسو زما قدر اوکړو .

نبي عليه السلام اوفرمايل : کله چې تاسو ته د يو قوم قابلِ احترام سړی راشي نو تاسو د هغه قدر کوئ . (۲)

---

(۱) عَنْ أَبِي قَتَادَةَ رضي الله عنه ..... قَالَ : فَانْتَهَيْنَا إِلَى النَّاسِ حِيْنَ امْتَدَّ النَّهَارُ، وَحَمِيَ كُلُّ شَيْءٍ، وَهُمْ يَقُوْلُوْنَ : يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلَكْنَا، عَطِشْنَا . فَقَالَ: « لَا هُلْكَ عَلَيْكُمْ » . ثُمَّ قَالَ: « أَطْلِقُوْا لِيْ غُمَرِيْ » قَالَ : وَدَعَا بِالْمِيْضَأَةِ، فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُبُّ، وَأَبُوْ قَتَادَةَ رضي الله عنه يَسْقِيْهِمْ. فَلَمْ يَعْدُ أَنْ رَأَى النَّاسُ مَاءً فِي الْمِيْضَأَةِ تَكَابُّوْا عَلَيْهَا . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: « أَحْسِنُوا الْمَلَأَ كُلُّكُمْ سَيَرْوَى » قَالَ : فَفَعَلُوْا. فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُبُّ وَأَسْقِيْهِمْ حَتّٰى مَا بَقِيَ غَيْرِيْ، وَغَيْرُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: ثُمَّ صَبَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ لِيْ: « اِشْرَبْ » . فَقُلْتُ : لَا أَشْرَبُ حَتّٰى تَشْرَبَ يَا رَسُوْلَ اللهِ . قَالَ : « إِنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا » . قَالَ : فَشَرِبْتُ. وَشَرِبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . قَالَ: فَأَتَى النَّاسُ الْمَاءَ جَامِّيْنَ رِوَاءً . صحيح مسلم كِتَابُ الْمَسَاجِدِ وَمَوَاضِعِ الصَّلَاةِ بَابُ قَضَاءِ الصَّلَاةِ الْفَائِتَةِ، وَاسْتِحْبَابِ تَعْجِيْلِ قَضَائِهَا رقم الحديث ۳۱۱ (۶۸۱) ، مشكوة المصابيح كتاب الفَضَائِل وَالشَّمَائِل بَاب فِي المعجزات الفَصْل الأول رقم الحديث ۵۹۱۱ (۳۳) .

(۲) فضائل الحکايات ص ۶۸ ، حياة الصحابه ج ۲ ص ۵۶۳ .

## د صحابي د مدد د پاره د خپل اوښ نه راښکته کيدل

په بخاري شريف کې دا واقعه ذکر ده ، حضرت جابر ﷺ فرمايي چې زه د نبي عليه السلام سره په يوه غزا کې ووم ، زما اُوښ سست شو او ستړې شو .

نبي عليه السلام ماته راغی او پوښتنه رانه يې اوکړه : آيا ته جابر يې ؟ ما ورته وويل : آو . راته وې فرمايل : څه حال دی ؟ ما ورته وويل : زما اُوښ سست شو او ستړې شو نو ځکه زه د نورو خلقو نه شاته پاتې شوم .

فَنَزَلَ يَحْجُنُهُ بِمِحْجَنِهِ .

پس نبي عليه السلام د خپلې سورلۍ نه راښکته شو او دا اُوښ يې په خپله ( همغه ) امسا باندې راښکل ( چې د همغې په سَر کې کوږوالې ؤ ) .

بيا يې ماته اوفرمايل : اِرْكَبْ . ( اوس ) ورباندې سور شه .

( حضرت جابر ﷺ فرمايي ) پس زه په دې اُوښ باندې سور شوم ( دا په تللو کې دومره تېز شو چې پيغمبر عليه السلام د سورلۍ سره يې يو ځای د تللو کوشش کولو ) نو ما دا ( د اَدب په وجه ) د رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سورلۍ سره يو ځای د تللو نه رامنع کولو ....(۱)

سبحانَ الله ، په نبي عليه السلام کې دومره تواضع وه چې د صحابي د خدمت د پاره د خپلې اُوښې نه راښکته شو .

## د نبي ﷺ د اُوښې نه د اَعرابي اُوښه مخکې شوه خو خفه نه شو

امام بخاري رحمه الله مُستقل باب قائم کړی " بَابُ التَّوَاضُعِ " ( باب دی په بيان د عاجزۍ کولو کې ) . او ددې باب د لاندې يې دا حديث رانقل کړی :

---

(۱) عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا. قَالَ: كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزَاةٍ. فَأَبْطَأَ بِي جَمَلِي وَأَعْيَا. فَأَتَى عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: « جَابِرٌ ؟ » فَقُلْتُ: نَعَمْ. قَالَ: « مَا شَأْنُكَ ؟ » قُلْتُ: أَبْطَأَ عَلَيَّ جَمَلِي وَأَعْيَا. فَتَخَلَّفْتُ. فَنَزَلَ يَحْجُنُهُ بِمِحْجَنِهِ ثُمَّ قَالَ: « اِرْكَبْ ». فَرَكِبْتُ. فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ أَكُفُّهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ..... صحيح البخاري كِتَابُ الْبُيُوعِ بَابُ شِرَاءِ الدَّوَابِّ وَالْحُمُرِ رقم الحديث ۲۰۹۷ .

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم یوه اُوښه وه نوم يې عَضْبَاءُ وُ (دا په تللو او منډه کې ډومره تیزه وه ) چې ددینه به بله اُوښه نه شوه مخکې کیدی، یو اَعرابي په ځوانه اُوښه باندې سور راغی او د پیغمبر علیه السلام د اُوښې نه مخکې شو، په مسلمانانو باندې دا خبره ډیره ګرانه شوه او وې ویل:

د عَضْبَاءُ نه بله اُوښه مخکې شوه.

رسولُ الله صلی الله علیه وسلم (چې د دوی دا حالت اُولید نو دوی) اوفرمایل:

إِنَّ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ لَا يَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ.

الله تعالی په ځان دا لازمه کړې (یعنی د هغه قانون دادی) چې د دُنیا کوم څیز اُوچت کړي نو هغه راښکته کوي. (۱)

**د مذکوره حدیث نه معلومې شوې خبرې:** علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ لیکلي: په دې حدیث کې دې خبرې طرف ته اشاره ده چې انسان به ځان اُوچت نه حسابوي بلکه عاجزي به کوي؛ ځکه د دُنیا اُمور ناقِص دي کامِل ندي.

علامه ابن بطال رَحِمَهُ اللهُ لیکلي: په دې حدیث کې دیته اشاره ده چې د الله ﷻ په نزد د دُنیا هیڅ حیثیت نشته، همدارنګې انسان ته تَنبِیه ده چې د یو بل نه د مخکې کیدو او په یو بل باندې به فخر نه کوي او د دُنیا سره به ډیره مِینه نه کوي.

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَتْ نَاقَةٌ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُسَمَّى: الْعَضْبَاءَ، وَكَانَتْ لَا تُسْبَقُ، فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ لَهُ فَسَبَقَهَا، فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ، وَقَالُوا: سُبِقَتِ الْعَضْبَاءُ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ لَا يَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ». صحيح البخاري كِتَابُ الرِّقَاقِ بَابُ التَّوَاضُعِ رقم الحديث ٦٥٠١، سنن ابي داؤد كِتَاب الْأَدَبِ بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الرِّفْعَةِ فِي الْأُمُورِ رقم الحديث ۴۸۰۲، شعب الايمان رقم الحديث ۱۰۰۲۹، مسند احمد رقم الحديث ۱۲۰۱۰.

عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه، قَالَ: كَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَةٌ تُسَمَّى الْعَضْبَاءَ لَا تُسْبَقُ، فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ فَسَبَقَهَا فَشَقَّ عَلَى الْمُسْلِمِينَ، فَلَمَّا رَأَى مَا فِي وُجُوهِهِمْ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ! سُبِقَتِ الْعَضْبَاءُ، قَالَ: إِنَّ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ لَا يَرْتَفِعَ مِنَ الدُّنْيَا شَيْءٌ إِلَّا وَضَعَهُ. سنن النسائي كِتَابُ الْخَيْلِ بَابُ: السَّبَقِ رقم الحديث ۳۵۸۸.

علامه ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ دا هم ليکلي چې ددې حديث نه د نبي عليه السلام خوش اخلاقي او تواضع معلومه شوه ؛ ځکه چې کله د اَعرابي اُوښه د دوی د اُوښې نه مخکې شوه نو دا ورباندې خوشحال شو . (۱)

## نبي عليه السلام د حضرت عمر رضي الله عنه نه د دُعاؤ درخواست اوکړو

په ترمذي شريف ، مسند احمد او نورو ډيرو د احاديثو په کتابونو کې دا حديث ذکر دی چې حضرت عُمر رضي الله عنه د نبي عليه السلام نه د عُمرې کولو اِجازت اُوغوښت ، نبي عليه السلام ورته ( اِجازت ورکړو او ورته يې ) اُو فرمايل :

أَيْ أُخَيَّ أَشْرِكْنَا فِيْ دُعَائِكَ وَلَا تَنْسَنَا .

اې وروره ! مونږ هم په خپله دُعا کې شريک کړه ، او مونږ ( د دُعا نه ) مه هيروه . (۲)

په ابوداؤد شريف کې الفاظ داسې دي چې نبي عليه السلام ورته اوفرمايل :

لَا تَنْسَنَا يَا أُخَيَّ مِنْ دُعَائِكَ .

(۱) فِيْهِ إِشَارَةٌ إِلَى الحَثِّ عَلَى عَدَمِ التَّرَفُّعِ وَالحَثِّ عَلَى التَّوَاضُعِ وَالإِعْلَامِ بِأَنَّ أُمُوْرَ الدُّنْيَا نَاقِصَةٌ غَيْرُ كَامِلَةٍ. قَالَ بْنُ بَطَّالٍ رَحِمَهُ اللهُ : فِيْهِ هَوَانُ الدُّنْيَا عَلَى اللهِ وَالتَّنْبِيْهُ عَلَى تَرْكِ الْمُبَاهَاةِ وَالْمُفَاخَرَةِ ، وَأَنَّ كُلَّ شَيْءٍ هَانَ عَلَى اللهِ فَهُوَ فِيْ مَحَلِّ الضِّعَةِ فَحَقٌّ عَلَى كُلِّ ذِيْ عَقْلٍ أَنْ يَزْهَدَ فِيْهِ وَيُقِلَّ مُنَافَسَتَهُ فِيْ طَلَبِهِ . وَقَالَ الطَّبَرِيُّ فِي التَّوَاضُعِ مَصْلَحَةُ الدِّيْنِ وَالدُّنْيَا فَإِنَّ النَّاسَ لَوِ اسْتَعْمَلُوْهُ فِي الدُّنْيَا لَزَالَتْ بَيْنَهُمُ الشَّحْنَاءُ وَلَاسْتَرَاحُوْا مِنْ تَعَبِ الْمُبَاهَاةِ وَالْمُفَاخَرَةِ . قُلْتُ وَفِيْهِ أَيْضًا حُسْنُ خُلُقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَوَاضُعُهُ لِكَوْنِهِ رَضِيَ أَنَّ أَعْرَابِيًّا يُسَابِقُهُ. وَفِيْهِ جَوَازُ الْمُسَابَقَةِ . فتح الباري شرح صحيح البخاري لابن حجر العسقلاني رَحِمَهُ اللهُ ج ۱۱ ص ۳۴۱ قَوْلُهُ : بَابُ التَّوَاضُعِ .

(۲) عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ، عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه ، أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعُمْرَةِ فَقَالَ : أَيْ أُخَيَّ أَشْرِكْنَا فِيْ دُعَائِكَ وَلَا تَنْسَنَا . سنن الترمذي أَبْوَابُ الدَّعَوَاتِ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۵۶۲ وقال الترمذي : هَذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ . مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۹۵ ، شرح السنة للبغوي ج ۵ ص ۱۹۹ .

وفي رواية : إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اسْتَأْذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عُمْرَةٍ . فَأَذِنَ لَهُ ، وَقَالَ : يَا أُخَيَّ ! أَشْرِكْنَا فِيْ دُعَائِكَ ، وَلَا تَنْسَنَا مِنْ دُعَائِكَ . شعب الايمان رقم الحديث ۸۶۴۱ ، كنز العمال كتاب الأذكار باب في الدعاء فصل في آدابه رقم الحديث ۳۹۲۰ .

اې وروره ! مونږ هم په خپلو دُعاګانو کې مه هيروه.

حضرت عُمر رضي الله عنه فرمايي چې ماته رسولُ الله صلى الله عليه وسلم دا کومه خبره اوکړه که ددې په ځاى ماته دا ټوله دُنيا ملاوْ شوې وى نو دومره به نه خوشحاليدم ځومره چې په دې خبره خوشحال شوم. (۱)

## نبي عليه السلام په ماشومانو باندې هم سلام اچولو

په رسولُ الله صلى الله عليه وسلم کې دومره عاجزي وه چې په ماشومانو باندې يې هم سلام اچولو.

۱ . د بخاري شريف حديث دى چې حضرت انس رضي الله عنه به کله په ماشومانو باندې تيريدو نو سلام به يې ورباندې اچولو ، او فرمايل به يې :

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ .

نبي عليه السلام به هم دا کار کولو (يعنى په ماشومانو باندې به يې سلام اچولو). (۲)

۲ . په مسلم شريف کې صراحةً ذکر دي ، حضرت انس رضي الله عنه فرمايي :

إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى غِلْمَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ . (۳)

---

(۱) عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: اِسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعُمْرَةِ ، فَأَذِنَ لِي ، وَقَالَ: « لَا تَنْسَنَا يَا أُخَيَّ مِنْ دُعَائِكَ »، فَقَالَ كَلِمَةً مَا يَسُرُّنِي أَنَّ لِي بِهَا الدُّنْيَا . قَالَ شُعْبَةُ : ثُمَّ لَقِيتُ عَاصِمًا بَعْدُ بِالْمَدِينَةِ، فَحَدَّثَنِيهِ ، وَقَالَ: « أَشْرِكْنَا يَا أُخَيَّ فِي دُعَائِكَ » . سنن ابى داود بَابُ الدُّعَاءِ رقم الحديث ۱۴۹۸ ، السنن الكبرى للبيهقي رقم الحديث ۱۰۳۱۵ ، كنزالعمال باب فى العمرة رقم الحديث ۱۲۹۴۳ ، و رقم الحديث ۳۲۷۴۲ ، الاحاديث المختارة رقم الحديث ۱۸۳ ، و رقم الحديث ۱۸۴ ، نضرة النعيم ج ۵ ص ۱۵۸۰ حسن الخلق .

(۲) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ مَرَّ عَلَى صِبْيَانٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ . وَقَالَ : كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ . صحيح البخاري كِتَابُ الإِسْتِئْذَانِ بَابُ التَّسْلِيمِ عَلَى الصِّبْيَانِ رقم الحديث ۶۲۴۷ ، الادب المفرد مخرجا رقم الحديث ۱۰۴۳ باب السلام على الصبيان ، شعب الايمان رقم الحديث ۵۸۰۳ ، شرح السنّة للبغوي باب التسليم على الصبيان رقم الحديث ۳۳۰۵ .

(۳) صحيح مسلم كتاب السَّلَامِ بَابُ اسْتِحْبَابِ السَّلَامِ عَلَى الصِّبْيَانِ رقم الحديث ۱۴ (۲۱۶۸) ، مشكوة المصابيح باب السلام الفصل الاول رقم الحديث ۴۶۳۴ (۷) ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۲۱۶ .

بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم په ماشومانو (یا : غلامانو) باندې تیر شو پس په هغوی یې سلام واچول.

امام نووي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي : ددې حدیث نه معلومه شوه چې په هغه ماشومانو باندې سلام اچول مستحب دي چې هغوی تمیز کولې شي. او ددې حدیث نه د نبي علیه السلام تواضع او کمال شفقت په امت باندې هم معلوم شو. (۱)

## ابو عُمَیر ماشوم ته د مرغۍ په مړه کیدو تسلي ورکول

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تواضع اندازه تاسو ددینه هم معلومولې شی چې د ابو عُمَیر ماشوم مرغۍ مړه شوې وه نو نبي علیه السلام هغه ته تسلي ورکړه.

د ابوداؤد شریف حدیث دی، حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې کله کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ کره راتلو، زما یو وړوکې ورور ؤ، د هغه کُنیَت " ابو عُمَیر " ؤ، د هغه یوه وړه مرغۍ وه چې د هغې سره به یې لوبې کولې، بیا دا مرغۍ مړه شوه.

یوه ورځ نبي علیه السلام راغلو نو دا ابو عُمَیر یې غمجَن (خفه) اُولید، پوښتنه یې اوکړه : مَا شَأْنُهُ؟ دا په ده څه شوي؟ (ولې خفه دی؟).

خلقو ورته ووېل : مَاتَ نُغَرُهُ . دده هغه وړه مرغۍ مړه شوې ده (د هغې پسې خفه دی).

رسول الله صلی الله علیه وسلم دې ماشوم ته (د تسلۍ د پاره) اوفرمایل :

يَا أَبَا عُمَيْرٍ ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ؟

اې ابو عُمَیر ! په هغه نُغَیر (مرغۍ) باندې څه اوشو ؟ (یعنی هغه څه شوه ؟). (۲)

---

(۱) قَالَ النَّوَوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ : فِيهِ اسْتِحْبَابُ السَّلَامِ عَلَى النَّاسِ كُلِّهِمْ حَتَّى الصِّبْيَانِ الْمُمَيِّزِيْنَ . وَبَيَانُ تَوَاضُعِهِ وَكَمَالُ شَفَقَتِهِ عَلَى الْعَالَمِيْنَ . مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۲۹۳۸ في تشريح حديث ۴۶۳۴ ، شرح مسلم للنووي ۲۰۴/۷ باب استحباب السلام على الصبيان .

(۲) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه ، قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يَدْخُلُ عَلَيْنَا وَلِيَ أَخٌ صَغِيْرٌ يُكْنَى أَبَا عُمَيْرٍ . وَكَانَ لَهُ نُغَرٌ يَلْعَبُ بِهِ . فَمَاتَ . فَدَخَلَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَرَآهُ حَزِيْنًا . فَقَالَ : « مَا شَأْنُهُ ؟ » قَالُوْا : مَاتَ نُغَرُهُ . فَقَالَ : « يَا أَبَا عُمَيْرٍ ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ ؟ » . سنن ابي داؤد كِتَابُ الْأَدَبِ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَتَكَنَّى وَلَيْسَ لَهُ وَلَدٌ رقم الحديث ۴۹۶۹ قال الالباني : صحيح .

دا حديث په بخاري شريف ، ترمذي شريف او نورو د احاديثو په كتابونو كې هم ذكر دی . (۱)

**فائده** : نُغَير د چرچنړې په شان مرغۍ ده سره ټونګه يې وي . څوک وايي چې د وړې ټونګې او سُور سَر واله وړه مرغۍ ده . څوک وايي چې ددينه بلبله مراد ده ...

د نبي عليه السلام مقصد هغه ماشوم ته تسلي ورکول وو چې په هغه مرغۍ څه اُوشو چې د تاسره نشته . همدارنګې ددې واقعې نه د نبي عليه السلام خوش اَخلاقي هم معلوميږي چې د ماشوم سره يې خوش طبعي کوله او هغه ته يې تسلي ورکوله . (۲)

## نبي عليه السلام په ماشومانو ډير مهربان وُ

۱ . پيغمبر عليه السلام په ماشومانو باندې دومره مهربان او رَحم کوونکی وُ چې د ډير شفقت په وجه به يې د دوی په سرونو باندې لاس راښکود .

حضرت انس ﷺ فرمايي :

إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَزُوْرُ الْأَنْصَارَ، وَيُسَلِّمُ عَلَى صِبْيَانِهِمْ، وَيَمْسَحُ رُءُوْسَهُمْ .

---

(۱) عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، يَقُوْلُ : إِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُخَالِطُنَا، حَتّٰى يَقُوْلَ لِأَخٍ لِيْ صَغِيْرٍ: يَا أَبَا عُمَيْرٍ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ ؟ .صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ الإِنْبِسَاطِ إِلَى النَّاسِ رقم الحديث ۶۱۲۹ .

وفي رواية : عَنْ أَنَسٍ ﷺ ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ خُلُقًا، وَكَانَ لِيْ أَخٌ يُقَالُ لَهُ أَبُوْ عُمَيْرٍ _ قَالَ: أَحْسِبُهُ _ فَطِيْمًا، وَكَانَ إِذَا جَاءَ قَالَ : يَا أَبَا عُمَيْرٍ! مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ ؟ . نُغَرٌ كَانَ يَلْعَبُ بِهِ ... صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ الكُنْيَةِ لِلصَّبِيِّ وَقَبْلَ أَنْ يُوْلَدَ لِلرَّجُلِ رقم الحديث ۶۲۰۳ .

(۲) (يَا أَبَا عُمَيْرٍ) : بِالتَّصْغِيْرِ ، وَاسْمُهُ كَبْشَةُ (مَا فَعَلَ) : بِصِيْغَةِ الفَاعِلِ، أَيْ: مَا صَنَعَ (النُّغَيْرُ ؟) : بِضَمٍّ فَفَتْحٍ، تَصْغِيْرُ نُغَرٍ بِضَمِّ النُّوْنِ وَفَتْحِ الغَيْنِ المُعْجَمَةِ، طَائِرٌ يُشْبِهُ العُصْفُوْرَ أَحْمَرُ المِنْقَارِ، وَقِيْلَ: هُوَ العُصْفُوْرُ، وَقِيْلَ: هُوَ الصَّعْوُ صَغِيْرُ المِنْقَارِ أَحْمَرُ الرَّأْسِ ، وَقِيْلَ: أَهْلُ المَدِيْنَةِ يُسَمُّوْنَهُ البُلْبُلَ. وَالمَعْنٰى : مَا جَرٰى لَهُ حَيْثُ لَمْ أَرَهُ مَعَكَ . وَفِيْ هٰذَا تَسْلِيَةٌ لَهُ عَلٰى فَقْدِهِ بِمَوْتِهِ، بَيَّنَهُ بِقَوْلِهِ ( كَانَ لَهُ نُغَيْرٌ يَلْعَبُ بِهِ فَمَاتَ ) أَيِ: النُّغَيْرُ، وَحَزِنَ الوَلَدُ لِفَقْدِهِ عَلٰى عَادَةِ الصِّغَارِ. مرقاة المفاتيح ج ۷ ص ۳۰۶۱ في تشريح حديث ۴۸۸۴ .

نبي عليه السلام به د انصارو ملاقات ته تللو ، د هغوی په ماشومانو باندې به يې سلام اچولو ، او د ماشومانو په سرونو باندې به يې (د شفقت په وجه) لاس رانښکل. (۱)

۲. حضرت انس ﷺ فرمايي: كَانَ أَرْحَمَ النَّاسِ بِالصِّبْيَانِ وَالْعِيَالِ. (۲)

نبي عليه السلام په خلقو کې په ماشومانو او کور واله باندې ډير مهربان ؤ.

۳. پيغمبر ﷺ به ماشومان هم په غيږ کې اخيستل. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي:

إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ صَبِيًّا فِي حَجْرِهِ يُحَنِّكُهُ. فَبَالَ عَلَيْهِ. فَدَعَا بِمَاءٍ فَأَتْبَعَهُ.

نبي عليه السلام يو ماشوم په غيږ کې کينول ، تَحنيک يې ورله کولو ، دې ماشوم په نبي عليه السلام باندې تشې مِتيازې اوکړې ، دوی اُوبه راأوغوښتې او په هغه ځای يې واچولې. (۳)

(**نوټ**: " تَحنيک " ديته وايي چې قجورې يا بل څيز په خپله خُله کې مبده کړي او بيا يې ماشوم ته په خُله کې د تَبَرُّک د پاره ورکړي).

## نبي ﷺ په خَر باندې هم سوَرلي کړی ، د مريضانو پوښتنه به يې كوله ، او د جنازې سره به تللو

۱. د بخاري شريف حديث دی:

(۱) صحيح ابن حبان بَابُ الرَّحْمَةِ ذِكْرُ مَا يُسْتَحَبُّ لِلْمَرْءِ اسْتِعْمَالُ التَّعَطُّفِ عَلَى صِغَارِ أَوْلَادِ آدَمَ رقم الحديث ۴۵۹ ، شرح السنة للبغوي رقم الحديث ۳۳۰۶ ، كنزالعمال رقم ۱۸۴۸۸ ، حلية الاولياء وطبقات الاصفياء ج۶ ص ۲۹۱.

(۲) كنز العمال كتاب الشمائل الباب الرابع: في شمائل تتعلق بالأخلاق والأفعال والأقوال رقم الحديث ۱۸۴۹۰ ، و رواه ابن عساكر ، و صححه الالباني في " الصحيحة " رقم الحديث ۲۰۸۹ ، و " صحيح الجامع " رقم الحديث ۴۷۹۷ ، صلاح الامة ج۷ ص ۱۹۶ ، مسند البزار رقم الحديث ۷۳۵۶ ، مرقاة المفاتيح ج۹ ص ۳۷۱۷.

(۳) صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ وَضْعِ الصَّبِيِّ فِي الحِجْرِ رقم الحديث ۶۰۰۲.

وفي رواية: عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُؤْتَى بِالصِّبْيَانِ فَيُبَرِّكُ عَلَيْهِمْ وَيُحَنِّكُهُمْ. فَأُتِيَ بِصَبِيٍّ. فَبَالَ عَلَيْهِ. فَدَعَا بِمَاءٍ. فَأَتْبَعَهُ بَوْلَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ. صحيح مسلم كِتَابُ الطَّهَارَةِ بَابُ حُكْمِ بَوْلِ الطِّفْلِ الرَّضِيعِ وَكَيْفِيَّةِ غَسْلِهِ رقم الحديث ۱۰۱ (۲۸۶).

إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلَى حِمَارٍ عَلَى إِكَافٍ عَلَيْهِ قَطِيْفَةٌ ، وَ أَرْدَفَ أُسَامَةَ ﷺ وَرَاءَهُ.

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم په خَر باندې سورۈ ، د هغې په زِين ( کته ) باندې يو څادر خورۈ ، او شاته يې د ځان پسې حضرت أسامة ﷺ کينولې ۆ .(۱)

۲ . (يو ځل) نبي عليه السلام قباء ته تشريف وړلو نو په داسې خَر باندې سورۈ چې کتَه ورباندې نه وه (يعنى په شاتوري خَر باندې سورۈ ) ، حضرت ابوهريرة ﷺ هم ورسره ۆ ، نبي عليه السلام حضرت ابوهريرة ﷺ ته اوفرمايل : راشه ته هم سور شه .

حضرت ابوهريرة ﷺ چونکه درُوند ۆ ، د ختلو د پاره يې وَرټوپ کړل ، خو اُو نه ختلې شو ، د رسولُ الله ﷺ پسې اُونختلو ، چې په دې سره دواړه رااُوغورځيدل .

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم بيا (په خَر) سور شو ، او ده ته يې اوفرمايل :

ابوهريرة ! تاسو هم سور کړم ؟ ده ورته ووېل : څنګه چې ستاسو خوَښه وي . نبي عليه السلام ورته اوفرمايل : رااُوخيجه . حضرت ابوهريرة ﷺ اُو نه ختلې شو ، بلکه نبي ﷺ يې د ځان سره بيا رااُوغورځول .

نبي عليه السلام بيا (سور شو او) د حضرت ابوهريرة ﷺ نه (يې) د سوريدو په باره کې پوښتنه اوکړه ( چې تاسو هم سور کړم ؟ ) .

حضرت ابوهريرة ﷺ ورته اوفرمايل : په هغه ذات مې دې قسَم وي چې تاسو يې په

---

(۱) صحيح البخاري كِتَابُ الجِهَادِ وَالسِّيَرِ بَابُ الرِّدْفِ عَلَى الحِمَارِ رقم الحديث ۲۹۸۷ ، ورقم الحديث ۵۹۶۴ كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ الإِرْتِدَافِ عَلَى الدَّابَّةِ . و رقم الحديث ۵۶۶۳ كِتَابُ المَرْضَى بَابُ عِيَادَةِ المَرِيضِ رَاكِبًا وَمَاشِيًا وَرِدْفًا عَلَى الحِمَارِ ، ورقم الحديث ۶۲۰۷ كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ كُنْيَةِ المُشْرِكِ ، صحيح الادب المفرد رقم الحديث ۸۴۸/۱۱۰۸ باب التسليم على مجلس فيه المسلم والمشرك .

وفي رواية : وَرَوَى ابْنُ عَسَاكِرَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ ﷺ : أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْكَبُ الْحِمَارَ . وَيَخْصِفُ النَّعْلَ ، وَيُرَقِّعُ الْقَمِيْصَ ، وَيَلْبَسُ الصُّوْفَ ، وَيَقُوْلُ : مَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِيْ فَلَيْسَ مِنِّيْ . مرقاة المفاتيح كِتَابُ اللِّبَاسِ ج ۷ ص ۲۷۸۱ .

حقه باندې رسول راليږلې يَې چې په دريم ځل به زه تاسو را أو نه غورځوم، لهذا زه نه سوريږم. (۱)

۳ . حضرت انس ﷺ د نبي عليه السلام (د اخلاقو) په باره کې فرمايي:

إِنَّهُ كَانَ يَعُوْدُ الْمَرِيْضَ، وَيَتَّبِعُ الْجِنَازَةَ، وَيُجِيْبُ دَعْوَةَ الْمَمْلُوْكِ، وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ. لَقَدْ رَأَيْتُهُ يَوْمَ خَيْبَرَ عَلَى حِمَارٍ خِطَامُهُ لِيْفٌ.

نبي عليه السلام به د بيمار پوښتنه کوله، د جنازې سره به تللو، د غلام دَعوت به يې قبلولو، او په خَر باندې يې سوَرلي هم کړې، د غزوه خيبر په ورځ ما رسولُ الله صلى الله عليه وسلم په داسې حالت کې أوليد چې په داسې خَر باندې سورؤ چې د هغې واګې د قجورو د پُوستکي نه جوړې شوې وې. (۲)

**فائده**: دا د نبي عليه السلام په کمالِ تواضع او خوش اخلاقۍ باندې دلالت کوي. بل دد‌ې حديث نه دا هم معلومه شوه چې په خَرباندې سوَرلي سُنت ده. (۳)

٤ . حضرت سَهل بن حُنَيف ﷺ فرمايي:

كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي ضُعَفَاءَ الْمُسْلِمِيْنَ، وَيَزُوْرُهُمْ وَيَعُوْدُ مَرْضَاهُمْ، وَيَشْهَدُ جَنَائِزَهُمْ. (۴)

رسولُ الله صلى الله عليه وسلم به کمزورو مسلمانانو ته ورتللو، د هغوی ملاقات به يې

---

(۱) خوري ملغلرې لمولانا محمد يونس پالنپوري ص۸۸ رومبی حصه.

(۲) شرح السنة للبغوي كتاب الفَضَائِل بَاب تواضعه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳۶۷۳، مشكوة المصابيح كتاب الفَضَائِل وَالشَّمَائِل بَابُ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم الفصل الثاني رقم الحديث ۵۸۲۱(۲۱).

(۳) (وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ) وَهٰذَا كُلُّهُ يَدُلُّ عَلَى كَمَالِ التَّوَاضُعِ لِلْحَقِّ وَحُسْنِ الْخُلُقِ فِي مُعَاشَرَةِ الْخَلْقِ. مرقاة المفاتيح كِتَابُ اللِّبَاسِ ج ۹ ص ۳۷۱۷ في تشريح حديث ۵۸۲۱.

(۴) المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ۳۷۳۵ وقال الحاكم: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ، و وافقه الذهبي. شعب الايمان رقم الحديث ۸۸۰۹، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۲۷۵، كنزالعمال ۱۸۴۹۱، وصححه الالباني في "الصحيحة" رقم الحديث ۲۱۱۲.

کولو ، د هغوی د مریضانو بیمارپُرسي به یې کوله ، او د هغوی په جنازو کې به حاضریدو .

## نبي ﷺ به د هر چا سره تللو او د هغوی حاجت به یې پوره کولو

په نبي علیه السلام کې دومره تواضع وه چې د هر چا سره به تللو او د هغوی حاجت به یې پوره کولو :

## ۱ . د کنډې او یتیم سره تلل

حضرت عبدالله بن ابي اَوفیٰ رضي الله عنه د رسولُ الله ﷺ (د اخلاقو) په باره کې فرمایي :

.... وَلَا يَأْنَفُ أَنْ يَمْشِيَ مَعَ الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِيْنِ فَيَقْضِيَ لَهُ الْحَاجَةَ . (۱)

نبي علیه السلام به په دې کې شرم (او تکبّر) نه کولو چې د کُنډې او مسکین سره لاړ شي او د هغوی حاجت پوره کړي .

(یعنی د کُنډې او مسکین سره به تللو ، د هغوی کار به یې کولو ، او په دې کې به یې څه شرم نه محسوسولو) .

## ۲ . د کمزوري دِماغ واله زَنانه ضرورت پوره کول

د مسلم شریف حدیث دی ، حضرت انس رضي الله عنه فرمایي چې د یوې زَنانه په عقل کې څه کمزوري او نقصان وُ ، هغې نبي علیه السلام ته وویل : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ لِيْ إِلَيْكَ حَاجَةً .

اې د الله رسوله ! زما تاته څه حاجت دی (چې د خلقو د وړاندې یې درته نشم ویلی) .

نبي علیه السلام ورته اوفرمایل :

---

(۱) پوره حدیث داسي دی ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى رضي الله عنه ، يَقُوْلُ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ الذِّكْرَ ، وَيُقِلُّ اللَّغْوَ ، وَيُطِيْلُ الصَّلَاةَ ، وَيُقَصِّرُ الْخُطْبَةَ ، وَلَا يَأْنَفُ أَنْ يَمْشِيَ مَعَ الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِيْنِ فَيَقْضِيَ لَهُ الْحَاجَةَ . سنن النسائي كِتَابُ الْجُمُعَةِ بَابُ مَا يُسْتَحَبُّ مِنْ تَقْصِيْرِ الْخُطْبَةِ رقم الحديث ۱۴۱۴ قال الالباني : صحيح . شعب الايمان رقم الحديث ۷۷۶۱ ، مشكوة المصابيح كتاب الفَضَائِلِ وَالشَّمَائِلِ بَابٌ فِيْ أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم الفصل الثالث رقم الحديث ۵۸۳۳(۳۳) ، سنن الدارمي رقم الحديث ۷۵ ، صحيح ابن حبان محققا رقم الحديث ۶۴۲۳ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۸۱۹۷ ، الآداب للبيهقي رقم الحديث ۹۸ ، كنز العمال رقم الحديث ۱۷۹۸۱ .

يَا أُمَّ فُلَانٍ ! أُنْظُرِيْ أَيَّ السِّكَكِ شِئْتِ حَتّٰى أَقْضِيَ لَكِ حَاجَتَكِ .

اې د فلانکي مورې ! ته يوه کوڅه او کوره کومه چې ستا خوښه وي چې زه ستا حاجت پوره کرم ( يعنی ستا خبره واورم ) .

پس نبي عليه السلام د هغې سره په يوه لاره کې ځانله شو ، تر دې چې دا زنانه د خپل حاجت نه فارغه شوه .

( يعنی نبي عليه السلام د لارې نه يو څنډې ته ددې سره اودريد ، هغې څه پوښتنې اوکړی او نبي عليه السلام جواب ورکړو ) . (۱)

## ۳ . د وينځې سره تلل

د بخاري شريف حديث دی ، حضرت انس بن مالک ﷺ فرمايي :

إِنْ كَانَتِ الْأَمَةُ مِنْ إِمَاءِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَتَأْخُذُ بِيَدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَنْطَلِقُ بِهٖ حَيْثُ شَاءَتْ .

که چيرته د مدينې منورې په وينځو کې به يوې وينځې د رسول الله صلی الله عليه وسلم لاس اونيولو نو چيرته به چې هغې غوښتل نبي عليه السلام به يې د ځان سره بوتلو ( ددې د پاره چې هلته ورته خپل ضرورت او پريشاني بيان کړي ) . (۲)

---

(۱) عَنْ أَنَسٍ ﷺ أَنَّ امْرَأَةً كَانَ فِيْ عَقْلِهَا شَيْءٌ . فَقَالَتْ : يَا رَسُوْلَ اللهِ ! إِنَّ لِيْ إِلَيْكَ حَاجَةً . فَقَالَ : يَا أُمَّ فُلَانٍ ! أُنْظُرِيْ أَيَّ السِّكَكِ شِئْتِ حَتّٰى أَقْضِيَ لَكِ حَاجَتَكِ . فَخَلَا مَعَهَا فِيْ بَعْضِ الطُّرُقِ . حَتّٰى فَرَغَتْ مِنْ حَاجَتِهَا . صحيح مسلم كتاب الفَضَائِلِ بَابُ قُرْبِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ مِنَ النَّاسِ وَتَبَرُّكِهِمْ بِهٖ رقم الحديث ۷۶ (۲۳۲۶) ، مسند احمد مخرجا رقم الحديث ۱۴۰۴۶ ، و رقم الحديث ۱۲۱۹۷ ، و رقم الحديث ۱۳۲۴۱ ، سنن ابي داؤد كِتَابُ الأَدَبِ بَابٌ فِي الْجُلُوْسِ فِي الطُّرُقَاتِ رقم الحديث ۴۸۱۸ ، صحيح ابن حبان رقم الحديث ۴۵۲۷ ، مسند البزار رقم الحديث ۶۹۷۴ ، و رقم الحديث ۶۵۸۰ ، المعجم الاوسط رقم الحديث ۳۱۳۲ ، شرح السنّة للبغوي باب تواضعه صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۳۶۷۲ ، كنز العمال رقم الحديث ۳۲۰۰۸ .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ الأَدَبِ بَابُ الكِبْرِ رقم الحديث ۶۰۷۲ ، مشكوة المصابيح كتاب الفَضَائِلِ وَالشَّمَائِلِ بَابٌ فِيْ أَخْلَاقِهٖ وَشَمَائِلِهٖ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفَصْلُ الأَول رقم الحديث ۵۸۰۹(۹) ، شرح السنّة للبغوي باب تواضعه صلى الله عليه وسلم رقم الحديث ۳۶۷۲ .

**نوټ** : د لاس نيولو مطلب دادی چې دې وينځې به د نبي عليه السلام نه مدد طلب کړو ، دوی به د هغې خبرې ته لبّيک وويل او د هغې کار به يې کولو ، دا مطلب ندی چې گني د نبي عليه السلام لاس مبارک به ددې د لاس سره اُولږيد .

او دا د نبي عليه السلام په اِنتهائي درجه تواضع باندې دلالت کوي ۰ (۱)

## ٤ . حضرت جابر ﷺ سره تلل

د بخاري شريف حديث دی ، حضرت جابر ﷺ فرمايي چې زما پلار (عبدالله ﷺ په غزوه اُحد کې ) شهيد شو او په هغه باندې د خلقو قرضونه وو ، زه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شوم او ورته مې وويل :

زما په پلار باندې ډير قرضونه وو او د ما سره خو د قجورو د پيداوار نه علاوه بل هيڅ نشته ، او په دې قجورو سره خو په کلونو کلونو هم د هغه قرضه نه اَداء کيږي .

فَانْطَلِقْ مَعِيْ لِكَيْ لَا يُفْحِشَ عَلَيَّ الْغُرَمَاءُ .

پس تاسو د ما سره لاړ شئ ددې د پاره چې قرض خواهان د ما سره سخته معامله اُونکړي.

( نبي عليه السلام ورسره لاړ ) ، حضرت جابر ﷺ چې د قجورو کوم ډِهيري جوړ کړي وو نبي عليه السلام په هغې کې د يو ډهيري نه گېرچاپيره تاوُ شو او دُعا يې اوکړه ، بيا د بل ډِهيري نه گېرچاپيره اُوگرځيد ، بيا هلته کيناست ، او وې فرمايل :

قجورې رااُوباسه او دې قرض خواهانو ته يې ورکوه .

---

(۱) (كَانَتْ أَمَةٌ) أَيْ: جَارِيَةٌ (مِنْ إِمَاءِ أَهْلِ الْمَدِيْنَةِ) أَيْ: فَرْضًا وَتَقْدِيْرًا تَأْخُذُ يَدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : قِيْلَ : اَلْمُرَادُ مِنَ الْأَخْذِ بِالْيَدِ لَازِمُهُ وَهُوَ الرِّفْقُ (فَتَنْطَلِقُ بِهِ حَيْثُ شَاءَتْ) أَيْ: وَلَوْ خَارِجَ الْمَدِيْنَةِ. وَهٰذَا يَدُلُّ عَلٰى غَايَةِ تَوَاضُعِهِ مَعَ الْخَلْقِ وَنِهَايَةِ تَسْلِيْمِهِ مَعَ الْحَقِّ . مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۷۱۳ في تشريح حديث ۵۸۰۹ .

(لَتَأْخُذُ بِيَدِهِ) أي تطلب مساعدته فيلبي طلبها وينقاد لها ، وليس المراد مسك يده . (فتنطلق به) تذهب ويذهب معها إذا احتاجت مساعدتها للذهاب. (حيث شاءت) أي موضع من مواضع المدينة يكون قضاء حاجتها فيه . تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري

پس نبي عليه السلام د هغوی ټولو قرضه هم اَداء کړه او څومره قجورې يې چې هغوی ته (په قرض کې) ورکړې وی هغومره پاتې هم شوی. (دا د نبي عليه السلام مُعجزه او د دُعاګانو برکت وو). (١)

## د صحابي د جواب د پاره د خُطبې په دَوران کې د ممبر نه راښکته کيدل

د مسلم شريف حديث دی، حضرت ابورفاعة ﷺ فرمايي چې زه رسولُ الله صلی الله عليه وسلم ته په داسې حالت کې راأورسيدم چې دوی خطبه ويله، ما ورته وويل:

يَا رَسُوْلَ اللهِ! رَجُلٌ غَرِيْبٌ جَاءَ يَسْأَلُ عَنْ دِيْنِهِ. لَا يَدْرِيْ مَا دِيْنُهُ؟

اې د الله رسوله! يو غريب (مسافر) سړی راغلی د خپل دِين متعلق پوښتنه کوي، دا نه پوهيږي چې دده دِين څه شی دی؟

پس رسولُ الله ﷺ ما طرف ته رامتوجّه شو خپله خطبه يې پريخوده، تردې چې ماته راأورسيد، بيا يوه کُرسی راوړې شوه زما دا ګمان دی چې د هغې خپې د أوسپنې وی، نبي ﷺ په هغې باندې کيناست او کوم عِلم چې ورته الله ﷻ ورکړې وو د هغې نه يې ماته خودل شروع کړل، بيا خپلې خطبې ته ورغلو او هغه يې آخِر ته أورسوله. (٢)

---

(١) عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ أَبَاهُ تُوُفِّيَ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ. فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: إِنَّ أَبِي تَرَكَ عَلَيْهِ دَيْنًا، وَلَيْسَ عِنْدِي إِلَّا مَا يُخْرِجُ نَخْلُهُ، وَلَا يَبْلُغُ مَا يُخْرِجُ سِنِينَ مَا عَلَيْهِ. فَانْطَلِقْ مَعِي لِكَيْ لَا يُفْحِشَ عَلَيَّ الغُرَمَاءُ. فَمَشَى حَوْلَ بَيْدَرٍ مِنْ بَيَادِرِ التَّمْرِ فَدَعَا. ثُمَّ آخَرَ. ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ. فَقَالَ: «انْزِعُوهُ» فَأَوْفَاهُمُ الَّذِي لَهُمْ وَبَقِيَ مِثْلُ مَا أَعْطَاهُمْ. صحيح البخاري رقم الحديث ٣٥٨٠.

(٢) قَالَ أَبُوْ رِفَاعَةَ ﷺ: اِنْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ، قَالَ: فَقُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! رَجُلٌ غَرِيْبٌ جَاءَ يَسْأَلُ عَنْ دِيْنِهِ، لَا يَدْرِيْ مَا دِيْنُهُ؟ قَالَ: فَأَقْبَلَ عَلَيَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَرَكَ خُطْبَتَهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَيَّ. فَأُتِيَ بِكُرْسِيٍّ. حَسِبْتُ قَوَائِمَهُ حَدِيْدًا. قَالَ: فَقَعَدَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعَلَ يُعَلِّمُنِيْ مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ. ثُمَّ أَتَى خُطْبَتَهُ. فَأَتَمَّ آخِرَهَا. صحيح مسلم كِتَابُ الجُمُعَةِ بَابُ حَدِيثِ التَّعْلِيمِ فِي الخُطْبَةِ رقم الحديث ٦٠ (٨٧٦)، الادب المفرد مخرجا للبخاري رقم الحديث ١١٦٤ باب الجلوس على السرير، سنن النسائي الجلوس على الكرسي رقم الحديث ٥٣٧٧، المستدرک على الصحيحين للحاكم رقم الحديث ١٠٥٥، مسند احمد رقم الحديث ٢٠٧٥٣.

**تشریح** : امام نووي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي : ددې حدیث نه معلومه شوه چې د تپوس کوونکي د پاره دا مستحب دي چې د عالِم نه په نرمۍ سره پوښتنه اوکړي .

ددې حدیث نه بل د نبي علیه السلام تواضع او د مسلمانانو سره نرمي او شفقت هم معلوم شو .

بله خبره ورنه دا هم معلومه شوه چې تپوس کوونکي ته سمدَستي جواب ورکول په کار دي ، او اَهم اُمور رامخکې کول په کار دي .

کیدې شي حضرت ابورفاعه ﷺ د اِیمان او د اِیمان د ضروري قواعدو متعلق پوښتنه کړې وه او په دې باندې د علماؤ اتفاق دی چې کله یو کس راشي او په اسلام کې د داخلیدو متعلق پوښتنه اوکړي نو هغه ته سمدستي جواب ورکول واجب دي .

نبي علیه السلام چې ده ته خطبه پریخوده نو کیدې شي دا د جُمعې د خُطبې نه علاوه بله خطبه وه څکه یې په مینځ کې قطع کړه .

یا کیدې شي دا د جُمعې خطبه وه خو پیغمبر علیه السلام دوباره د سَر نه راګرځولې وي .

دا اِحتمال هم شته چې نبي علیه السلام اُوږده فاصله په کې نه وي راوستي .

او دا اِحتمال هم شته چې دې صحابي داسې پوښتنه کړې وي چې د همدې خطبې سره یې تعلق لرو ، نو دا هم په خطبه کې داخل وُ . (۱)

---

(۱) وَقَوْلُهُ " رَجُلٌ غَرِيبٌ يَسْأَلُ عَنْ دِينِهِ لَا يَدْرِي مَا دِينُهُ " فِيهِ اسْتِحْبَابُ تَلَطُّفِ السَّائِلِ فِي عِبَارَتِهِ وَسُؤَالِهِ الْعَالِمَ . وَفِيهِ تَوَاضُعُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِفْقُهُ بِالْمُسْلِمِينَ وَشَفَقَتُهُ عَلَيْهِمْ وَخَفْضُ جَنَاحِهِ لَهُمْ . وَفِيهِ الْمُبَادَرَةُ إِلَى جَوَابِ الْمُسْتَفْتِي وَتَقْدِيمُ أَهَمِّ الْأُمُورِ فَأَهَمِّهَا . وَلَعَلَّهُ كَانَ سَأَلَ عَنِ الْإِيمَانِ وَقَوَاعِدِهِ الْمُهِمَّةِ وَقَدِ اتَّفَقَ الْعُلَمَاءُ عَلَى أَنَّ مَنْ جَاءَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِيمَانِ وَكَيْفِيَّةِ الدُّخُولِ فِي الْإِسْلَامِ وَجَبَ إِجَابَتُهُ وَتَعْلِيمُهُ عَلَى الْفَوْرِ . وَقُعُودُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْكُرْسِيِّ لِيَسْمَعَ الْبَاقُونَ كَلَامَهُ وَيَرَوْا شَخْصَهُ الْكَرِيمَ وَيُقَالُ كُرْسِيٌّ بِضَمِّ الْكَافِ وَكَسْرِهَا وَالضَّمُّ أَشْهَرُ . وَيَحْتَمِلُ أَنَّ هٰذِهِ الْخُطْبَةَ الَّتِي كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا خُطْبَةُ أَمْرٍ غَيْرِ الْجُمُعَةِ وَلِهٰذَا قَطَعَهَا بِهٰذَا الْفَصْلِ الطَّوِيلِ . وَيَحْتَمِلُ أَنَّهَا كَانَتِ الْجُمُعَةَ وَاسْتَأْنَفَهَا . وَيَحْتَمِلُ أَنَّهُ لَمْ يَحْصُلْ فَصْلٌ طَوِيلٌ . وَيَحْتَمِلُ أَنَّ كَلَامَهُ لِهٰذَا الْغَرِيبِ كَانَ مُتَعَلِّقًا بِالْخُطْبَةِ فَيَكُونُ مِنْهَا وَلَا يَضُرُّ الْمَشْيُ فِي أَثْنَائِهَا .

المنهاج شرح صحیح مسلم بن الحجاج ( شرح النووي على مسلم ) ج ٦ ص ١٦٥ كتاب الجمعة .

# نبي عليه السلام به معمولي دَعوت هم قبلول

په نبي كريم صلى الله عليه وسلم كې داسې تواضع وه چې كه يو غلام به ورته د خوراك دعوت وركړو نو هغه به يې هم قبلولو .(۱)

او كه چا به د يو معمولي څيز دعوت وركړو يا به يې ورته هبه كړو نو هغه به يې هم قبلول

نبي ﷺ فرمايي : لَوْ دُعِيتُ إِلَى ذِرَاعٍ أَوْ كُرَاعٍ لَأَجَبْتُ ، وَلَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ ذِرَاعٌ أَوْ كُرَاعٌ لَقَبِلْتُ .

كه چيرته زه د حيوان د لِيچي (لاس) يا پنډۍ غوښې طرف ته اُوبللې شم نو زه به يې ضرور قبول كړم ، او كه چيرته ماته د حيوان د لیچي يا پنډۍ غوښه هديه راكړې شي نو زه به يې خامخا قبول كړم .(۲)

# نبي عليه السلام سره هر چا په آسانه ملاقات كولې شو

د حضور صلى الله عليه وسلم په دَروازه كې دَربانچي (پهره دار) او څه مانِع نه وُ هر چا چې ورسره ملاقات كول غوښتل نو په آسانه يې ورسره كولې شو ، په زمكه به ناست وُ ، خوراك يې هم په زمكه كولو ، د خوراك نه پس به يې خپلې ګوتې څټلې ، خپل څاروي ته يې ګياه پخپله اچوله ، او نور ډير د تواضع كارونه يې كول .(۳)

---

(۱) ... وَيُجِيبُ دَعْوَةَ الْمَمْلُوكِ . د غلام دَعوت به يې هم قبلولو . شرح السنة للبغوي كتاب الفَضَائِل باب تواضعه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم ۳۶۷۳ ، مشكوة المصابيح بَابٌ فِي أَخْلَاقِهِ وَشَمَائِلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الفصل الثاني رقم ۵۸۲۱(۲۱) .

(۲) صحيح البخاري كِتَابُ الهِبَةِ وَفَضْلِهَا وَالتَّحْرِيضِ عَلَيْهَا بَابُ القَلِيلِ مِنَ الهِبَةِ رقم الحديث ۲۵۶۸ ، و رقم الحديث ۵۱۷۸ كِتَابُ النِّكَاحِ بَابُ مَنْ أَجَابَ إِلَى كُرَاعٍ .

(۳) حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كوم اخلاق ذكر كړي په هغې كې دا دې تذكره هم شته :

عَنِ الْحَسَنِ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ ذَكَرَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ فَقَالَ : لَا وَاللهِ مَا كَانَتْ تُغْلَقُ دُونَهُ الْأَبْوَابُ ، وَلَا تَقُومُ دُونَهُ الْحَجَبَةُ ، وَلَا يُغْدَى عَلَيْهِ بِالْجِفَانِ ، وَلَا يُرَاحُ عَلَيْهِ بِهَا ، وَلَكِنَّهُ كَانَ بَارِزًا ، مَنْ أَرَادَ أَنْ يَلْقَى نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَهُ ، وَكَانَ وَاللهِ يَجْلِسُ بِالْأَرْضِ ، وَيُوضَعُ طَعَامُهُ بِالْأَرْضِ ، وَيَلْبَسُ الْغَلِيظَ ، وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ ، وَيُرْدِفُ بَعْدَهُ ، وَيَلْعَقُ وَاللهِ يَدَهُ . الزهد والرقائق لابن المبارك ج۱ ص ۲۰۱ رقم ۵۷۵ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْفَقْرِ

په صفة الصفوة كې ورسره نوره اِضافه هم شته ...... ويركب الحمار ، ويردف عبده ، ويعلف دابته بيده صلى الله عليه وسلم . صفة الصفوة ج۱ ص ۶۷ باب ذكر نبينا محمد صلى الله عليه وسلم وذكر نسبه .

په اِبتداء کې به نبي عليه السلام د صحابه کرامو سره په زمکه يو شان ناست وُ خو چې څوک نوې کس به راغی نو هغه به بيا نه پېژندو چې په دوی کې نبي عليه السلام کوم دی؟ بيا صحابه کرامو دوی له د خټو نه لږ اُوچت ځای جوړ کړو ، نبي عليه السلام به په هغې ناست وُ او صحابه کرام رضي الله عنهم به ورنه ګير چاپيره ناست وو ، په احاديثو کې ددې تذکره شته :

په ابوداؤد شريف کې دا حديث ذکر دی حضرت ابوذر رضي الله عنه او حضرت ابوهريرة رضي الله عنه (دواړه) فرمايي چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم به د صحابه کرامو په مينځ کې ناست وُ چې نوې کس به راغی نو دا به يې نه پېژندو چې په دوی کې پيغمبر څوک دی؟ تر دې چې هغه به پوښتنه اوکړه (نو بيا به يې اُوپېژندو).

پس مونږ (صحابه کرامو) دا اُوغوښتل چې رسولُ الله صلى الله عليه وسلم له داسې ځای جوړ کړو چې نوې کس راشي هغه دا اُوپېژني چې دا پيغمبر دی.

راوي د حديث وايي چې مونږ نبي عليه السلام له د خټې نه چوترۀ (يعنې اُوچت ځای) جوړ کړو ، پس دوی به بيا په هغې باندې ناست وُ او مونږ (صحابه کرام) به ورنه ګير چاپيره ناست وو . (۱)

## حضرت موسیٰ عليه السلام ته د تواضع په وجه د الله تعالی سره د همکلامۍ شرف حاصل شو

ابوسليمان داراني رحمه الله فرمايي چې الله تعالی د بني آدمو زړونو ته اُوکتل نو د حضرت موسیٰ عليه السلام نه زيات د تواضع واله زړه يې د بل چا اُو نه موند :

فَخَصَّهُ بِالْكَلَامِ لِتَوَاضُعِهِ .

نو الله تعالی دا د تواضع په وجه د همکلامۍ د پاره خاص کړو .

---

(۱) عَنْ أَبِي ذَرٍّ رضي الله عنه ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَا: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْلِسُ بَيْنَ ظَهْرَيْ أَصْحَابِهِ، فَيَجِيءُ الْغَرِيْبُ فَلَا يَدْرِيْ أَيُّهُمْ هُوَ حَتّٰى يَسْأَلَ ، فَطَلَبْنَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَجْعَلَ لَهُ مَجْلِسًا يَعْرِفُهُ الْغَرِيْبُ إِذَا أَتَاهُ، قَالَ : فَبَنَيْنَا لَهُ دُكَّانًا مِنْ طِيْنٍ . فَجَلَسَ عَلَيْهِ . وَكُنَّا نَجْلِسُ بِجَنْبَتَيْهِ ... سنن ابي داود كِتَاب السُّنَّةِ بَابٌ فِي الْقَدَرِ رقم الحديث ۴۶۹۸ . قال الالباني: صحيح.

( یعنی دده د تواضع په وجه یې په دُنیا کې خاص دده سره خبرې اوکړی ) . (۱)

# د صحابه کرامو تواضع

لکه څرنګې چې په نبي کریم صلی الله علیه وسلم کې تواضع وه نو همدغه شان صحابه کرام هم د هغوی په نقشِ قدم باندې روان وو ، په دوی کې هم ډیره تواضع وه .

د یو څو صحابه کرامو د تواضع تذکره درته کوم :

## د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه تواضع

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه هغه عظیم شخصیت ؤ چې په دُنیا کې ورته د جنت زیرې ملاؤ شوې ؤ ، په غارِ ثور کې د نبي علیه السلام ملګرې ؤ ، د پیغمبر علیه السلام پسې اَوّلنې خلیفه ؤ ، خو ددې باوجود په کې ډیره تواضع وه ، دا به یې فرمایل :

وَدِدْتُ أَنِّيْ شَعْرَةٌ فِيْ جَنْبِ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ . (۲)

کاش چې زه د مؤمِن بنده په اَړخ کې یو ویښته وی .

## حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به د ګاونډیانو د پاره ګډې لوَشلی

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به د خپلې محلې واله ( ګاونډیانو ) د پاره ګډې لوشلی .

کله چې دده سره د خلافت بیعت اوشو ( یعنی د مسلمانانو خلیفه شو ) نو د کلي یوې جِینۍ ( وینځې ) وویل :

اوس به دا مونږ له زمونږ د کور لنګ څاروي نه رالوَشي .

---

(۱) عَنْ أَبِيْ سُلَيْمَانَ رَحِمَهُ اللهُ . يَقُوْلُ : إِنَّ اللهَ تَعَالٰى اطَّلَعَ عَلٰى قُلُوْبِ الْآدَمِيِّيْنَ، فَلَمْ يَجِدْ قَلْبًا أَشَدَّ تَوَاضُعًا مِنْ قَلْبِ مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ. فَخَصَّهُ بِالْكَلَامِ لِتَوَاضُعِهِ . شعب الایمان رقم الحدیث ۷۸۶۹ حسن الخلق فصل فی التواضع ، مکارم الاخلاق للخرائطي رقم الحدیث ۷۳۴ باب ما یستحب من التواضع فی المجلس وغیره ، احیاء علوم الدین ج۳ ص ۳۴۲ بیان فضیلة التواضع ، الدرالمنثور فی التفسیر بالماثور ج۳ ص ۵۴۲ ، صلاح الأمة ج۷ ص ۳٦٦ .

(۲) الزهد لاحمد بن حنبل ج۱ ص ۹۰ رقم ۵٦۰ ، کنزالعمال رقم الحدیث ۳۵۷۰۰ خوفه رضي الله عنه ، المنتظم لابن الجوزي ۶۳/۴ ، الجامع لعلوم الامام احمد ج ۲۰ ص ۴۵۷ رقم ۳۲۳ ، صلاح الأمة ج ۷ ص ۳٦۷ ، موسوعة الاخلاق الاسلامیة ج۱ ص ۱٦۴ .

حضرت ابوبکر صدیق ﷺ چې دا خبره واوریده نو وې فرمایل :

بَلَى لَعَمْرِيْ لَأَحْلِبَنَّهَا لَكُمْ، وَإِنِّي لَأَرْجُوْ أَنْ لَا يُغَيِّرَنِي مَا دَخَلْتُ فِيْهِ عَنْ خُلُقٍ كُنْتُ عَلَيْهِ .

ولې نه، زما دې په خپل عُمر قسَم وي چې زه به خامخا د تاسو د پاره څاروي رالوَشم، او زما اُمید دی چې دا زه په کوم کار کې داخل شوې یم دا به ما د هغه اخلاقو نه بدل نکړي په کومو باندې چې زه مخکې ووم .

نو حضرت ابوبکر صدیق ﷺ بیا هم د هغوی د پاره ګډې لوَشلی . (۱)

## د بوډۍ خدمت کول

کله چې حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د مسلمانانو خلیفه وُ ، نو یو ځل حضرت عُمر ﷺ دده دَربار ته راغی ، دلته په دَربار کې د مدینې منوّرې د غریبانانو او کمزورو خلقو فهرست پروت وُ ، په دې کې لیکلي شوي وو :

" په فلانکي ځای کې بودا سړې دی ، په فلانکي ځای کې بُوډۍ ښځه ده ، په فلانکي ځای کې بیمار کس دی ، د دوی د خدمت خپل څوک نشته " .

بیا کومو مسلمانانو چې د دوی د خدمت ذِمه واري قبوله کړې وه د هغوی نومونه ددې خلقو نومونو ته مخامخ لیکل شوي وو .

حضرت عُمر ﷺ چې دا فهرست (لِسټ) ټول اوکتلو نو د یوې بُوډۍ د نوم مخامخ د هیچا نوم نهٔ وُ لیکلې شوی ، د هغې بُوډۍ خدمت داوُ چې هغې له به د بهر نه اُوبه راوړل وو او کور به ورله جارُو کول وو .

حضرت عمر ﷺ په زړه کې اِراده اوکړه چې زه به ددې بوډۍ د پاره دا دوه کارونه کوم .

نو په راتلونکې ورځ د سهَر مانځه نه پس حضرت عمر ﷺ د هغې بُوډۍ کور ته ورغی ،

---

(۱) ..... وكان يحلب للحيّ أغنامهم ، فلمّا بُويع له بالخلافة ، قالت جارية من الحيّ : اَلآنَ لَا تَحْلِبُ لَنَا مَنَائِحَ دَارِنَا . فسمعها أبو بكر ، فقال : بَلَى لَعَمْرِيْ لَأَحْلِبَنَّهَا لَكُمْ ، وَإِنِّي لَأَرْجُوْ أَنْ لَا يُغَيِّرَنِي مَا دَخَلْتُ فِيْهِ عَنْ خُلُقٍ كُنْتُ عَلَيْهِ . فكان يحلب لهم . كنزالعمال كتاب الخلافة مع الامارة الباب الاول في خلافة الخلفاء رقم الحديث ۱۴۰۷۷ . صفة الصفوة ج ۱ ص ۹۷ ابو بكر الصديق رضي الله عنه ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۱۶۴ نماذج من تواضع الصحابة رضوان الله عليهم .

دروازه یې ورته اُوټکوله ، او ورته وې ویل : مورې ! زه ستا خدمت د پاره راغلې یم .
بُوډۍ ورته وویل : زما خدمت یو کس کړې دی ، زما د پاره صرف د بهَر نه اُوبه راوړل او کور جارو کول دي ، دا دواړه کارونه هغه کړي دي او د کور نور کارونه زه په خپله کوم .

حضرت عمر ﷺ ورته وویل : مورې ! دا خدمت تاله څوک کوي ؟

هغې ورته وویل : زه هغه نه پیژنم ، ځکه ما تر اوسه هغه ندې لیدلی .

حضرت عمر ﷺ ورنه پوښتنه اوکړه : د هغه څه نوم دی ؟ بُوډۍ ورته وویل : ما ته تر اوسه هغه خپل نوم ندې خودلی . ځکه هغه چې کله راشي نو دا آواز اوکړي :

" د خدمت واله راغلی دی " . زه پَرده اوکړم ، هغه اُوبه راوړي ، زمکه جارو کړي ، نور واپس لاړ شي ، د تللو په وخت صرف دا اُووایي : " زه لاړم ، اوس پَرده ختمه کړئ " .

هغه د ډیرې زَمانې نه دا خدمت کوي خو ما تر اوسه نه د هغه شکل لیدلې دی ، او نه ماته د هغه نوم معلوم دی . حضرت عمر ﷺ چې دا خبره واوریده نو حیران شو .

په راتلونکي ورځ باندې چې کله ده د تهجدو مونځ اوکړو نو د بوډۍ کور ته راغی ، دروازه یې اُوټکوله او وې ویل : زه د خدمت د پاره راغلې یم .

بوډۍ ورته وویل : خدمت کوونکی راغلی وُ ، خدمت یې اوکړو او لاړ .

حضرت عمر ﷺ حیران شو چې دا څوک دومره د وَخته راغلی وُ ؟

په راتلونکي ورځ چې کله ده د ماسخوتن مونځ اوکړو نو راغی او د بوډۍ د کور په لاره کې پټ کیناست ، ددې د پاره چې اوګوري چې دا مُخلِص کس څوک دی ؟ ( چې د دومره زیاتې زمانې نه په پټه باندې د بوډۍ خدمت کوي ) .

پس کله چې ټول خلق اُوده شو ، او شپه بنه تیاره شوه نو ده یو کس اُولید چې بغیر د څپلو نه (پیاده) د بوډۍ کور طرف ته رارواں دی ، کله چې د بوډۍ کور ته رانزدې شو نو حضرت عمر ﷺ ورپاڅید ، پوښتنه یې ورنه اوکړه : ته څوک یې ؟

هغه ورته وویل : زه ابوبکر یم .

حضرت عمر ﷺ حیران شو ، پوښتنه یې ورنه اوکړه : اې امیرُالمؤمنین ! تاسو ځانله په دې وخت کې دلته څنګه تشریف راوړو ؟

حضرت ابوبکر صديق ﷺ ورته وويل : ددې بوډۍ خدمت ما په خپله ذمه باندې اخيستې دى نو ځکه راغلم.

ده ورته پوښتنه اوکړه : اې اميرُ المؤمنين ! تاسو څپلۍ څه کړې چې بَرَبَنډې خپې پياده راروان يَى ؟

حضرت ابوبکر صديق ﷺ ورته وويل : څپلۍ ما په کور کې پرېخې ، او بَرَبَنډې خپې پياده ددې د پاره راځم چې زما د خپو د آواز په وجه د چا په خوب کې خَلَل رانشي . (۱)

**فائده** : سبحان الله ، په حضرت ابوبکرصديق ﷺ کې دومره تواضع وه چې د خلافت باوجود يې د بُوډۍ خدمت کولو .

# د حضرت عُمر ﷺ تواضع

حضرت عُمر ﷺ جليلُ القدر صحابي وُ ، د دوی په لاس باندې ډير ملکونه فتح شوي دي ، د مسلمانانو دويم خليفه وُ خو ددې باوجود په کې ډيره تواضع وه ، د يو څو واقعاتو نه به تاسو ته د دوی تواضع معلومه شي :

## ۱ . شام ته د تللو په وخت تواضع

کله چې حضرت عُمر ﷺ اميرُالمؤمنين وُ او د صحابه کرامو په مشوره باندې فلسطين ته روان شو نو ده سره يو غلام وُ او يوه ورسره اُوښه وه ، په خپل مينځ کې يې سره نمبر مقرر کړو چې : يو فرسخ به زه په اُوښه باندې سوريم ، يو فرسخ به ته په اُوښه باندې سور يې ، او يو فرسخ به اُوښه همداسې خالي روانه وي .

نو حضرت عُمر ﷺ په اُوښه باندې سور شو ، غلام د اُوښې واګې نيولې وی ، بيا بل فرسخ غلام په اُوښه باندې سور شو حضرت عُمر ﷺ د اُوښې واګې نيولې وی ، (کله چې شام ته اُورسيدل نو په اُوښه باندې د سوريدو نمبر د غلام وُ نو غلام په اُوښه سور شو ) په لاره کې اُوبه مخې ته راغلې ، حضرت عُمر ﷺ د چَپ (ګَس ) لاس په تخرګ کې خپلې څپلۍ

(۱) اللہ والوں کے قلوب کو یادیے والے واقعات ج ۳ ص ۲۸۳ .

نيولې وی او په يو لاس کې يې د اُوښې واګې نيولې وی ( او په بَدن باندې يې پيوَند شوې کپړې وی ) . په دې وخت کې د شام امير " حضرت ابو عبيده بن جراح رضي الله عنه " د حضرت عُمر رضي الله عنه مخې ته (د استقبال د پاره) راغی ، (ده چې حضرت عُمر رضي الله عنه په دې حالت باندې اُوليد ) نو ورته وې ويل :

يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! إِنَّ عُظَمَاءَ الشَّامِ يَخْرُجُوْنَ إِلَيْكَ. فَلَا يَحْسُنُ أَنْ يَرَوْكَ عَلٰى هٰذِهِ الْحَالَةِ .

اې اميرالمؤمنين ! بيشکه ستاسو استقبال ته د شام غټ غټ سرداران راغلي دي ، دا مناسب نده چې هغوی تاسو په دې حالت کې اُوګوري .

حضرت عُمر رضي الله عنه ورته اوفرمايل : إِنَّمَا أَعَزَّنَا اللهُ تَعَالٰى بِالْإِسْلَامِ. فَلَا نُبَالِيْ مِنْ مَقَالَةِ النَّاسِ .
بيشکه الله تعالی مونږ ته د اسلام په وجه عزت راکړی نو د خلقو د خبرو څه پَرواه نه کوو . (۱)

---

(۱) وَ رُوِيَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ جَعَلَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُلَامِهِ مُنَاوَبَةً فَكَانَ يَرْكَبُ النَّاقَةَ وَيَأْخُذُ الْغُلَامُ بِزِمَامِ النَّاقَةِ وَيَسِيْرُ مِقْدَارَ فَرْسَخٍ. ثُمَّ يَنْزِلُ نَوْبَةَ رُكُوْبِ الْغُلَامِ. فَرَكِبَ الْغُلَامُ وَأَخَذَ عُمَرُ رضي الله عنه بِزِمَامِ النَّاقَةِ. فَاسْتَقْبَلَهُ الْمَاءُ فِي الطَّرِيْقِ. فَجَعَلَ عُمَرُ رضي الله عنه يَخُوْضُ فِي الْمَاءِ وَنَعْلُهُ تَحْتَ إِبْطِهِ الْيُسْرٰى. وَهُوَ آخِذٌ بِزِمَامِ النَّاقَةِ. فَخَرَجَ أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ رضي الله عنه وَكَانَ أَمِيْرًا عَلَى الشَّامِ وَقَالَ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! إِنَّ عُظَمَاءَ الشَّامِ يَخْرُجُوْنَ إِلَيْكَ. فَلَا يَحْسُنُ أَنْ يَرَوْكَ عَلٰى هٰذِهِ الْحَالَةِ. فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهُ : إِنَّمَا أَعَزَّنَا اللهُ تَعَالٰى بِالْإِسْلَامِ. فَلَا نُبَالِيْ مِنْ مَقَالَةِ النَّاسِ. تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين ص ۱۸۷ بَابُ الْكِبْرِ

عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، قَالَ: خَرَجَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه إِلَى الشَّامِ ، وَمَعَنَا أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ رضي الله عنه فَأَتَوْا عَلٰى مَخَاضَةٍ وَعُمَرُ عَلٰى نَاقَةٍ لَهُ فَنَزَلَ عَنْهَا وَخَلَعَ خُفَّيْهِ فَوَضَعَهُمَا عَلٰى عَاتِقِهِ . وَأَخَذَ بِزِمَامِ نَاقَتِهِ فَخَاضَ بِهَا الْمَخَاضَةَ . فَقَالَ أَبُوْ عُبَيْدَةَ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! أَنْتَ تَفْعَلُ هٰذَا. تَخْلَعُ خُفَّيْكَ وَتَضَعُهُمَا عَلٰى عَاتِقِكَ. وَتَأْخُذُ بِزِمَامِ نَاقَتِكَ. وَتَخُوْضُ بِهَا الْمَخَاضَةَ ؟ مَا يَسُرُّنِيْ أَنَّ أَهْلَ الْبَلَدِ اسْتَشْرَفُوْكَ . فَقَالَ عُمَرُ : « أَوَّهْ لَوْ يَقُلْ ذَا غَيْرُكَ أَبَا عُبَيْدَةَ جَعَلْتُهُ نَكَالًا لِأُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا كُنَّا أَذَلَّ قَوْمٍ فَأَعَزَّنَا اللهُ بِالْإِسْلَامِ فَمَهْمَا نَطْلُبُ الْعِزَّةَ بِغَيْرِ مَا أَعَزَّنَا اللهُ بِهِ أَذَلَّنَا اللهُ » . المستدرک على الصحيحين للحاكم كِتَابُ الْإِيْمَانِ رقم الحديث ۲۰۷. وقال الحاكم : هٰذَا حَدِيْثٌ صَحِيْحٌ عَلٰى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ ، ووافقه الذهبي . شعب الايمان رقم ۷۸۴۷ حسن الخلق ، الترغيب والترهيب رقم ۲۸۹۳ (۴) كتاب الأدب وغيره الترغيب في التواضع والترهيب من الكبر والعجب والافتخار .

## ۲ . د صحابه كرامو د وړاندې د تواضع نه ډكې خبرې

حضرت عُمر ﷺ چې كله اميرُ المؤمنين ؤ نو دوى به كله د صحابه كرامو ﷺ د وړاندې د خپل ځان په باره كې داسې خبرې كولى چې په هغې سره به تكبّر او خُودپسندي ختميده.

يو ځل يې صحابه كرام ﷺ راغونډ كړل او د هغوى د وړاندې يې اوفرمايل چې :

" ما به د لړو قجورو او لړو اُوڅكو په عِوض كې تِوله ورځ ګډې څرولى " .

كله چې د حضرت عُمر ﷺ نه ددې په باره كې پوښتنه اوشوه چې ته خو اوس اميرُ المؤمنين يې نو تا ولې دا خبره اوكړه ؟ دوى ورته اوفرمايل ، ماته خپل نفس وويل :

أَنْتَ أَمِيرُ الْمُؤْمِنِينَ ، فَمَنْ ذَا أَفْضَلُ مِنْكَ ؟

ته اميرُالمؤمنين يې ، د تانه افضل څوك دى ؟

پس ما اِراده اوكړه چې زه دې نفس ته خپل ځان وراُوپيژنم چې زه څوك يم ؟

(يعنى د خپل تكبّر او عُجب ختمولو د پاره مې خپل نفس ته دا خبره اوكړه) . (۱)

## ۳ . يوې زَنانه ته د څيز جوړولو طريقه خودل

يو ځل حضرت عُمر ﷺ په يوې زَنانه تيريدو هغې څه څيز له غُوټې وركولى ، ده ورته وويل : دا خلق داسې نه غُوټه كوي . بيا يې د هغې نه د هغه لركي آله واخيسته او ورته وې

(۱) امام ماوردي رَحِمَهُ اللهُ دا خبره داسې ذكر كړى : رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ نَادٰى : اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ . فَلَمَّا اجْتَمَعَ النَّاسُ صَعِدَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنٰى عَلَيْهِ وَصَلّٰى عَلٰى نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، ثُمَّ قَالَ : أَيُّهَا النَّاسُ ! لَقَدْ رَأَيْتُنِي أَرْعٰى عَلٰى خَالَاتٍ لِي مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ فَيَقْبِضُ لِيَ الْقَبْضَةَ مِنَ التَّمْرِ وَالزَّبِيبِ فَأَظَلُّ الْيَوْمَ وَأَيَّ يَوْمٍ . فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ ﷺ : وَاللهِ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ مَا زِدْتَ عَلٰى أَنْ قَصَّرْتَ بِنَفْسِكَ . فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : وَيْحَكَ يَا ابْنَ عَوْفٍ إِنِّي خَلَوْتُ فَحَدَّثَتْنِي نَفْسِي . فَقَالَتْ : أَنْتَ أَمِيرُ الْمُؤْمِنِينَ ، فَمَنْ ذَا أَفْضَلُ مِنْكَ ؟ فَأَرَدْتُ أَنْ أُعَرِّفَهَا نَفْسَهَا . ادب الدنيا والدين للماوردي ج۱ ص ۲۳۹ اَلْبَابُ الْخَامِسُ أَدَبُ النَّفْسِ اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ فِي مُجَانَبَةِ الْكِبْرِ وَالْإِعْجَابِ . الفاروق ص ۴۸۳ ، الطبقات الكبرى ۲۹۳/۳ ، شخصية عمر بن الخطاب ۳۳/۸

ويل: دا خلق داسې جوړوي. نو هغې ته يې طريقه اوخوده .(١)

## ٤ . په غلام پسې شاته په خر کيناستل

يو ځل حضرت عُمر ﷺ په ګرمه ورځ کې (د ښار نه) بهر اُوتې وُ ، په سَر باندې يې څادر اچولې وُ ، په ده باندې يو غلام تيريدو چې په خَر باندې سور وُ ، حضرت عُمر ﷺ غلام ته وويل:

يَا غُلَامُ ! اِحْمِلْنِيْ مَعَكَ . اې غلام ! ما هم د ځان سره ويسه.

غلام د خَر نه راټوپ کړل ، او وې ويل:

اِرْكَبْ يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ. اې اميرالمؤمنين ! ته پرې سور شه.

حضرت عُمر ﷺ ورته وويل: زه داسې نه سوَريږم ، البته سوَريږم به خو زه به ستا شاته ناست يم ، آيا ته ما په نرم ځاى کينوې او خپله په زيک (سخت) ځاى کينې ؟ (د حضرت عُمر ﷺ مقصد دا وُ چې ته مخکې په نرم ځاى کينه او زه به روستو په سخت ځاى کينم).

حضرت عُمر ﷺ د غلام پسې شاته سور شو ، غلام مدينې منوّرې ته داخل شو ، حضرت عُمر ﷺ د ده پسې شاته ناست وُ ، او خلقو ده ته کتل .(٢)

---

(١) عَنْ حِزَامِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ: رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ﷺ عَامَ الرَّمَادَةِ مَرَّ عَلَى امْرَأَةٍ وَهِيَ تَعْصِدُ عَصِيْدَةً لَهَا . فَقَالَ: لَيْسَ هٰكَذَا تَعْصِدِيْنَ. ثُمَّ أَخَذَ الْمِسْوَطَ فَقَالَ: هٰكَذَا . فَأَرَاهَا. الطبقات الكبرى لابن سعد ج٣ ص ٢٣٩ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ. حياة الصحابة للكاندهلوي ج٢ ص ٥٥٠.

(٢) خَرَجَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِيْ يَوْمٍ حَارٍّ وَاضِعًا رِدَاءَهُ عَلَى رَأْسِهِ . فَمَرَّ بِهِ غُلَامٌ عَلَى حِمَارٍ، فَقَالَ: يَا غُلَامُ ! اِحْمِلْنِيْ مَعَكَ . فَوَثَبَ الْغُلَامُ عَنِ الْحِمَارِ، وَقَالَ: اِرْكَبْ يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ . قَالَ: لَا أَرْكَبُ ، وَأَرْكَبُ أَنَا خَلْفَكَ، تُرِيْدُ أَنْ تَحْمِلَنِيْ عَلَى الْمَكَانِ الْوَطِيْءِ وَتَرْكَبُ أَنْتَ عَلَى الْمَوْضِعِ الْخَشِنِ ، ( وَلٰكِنِ ارْكَبْ أَنْتَ، وَأَكُوْنُ أَنَا خَلْفَكَ ) فَرَكِبَ خَلْفَ الْغُلَامِ ، فَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ وَهُوَ خَلْفَهُ ، وَالنَّاسُ يَنْظُرُوْنَ إِلَيْهِ . كنزالعمال باب فضائل الصحابة فضائل الفاروق رضي الله عنه تواضعه رضي الله عنه رقم الحديث ٣٥٩٩١ ، الزهد لابن ابي الدنيا ج١ ص ١٣٥ رقم ٢٧٧ ، صلاح الامة ج٧ ص ٣٦٨ ، حياة الصحابة لمولانا محمد يوسف الكاندهلوي ج ٣ ص ٣٢١ ركوب عمر خلف غلام على حمار ، ذم الدنيا لابن ابي الدنيا ج١ ص ١٣٠ رقم ٢٨٨.

## ۵ . حضرت عُمر ﷺ د تواضع پيدا کولو د پاره په خپل اُولي (اُوږې) باندې د اُوبو مشک وړلو

حضرت عُروه بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا فرمايي چې ما حضرت عُمر ﷺ اُوليد چې په اُولي (اُوګه) باندې يې د اُوبو مشک وُ ، ما ورته وويل :

يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ! لَا يَنْبَغِي لَكَ هٰذَا .

اې اميرَ المؤمنين ! تاسو د پاره دا مناسب ندي .

هغه راته اوفرمايل :

لَمَّا أَتَانِيَ الْوُفُودُ سَامِعِينَ مُطِيعِينَ دَخَلَتْ نَفْسِيَ نَخْوَةٌ فَأَرَدْتُ أَنْ أَكْسِرَهَا .

هر کله چې ماته وَفدونه په داسې حالت کې راغلل چې هغوی خبره منونکي او تابعدار وو نو زما په زړه کې تکبّر (فخر) پيدا شو نو ما دا اِراده اوکړه چې زه ددې تکبّر مات کړم . (۱)

**د مسکينانو او غلامانو سره يو ځای روټۍ خوړل :** په احاديثو کې ذکر دي چې حضرت عُمر ﷺ به د مسکينانو او غلامانو سره يو ځای رُوټۍ خوړه . (۲)

---

(۱) قَالَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا : رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَلَى عَاتِقِهِ قِرْبَةُ مَاءٍ . فَقُلْتُ : يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ! لَا يَنْبَغِي لَكَ هٰذَا . فَقَالَ : لَمَّا أَتَانِيَ الْوُفُودُ سَامِعِينَ مُطِيعِينَ دَخَلَتْ نَفْسِيَ نَخْوَةٌ فَأَرَدْتُ أَنْ أَكْسِرَهَا . مدارج السالكين بين منازل إياک نعبد وإياک نستعين لابن القيم الجوزية ج ۲ ص ۳۱۵ فَصْلُ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلُ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ . الرسالة القشيرية ۱/ ۲۷۹ بَابُ الصمت ، موسوعة الأخلاق الإسلامية ج۱ ص ۱۶۴ نماذج من تواضع الصحابة رضوان الله عليهم .

(۲) قَالَ أَبُو مَحْذُورَةَ ﷺ : كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . إِذْ جَاءَ صَفْوَانُ بْنُ أُمَيَّةَ بِجَفْنَةٍ يَحْمِلُهَا نَفَرٌ فِي عَبَاءَةٍ . فَوَضَعُوهَا بَيْنَ يَدَيْ عُمَرَ ﷺ . فَدَعَا عُمَرُ ﷺ نَاسًا مَسَاكِينَ وَ أَرِقَّاءَ مِنْ أَرِقَّاءِ النَّاسِ حَوْلَهُ . فَأَكَلُوا مَعَهُ . ثُمَّ قَالَ عِنْدَ ذٰلِكَ : " فَعَلَ اللهُ بِقَوْمٍ _ أَوْ قَالَ : لَحَا اللهُ قَوْمًا _ يَرْغَبُونَ عَنْ أَرِقَّائِهِمْ أَنْ يَأْكُلُوا مَعَهُمْ " . فَقَالَ صَفْوَانُ : أَمَا وَاللهِ . مَا نَرْغَبُ عَنْهُمْ وَلٰكِنَّا نَسْتَأْثِرُ عَلَيْهِمْ . لَا نَجِدُ وَاللهِ مِنَ الطَّعَامِ الطَّيِّبِ مَا نَأْكُلُ وَنُطْعِمُهُمْ . الادب المفرد مخرجا للبخاري رقم الحديث ۲۰۱ بَابُ هَلْ يَجْلِسُ خَادِمُهُ مَعَهُ إِذَا أَكَلَ ، كنز العمال رقم الحديث ۲۵۶۵۰ .

## ٦. حضرت عُمر ﷺ او دده بي بي د شپې د يو مسافر د بي بي خدمت اوكړو كومه چې د لنگوال په دَرد اَخته وه

حضرت انس ﷺ فرمايي چې حضرت عُمر ﷺ ( كله اميرُ المؤمنين وُ نو دا ) به د شپې په آخِري حصه كې ( د خلقو اَحوالو معلومولو د پاره ) گرځيدو ، يوه شپه يو ميدان ته اُورسيد هلته يې يوه خيمه اُوليده چې مخكې نه وه ، دا هغې ته ورنزدې شو نو د يوې زَنانه د زكوري (تكليف) آوازېې واوريد ، او هلته يو كس يې اُوليد چې ناست وُ .

حضرت عُمر ﷺ دې سړي ته ورنزدې شو ، په هغه يې سلام واچول ، بيا يې ورنه پوښتنه اوكړه : ته څوک يې ؟ هغه ورته وويل : زه د باندې (اَطرافو) كس يم اميرُ المؤمنين ته راغلې يم چې څه مدد راسره اوكړي .

حضرت عُمر ﷺ ورته وويل : فَمَا هٰذَا الصَّوْتُ فِيْ هٰذَا الْبَيْتِ ؟

په دې كور كې دا آواز د څه شي دى كوم چې زه اَورم ؟

هغه سړي (دا نه پيژندو چې كني دا اَميرُ المؤمنين دى نو هغه) ورته وويل :

الله تعالى دې په تا باندې رحم اوكړي د خپل كار پسې لاړ شه (ددې تپوس مه كوه) .

ده ورته وويل : ماته به ضرور وائې چې دا آواز د څه شي دى ؟

هغه ورته وويل : دا زما بي بي ده ، د لنگوال (بچي كيدو) په دَرد كې مبتلاء ده .

حضرت عُمر ﷺ ورته وويل :

هَلْ عِنْدَهَا أَحَدٌ ؟ آيا هغې سره څوک زَنانه شته ؟

هغه ورته وويل : نه .

حضرت عُمر ﷺ خپل كور ته راغى او خپلې بي بي " اُمّ كلثوم رضي الله عنها " ته يې وويل :

هَلْ لَكِ فِيْ أَجْرٍ سَاقَهُ اللهُ إِلَيْكِ ؟

آيا ستا په هغه ثواب گټلو كې رَغبت شته كوم چې الله تعالى تا ته راوستې دى ؟

دې ورته وويل : هغه څه كار دى ؟ حضرت عُمر ﷺ ورته وويل :

اِمْرَأَةٌ غَرِيْبَةٌ تَمَخَّضُ لَيْسَ عِنْدَهَا أَحَدٌ .

يوه مسافره زَنانه ده ، د لنگوال په دَرد کې مبتلاء ده ، او هيڅوک زَنانه ورسره نشته .

بي بي ورته وويل : چې ستا خوبَنه وي نو صحيح ده ( زه درسره ځم ) .

حضرت عُمر ﷺ ورته وَويل : د زَنانه د وِلادت په وخت چې کوم څيزونه ضروري وي کپړې تېل وغيره هغه د ځان سره راواخله ، او ماله کټوَى وَاَزگه او دَاني راوړه .

بي بي ورله دا څيزونه راوړل .

حضرت عُمر ﷺ دا څيزونه واخيست ، بي بي ته يې وويل : راځه راپسې .

بي بي دده پسې شاته روانه وه ، تر دې چې د مسافر هغه خېمې ته وَر اُورسيدل .

حضرت عُمر ﷺ خپلې بي بي ته وويل : اُدْخُلِيْ إِلَى الْمَرْأَةِ . ته زَنانه ته وَرننوځه .

او پخپله باندې بهر د هغه سړي سره کيناست ، اُور يې بَل کړو ، او خوراک يې پُوخ کړو .

په دې وخت کې د هغه زَنانه بچې هم پيدا شو ، د حضرت عُمر ﷺ بي بي ده ته آواز اوکړو او ورته وې ويل : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! بَشِّرْ صَاحِبَكَ بِغُلَامٍ .

اې اميرُ المؤمنين ! خپل ملگري ته د هلک زيرې ورکړه .

کله چې هغه کس د '' يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْن '' لفظ واوريد نو اُويريد ( ځکه پوهه شو چې دا کس خو اَميرُ المؤمنين دى ) ، نو د يَرې په وجه دده نه لږ اَخوا شو .

حضرت عُمر ﷺ ورته وويل : په خپل ځاى کينه څنگه چې مخکې ناست وى ( يعنى مطمئِن شه ) .

بيا حضرت عُمر ﷺ دا کټوى راواخيسته ، د خيمې په دَروازه کې يې کيښوده او خپلې بي بي ته يې وويل : دا په هغه زَنانه باندې په مړه خېټه اُوخوره .

هغې په هغه زَنانه باندې اُوخوره ، بيا يې کټوى واپس په دَروازه کې کيښوده .

حضرت عُمر ﷺ وَرپاڅيد هغه يې راواخيسته ، ددې سړي مخې ته يې کيښوده او ورته وې ويل : دا اُوخوره ؛ ځکه تا شپه وِيخه تيره کړې ده . هغه سړي دا اُوخوره .

بيا حضرت عُمر ﷺ خپلې بي بي ته آواز اوکړو : رااُوځه ( چې واپس ځو ) ، او دې سړي ته يې وويل : إِذَا كَانَ غَدٌ فَأْتِنَا نَأْمُرُ لَكَ بِمَا يُصْلِحُكَ .

کله چې صبا شي نو بيا هلته راشه مونږ به ستا د پاره د هغه شيانو درکولو حُکم اوکړو کوم چې ستا په کار وي.

بيا دا سړې په صبا باندې حضرت عُمر ﷺ ته ورغی او دوی ورته دير څه ورکړل. (۱)

## ۷ . حضرت عُمر ﷺ د شپې د رَندې او شلې بُوډۍ خدمت کولو

يو ځل حضرت عُمر ﷺ د شپې په تياره کې اُووت، يو کور ته داخل شو، بيا بل کور ته داخل شو، حضرت طلحة ﷺ دا اُوليد، کله چې سهر شو نو حضرت طلحة ﷺ هغې کور ته ورغی نو په هغې کې په سترګو باندې رَنده او په خپو باندې شَله بُوډۍ ناسته وه، ده ورته پوښتنه اوکړه: مَا بَالُ هٰذَا الرَّجُلِ يَأْتِيْكِ ؟ دا کس څوک دی چې تاته راځي ؟

(۱) عَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ: بَيْنَمَا عُمَرُ ﷺ يَعُسُّ بِالْمَدِيْنَةِ إِذْ مَرَّ بِرَحْبَةٍ مِنْ رِحَابِهَا فَإِذَا هُوَ بِبَيْتٍ مِنْ شَعَرٍ. فَدَنَا مِنْهُ. فَسَمِعَ أَنِيْنَ امْرَأَةٍ. وَرَأَى رَجُلًا قَاعِدًا. فَدَنَا مِنْهُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ: مَنِ الرَّجُلُ؟ فَقَالَ: رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ جِئْتُ إِلَى أَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ أُصِيْبُ مِنْ فَضْلِهِ. قَالَ: فَمَا هٰذَا الصَّوْتُ فِيْ هٰذَا الْبَيْتِ؟ قَالَ: اِمْرَأَةٌ تَمَخَّضُ. قَالَ: هَلْ عِنْدَهَا أَحَدٌ؟ قَالَ: لَا. فَانْطَلَقَ حَتّٰى أَتٰى مَنْزِلَهُ. فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ أُمِّ كُلْثُوْمٍ بِنْتِ عَلِيٍّ: هَلْ لَكِ فِيْ أَجْرٍ سَاقَهُ اللهُ إِلَيْكِ؟ قَالَتْ: وَمَا هُوَ؟ قَالَ: اِمْرَأَةٌ غَرِيْبَةٌ تَمَخَّضُ لَيْسَ عِنْدَهَا أَحَدٌ. قَالَتْ: نَعَمْ إِنْ شِئْتَ. قَالَ: فَخُذِيْ مَا يُصْلِحُ الْمَرْأَةَ لِوِلَادَتِهَا مِنَ الْخِرَقِ وَالدُّهْنِ وَجِيْئِيْنِيْ بِبُرْمَةٍ وَشَحْمٍ وَحُبُوْبٍ. فَجَاءَتْ بِهِ. فَقَالَ: اِنْطَلِقِيْ. وَحَمَلَ الْبُرْمَةَ وَمَشَتْ خَلْفَهُ حَتَّى انْتَهٰى إِلَى الْبَيْتِ فَقَالَ لَهَا: اُدْخُلِيْ إِلَى الْمَرْأَةِ. وَجَاءَ حَتّٰى قَعَدَ إِلَى الرَّجُلِ فَقَالَ لَهُ: أَوْقِدْ لِيْ نَارًا. فَفَعَلَ فَأَوْقَدَ تَحْتَ الْبُرْمَةِ حَتّٰى أَنْضَجَهَا وَوَلَدَتِ الْمَرْأَةُ. فَقَالَتِ امْرَأَتُهُ: يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ! بَشِّرْ صَاحِبَكَ بِغُلَامٍ. فَلَمَّا سَمِعَ الرَّجُلُ بِأَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ هَابَهُ فَجَعَلَ يَتَنَحّٰى عَنْهُ. فَقَالَ: مَكَانَكَ كَمَا أَنْتَ. فَحَمَلَ الْبُرْمَةَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَوَضَعَهَا عَلَى الْبَابِ ثُمَّ قَالَ: أَشْبِعِيْهَا. فَفَعَلَتْ. ثُمَّ أَخْرَجَتِ الْبُرْمَةَ فَوَضَعَتْهَا عَلَى الْبَابِ. فَقَامَ عُمَرُ ﷺ فَأَخَذَهَا فَوَضَعَهَا بَيْنَ يَدَيِ الرَّجُلِ فَقَالَ: كُلْ وَيْحَكَ فَإِنَّكَ قَدْ سَهِرْتَ مِنَ اللَّيْلِ. فَفَعَلَ ثُمَّ قَالَ لِامْرَأَتِهِ اخْرُجِيْ. وَقَالَ لِلرَّجُلِ: إِذَا كَانَ غَدٌ فَأْتِنَا نَأْمُرُ لَكَ بِمَا يُصْلِحُكَ. فَفَعَلَ الرَّجُلُ فَأَجَازَهُ وَأَعْطَاهُ. التبصرة لابن الجوزي ج۱ ص ۴۲۸ المجلس التاسع والعشرون فِيْ فَضْلِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ . مناقب عمر لابن الجوزي ص ۸۵ . محض الصواب في فضائل امير المؤمنين عمر بن الخطاب ج ۱ ص ۳۹۱ الباب الأربعون: عسسه بالمدينه وما وقع له من ذلک ، رص ۳۹۸ .

هغې وویل : دا خو د دومره دومره زمانې نه راځي زما چې څه شي ته ضرورت وي هغه راوړي ، د کور کار کوي او ګندګي د کور نه بهر اوباسي .

حضرت طلحة رضي الله عنه (خپل ځان ته خطاب کولو سره) وویل :

ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا طَلْحَةُ أَعَثَرَاتِ عُمَرَ تَتَّبِعُ ؟

اې طلحه ! په تا دې مور بوره شه ، آیا ته د حضرت عُمر رضي الله عنه د رازونو پسې ورپسې شوې یې ؟ (یعنی حضرت عُمر رضي الله عنه خو په پټه باندې ډیر عظیم خدمت کوي) .(۱)

## ۸ . په بازار کې د یوې زَنانه سره اُودریدل ، او د هغې خبره اَوریدل

په بخاري شریف کې دا واقعه ذکر ده : یو ځل حضرت عُمر رضي الله عنه بازار ته لاړ ، یوه ځوانه ښځه ورسره مخامخ شوه ، هغې ورته وویل :

اې امیرالمؤمنین ! زما خاوند وفات شوی ، واړه واړه ماشومان یې پریخي ، قسَم په الله نه د دوی سره پانچې (د څارو خپې) شته چې پَخې یې کړي ، نه یې فصل شته ، او نه یې د شودو واله (لنګ) څاروې شته (چې د هغې شوده اوڅکي) ، ما سره دا یَره ده چې اُولږه او تَنده به یې هلاک کړي ، زه د خُفَاف بن ایِماء غفاري لوریم ، زما پلار د نبي علیه السلام سره په غزوه حُدیبیه کې شریک ؤ .

حضرت عُمر رضي الله عنه (چې دا واورید نو) ددې سره (د لږ وخت د پاره) اُودرید ، مخکې لا نه رو ، بیا یې ورته وویل :

مرحبا (په خیر راغلی) ستا خانداني تعلق خو ډیر قریب دی .

---

(۱) إِنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ خَرَجَ فِي سَوَادِ اللَّيْلِ فَرَآهُ طَلْحَةُ رضي الله عنه . فَذَهَبَ عُمَرُ رضي الله عنه فَدَخَلَ بَيْتًا ثُمَّ دَخَلَ بَيْتًا آخَرَ . فَلَمَّا أَصْبَحَ طَلْحَةُ رضي الله عنه ذَهَبَ إِلَى ذٰلِكَ الْبَيْتِ فَإِذَا بِعَجُوزٍ عَمْيَاءَ مُقْعَدَةٍ . فَقَالَ لَهَا : مَا بَالُ هٰذَا الرَّجُلِ يَأْتِيكِ ؟ قَالَتْ : إِنَّهُ يَتَعَاهَدُنِي مُنْذُ كَذَا وَكَذَا . يَأْتِينِي بِمَا يُصْلِحُنِي ، وَيُخْرِجُ عَنِّي الْأَذٰى . فَقَالَ طَلْحَةُ رضي الله عنه : ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا طَلْحَةُ أَعَثَرَاتِ عُمَرَ تَتَّبِعُ ؟ . حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۱ ص ۴۷ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّاب ، التبصرة لابن الجوزي ج۱ ص ۴۲۸ المجلس التاسع والعشرون فِي فَضْلِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ . صفة الصفوة ج۱ ص ۱۰۵ ، كنز العمال كتاب الفضائل باب فضائل الصحابة فضائل الفاروق رضي الله عنه رقم الحديث ۳۵۸۱۰ .

بیا حضرت عُمر رضي الله عنه خپل کور ته راغی ، په کور کې دده قوي اُوښ تړلې وُ په هغې باندې یې دوه بُورۍ غله ( خوراک ) کیښود او ددې په مینځ کې یې نوره ضروري خرچه او کپړې کیښودې ، دا اُوښ یې بوتلو ، هغه ښځې ته یې ددې مهار ورکړو ، او ورته وې ویل :

دا بوځه ، دا به نه وي ختم شوی چې الله تعالی به تاسو ته نور خېر هم درکړي .

یو سړي حضرت عُمر رضي الله عنه ته وویل : اې امیرالمؤمنین ! تا دې ښځې ته ډیر څه ورکړل .

ده ورته وویل : ستا مور دې تا ورک کړي (یعنی مور دې ستا په نشتوالي باندې ژړا وکړي (۱)) قسم په الله اوس هم زما د سترګو د وړاندې هغه حالت راځي چې ددې ښځې پلار او ددې ورور ډیره زمانه د یوې قلعې په محاصره کولو کې شریک وو بیا آخر دوی هغه قلعه فتح کړه او په مالِ غنیمت کې مونږ خپلې خپلې حصې واخیستې . (۲)

---

(۱) ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ : دا جمله عرب د مخاطب د انکار او تعجّب د پاره استعمالوي ، اګر چې خپله معنی یې خبرې دي خو دا مراد ندي .

ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ : كلمة تقولها العرب للإنكار على المخاطب ولا يريدون حقيقة معناها الذي هو الدعاء بالموت أي فقدتك أمك . تعليق مصطفى البغا على صحيح البخاري .

ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ : أَيْ فَقَدَتْكَ ، وَهُوَ دُعَاءٌ عَلَيْهِ بِالْمَوْتِ عَلَى ظَاهِرِهِ ، وَلَا يُرَادُ وُقُوعُهُ ، بَلْ هُوَ تَأْدِيبٌ وَتَنْبِيهٌ مِنَ الْغَفْلَةِ ، وَتَعْجِيبٌ وَتَعْظِيمٌ لِلْأَمْرِ . مرقاة المفاتيح ج ۱ ص ۱۰۶ في تشريح حديث ۲۹ (۲۸) .

ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ : أَيْ : فَقَدَتْكَ وَأَصْلُهُ الدُّعَاءُ بِالْمَوْتِ ثُمَّ يُسْتَعْمَلُ فِي التَّعَجُّبِ . مرقاة المفاتيح ج ۱ ص ۳۳۹ .

(۲) عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ ، عَنْ أَبِيهِ ، قَالَ : خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِلَى السُّوقِ . فَلَحِقَتْ عُمَرَ امْرَأَةٌ شَابَّةٌ . فَقَالَتْ : يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ! هَلَكَ زَوْجِي وَتَرَكَ صِبْيَةً صِغَارًا ، وَاللهِ مَا يُنْضِجُونَ كُرَاعًا ، وَلَا لَهُمْ زَرْعٌ وَلَا ضَرْعٌ ، وَخَشِيتُ أَنْ تَأْكُلَهُمُ الضَّبُعُ ، وَأَنَا بِنْتُ خُفَافِ بْنِ إِيمَاءَ الْغِفَارِيِّ رضي الله عنه . وَقَدْ شَهِدَ أَبِي الْحُدَيْبِيَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَوَقَفَ مَعَهَا عُمَرُ وَلَمْ يَمْضِ ، ثُمَّ قَالَ : مَرْحَبًا بِنَسَبٍ قَرِيبٍ . ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى بَعِيرٍ ظَهِيرٍ كَانَ مَرْبُوطًا فِي الدَّارِ ، فَحَمَلَ عَلَيْهِ غِرَارَتَيْنِ مَلَأَهُمَا طَعَامًا ، وَحَمَلَ بَيْنَهُمَا نَفَقَةً وَثِيَابًا . ثُمَّ نَاوَلَهَا بِخِطَامِهِ ، ثُمَّ قَالَ : اقْتَادِيهِ ، فَلَنْ يَفْنَى حَتَّى يَأْتِيَكُمُ اللهُ بِخَيْرٍ . فَقَالَ رَجُلٌ : يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ! أَكْثَرْتَ لَهَا ؟ قَالَ عُمَرُ رضي الله عنه : ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ ، وَاللهِ إِنِّي لَأَرَى أَبَا هَذِهِ وَأَخَاهَا ، قَدْ حَاصَرَا حِصْنًا زَمَانًا فَافْتَتَحَاهُ ، ثُمَّ أَصْبَحْنَا نَسْتَفِيءُ سُهْمَانَهُمَا فِيهِ . صحيح البخاري كِتَابُ الْمَغَازِي بَابُ غَزْوَةِ الْحُدَيْبِيَةِ رقم الحديث ۴۱۶۰ .

## ۹. حضرت عُمر رضي الله عنه د اُويس قرني رَحِمَهُ اللهُ نه د ځان د پاره دُعا اوغوښته

حضرت عُمر رضي الله عنه جليلُ القدر صحابي دی ، او اُويس قرني رحمه الله تابعي دی خو بيا هم په حضرت عُمر رضي الله عنه کښې دومره تواضع وه چې اُويس قرني رَحِمَهُ اللهُ ته يې ووېل :

إِسْتَغْفِرْ لِيْ. زما د پاره د مغفرت دُعا اوغواړه.

نو هغه ورته دُعا اوکړه. (۱)

## ۱۰. حضرت عُمر رضي الله عنه د يو هلک سره تر کوره پورې لاړ

(يو هلک) سِنَان بن سَلَمة هُذَلي رضي الله عنه فرمايي چې زه د څه هلکانو سره اُووتم ، هغه کچه قجورې مو راټولولی کومې چې هوا راغورځولې وی ، ناګهانه مونږ حضرت عُمر رضي الله عنه اُوليد چې دُرّه ورسره په لاس کښې وه.

کله چې هلکانو حضرت عُمر رضي الله عنه اُوليد نو ټول (د يَرې نه) اَخوا ديخوا په قجورو کښې خواره شول ، خو زه په خپل ځای باندې ولاړ وُوم ، د ماسره په څادر کښې څه قجورې وی چې ما راټولې کړې وی ، ما حضرت عُمر رضي الله عنه ته ووېل :

يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ! هٰذَا مَا تُلْقِي الرِّيْحُ.

اې اميرالمؤمنين ! دا هغه قجورې دي کومې چې هوا راغورځولې دي.

---

(۱) په مسلم شريف کښې اُوږد حديث ذکر دی ، په هغې کښې د دې تذکره شته.

عَنْ أُسَيْرِ بْنِ جَابِرٍ. قَالَ: كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه إِذَا أَتَىٰ عَلَيْهِ أَمْدَادُ أَهْلِ الْيَمَنِ . سَأَلَهُمْ: أَفِيكُمْ أُوَيْسُ بْنُ عَامِرٍ؟ حَتَّىٰ أَتَىٰ عَلَىٰ أُوَيْسٍ رَحِمَهُ اللهُ فَقَالَ: أَنْتَ أُوَيْسُ بْنُ عَامِرٍ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: مِنْ مُرَادٍ ثُمَّ مِنْ قَرَنٍ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: فَكَانَ بِكَ بَرَصٌ فَبَرَأْتَ مِنْهُ إِلَّا مَوْضِعَ دِرْهَمٍ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: لَكَ وَالِدَةٌ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُوْلُ: « يَأْتِي عَلَيْكُمْ أُوَيْسُ بْنُ عَامِرٍ مَعَ أَمْدَادِ أَهْلِ الْيَمَنِ . مِنْ مُرَادٍ، ثُمَّ مِنْ قَرَنٍ. كَانَ بِهِ بَرَصٌ فَبَرَأَ مِنْهُ إِلَّا مَوْضِعَ دِرْهَمٍ. لَهُ وَالِدَةٌ هُوَ بِهَا بَرٌّ . لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللهِ لَأَبَرَّهُ . فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لَكَ فَافْعَلْ » فَاسْتَغْفِرْ لِيْ . فَاسْتَغْفَرَ لَهُ ..... صحيح مسلم كتاب الفضائل باب من فضائل أُوَيْسٍ الْقَرَنِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رقم الحديث ۲۲۵ (۲۵۴۲) ، المستدرک على الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۵۷۱۹ .

حضرت عُمر ﷺ زما په څادر کې قجورو ته اُوکتل ، او زه يې اُو نه وَهلم .

بيا ما ورته وويل : اې اميرالمؤمنين ! دا دلته چې اوس کوم هلکان وو دوی د مانه دا قجورې اخلي . حضرت عُمر ﷺ وويل : هيڅ کله به يې درنه نه اَخلي ، ته راځه .

حضرت سنان بن سلمة ﷺ فرمايي : فَجَاءَ مَعِي إِلَى أَهْلِيْ .

حضرت عُمر ﷺ ما سره تر زما کوره پورې راغی . ( او زه يې په حفاظت باندې را اُورسولم ) . (۱)

## ۱۱ . د حضرت عُمر ﷺ په څادر کې څوارلس پيوَندونه وو

۱ . حضرت انس بن مالک ﷺ فرمايي :

رَأَيْتُ عَلَى عُمَرَ ﷺ إِزَارًا فِيْهِ أَرْبَعَ عَشْرَةَ رُقْعَةً بَعْضُهَا مِنْ أَدَمٍ . (۲)

ما په حضرت عُمر ﷺ يو څادر اُوليد چې څوارلس (۱۴) پيوَندونه په کې لږيدلي وو ، بعضې په کې د څرمنې وو .

---

(۱) عَنْ سِنَانِ بْنِ سَلَمَةَ الْهُذَلِيِّ ﷺ قَالَ : خَرَجْتُ مَعَ الْغِلْمَانِ وَنَحْنُ بِالْمَدِيْنَةِ نَلْتَقِطُ الْبَلَحَ فَإِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ﷺ مَعَهُ الدِّرَّةُ . فَلَمَّا رَآهُ الْغِلْمَانُ تَفَرَّقُوْا فِي النَّخْلِ . قَالَ : وَقُمْتُ فِيْ إِزَارِيْ شَيْءٌ قَدْ لَقَطْتُهُ . فَقُلْتُ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! هٰذَا مَا تُلْقِي الرِّيْحُ . قَالَ : فَنَظَرَ إِلَيْهِ فِيْ إِزَارِيْ فَلَمْ يَضْرِبْنِيْ . فَقُلْتُ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! الْغِلْمَانُ الْآنَ بَيْنَ يَدَيَّ وَسَيَأْخُذُوْنَ مَا مَعِيْ . قَالَ : كَلَّا اِمْشِ . قَالَ : فَجَاءَ مَعِيْ إِلَى أَهْلِيْ . الطبقات الكبرى لابن سعد ج۷ ص ۸۹ سِنَانُ بْنُ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ الْهُذَلِيُّ . حياة الصحابة لمولانا محمد يوسف الكاندهلوي ج ۳ ص ۳۴۱ مشي عمر مع غلام ليحميه من الغلمان .

عَنْ سِنَانِ بْنِ سَلَمَةَ ﷺ ، قَالَ : كُنْتُ فِيْ أُغَيْلِمَةٍ نَلْتَقِطُ الْبَلَحَ فَفَجَأَنَا عُمَرُ ﷺ فَتَبِعَنِي الْغِلْمَانُ ، فَقُمْتُ فَقُلْتُ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! إِنَّهُ مِمَّا أَلْقَتِ الرِّيْحُ . فَقَالَ : « أَرِنِيْهِ » فَلَمَّا أَرَيْتُهُ قَالَ : « اِنْطَلِقْ » . قُلْتُ : يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! فَتَبْيَنُ هٰؤُلَاءِ الْغِلْمَانَ السَّاعَةَ ، فَإِنَّكَ إِذَا انْصَرَفْتَ عَنِّي انْتَزَعُوْا مَا مَعِيْ . قَالَ : فَمَشٰى مَعِيْ حَتّٰى بَلَغْتُ مَأْمَنِيْ . مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۲۰۳۰۷ مَنْ رَخَّصَ فِيْ أَكْلِ الثَّمَرَةِ إِذَا مَرَّ بِهَا . الاذكياء ج۱ ص ۱۹۹ .

(۲) الزهد لابي داؤد ج۱ ص ۷۴ رقم ۵۵ مِنْ زُهْدِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَأَخْبَارِهِ ، التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج۱ ص ۱۷۲ رقم ۱۳۰ باب التواضع في اللباس ، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۵۵ ، اصلاح المال ج۱ ص ۱۰۹ رقم ۳۸۲ .

۲. چې کله امیرُ المؤمنین وُ نو هم په کپړو کې یې پیوَندونه وو :

حضرت انس ﷺ فرمایي :

رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَهُوَ يَوْمَئِذٍ أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ، وَقَدْ رَقَّعَ بَيْنَ كَتِفَيْهِ بِرِقَاعٍ ثَلَاثٍ، لَبَّدَ بَعْضَهَا فَوْقَ بَعْضٍ . (۱)

ما حضرت عُمر ﷺ اولید چې امیرُ المؤمنین وُ ، د دوه اُولو ( اُوګو ) په مینځ کې یې درې پیوَندونه وو چې د یو بل د پاسه یې لږولي وو .

۳. بلکه چې کله به یې خُطبه ویله نو د خُطبې په وخت چې به یې کوم څادر اَچولې وُ په هغې کې هم دولس (۱۲) پیوَندونه لږیدلي وو . (۲)

## ۱۲. حضرت عباس ﷺ په خپله شا باندې اُودرول ، او ناوه جوړول

د نبي علیه السلام د تره " حضرت عباس ﷺ " کور د مسجدِ نبوي سره مُتّصِل وُ ، یوه ورځ حضرت عُمر ﷺ مسجدِ نبوي ته راننوت نو وې کتل چې د حضرت عباس ﷺ د کور ناوه جُمات طرف ته لږیدلې وه ، او ددې ناوې د باران اُوبه د مسجدِ نبوي په صِحن کې غورځیدی ، حضرت عُمر ﷺ دا سوچ اوکړو چې :

جُمات خو د الله ﷻ کور دی دیته که د چا د کور د ناوې اُوبه راځي نو دا د الله ﷻ د حُکم او د جُمات د آدابو خلاف دي .

نو حُکم یې اوکړو چې دا ناوه ماته کړئ . پس دا ناوه ماته کړې شوه .

کله چې حضرت عباس ﷺ خبر شو چې زما د کور ناوه ماته شوی نو حضرت عمر ﷺ

---

(۱) شرح السنة للبغوي كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ تَرْقِيْعِ الثَّوْبِ وَالْبَذَاذَةِ وَالاحْتِرَازِ عَنِ الشُّهْرَةِ ج ۱۲ ص ۴۵ ، موطا مالک ج۲ ص ۹۱۸ رقم الحدیث ۱۹ باب ماجاء في لبس الثیاب ، الزهد لابي داؤد ج۱ ص ۷۴ رقم ۵۶ ، صحیح الترغیب والترهیب للمنذري رقم الحدیث ۲۲۹۹ ۸۷) ، کنزالعمال رقم الحدیث ۳۵۹۲۷ .

(۲) عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: خَطَبَ عُمَرُ ﷺ وَهُوَ خَلِيْفَةٌ ، وَعَلَيْهِ إِزَارٌ فِيْهِ اثْنَتَا عَشْرَةَ رُقْعَةً. شرح السنة للبغوي كِتَابُ اللِّبَاسِ بَابُ تَرْقِيْعِ الثَّوْبِ وَالْبَذَاذَةِ وَالاحْتِرَازِ عَنِ الشُّهْرَةِ ج ۱۲ ص ۴۵ ، کنزالعمال رقم الحدیث ۳۵۹۴۲ ، احیاء علوم الدین ج ۳ ص ۲۳۳ .

ته راغی او ورته وې ویل : تاسو دا ناوه ولې ماته کړه ؟

ده ورته وویل : جُمات د چا شخصي کور نه وي ، دیته د کور ناوه راویستل د شریعت خلاف وه نو ما ځکه ماته کړه .

حضرت عباس ﷺ ورته وویل : تاته پته شته ؟ داناوه خو ما د نبي علیه السلام په زَمانه کې د هغوی په اجازت باندې لږولې وه ، تاسو څوک یَی چې دا مو ماته کړه ؟

حضرت عُمر ﷺ ورته اوفرمایل : آیا نبي علیه السلام تاته ددې اِجازت درکړې وُ ؟

هغه ورته وویل : آو ( اِجازت یې راکړې وُ ) .

چونکه حضرت عُمر ﷺ دا کار خاص د الله ﷻ د رَضا د پاره کړې وُ خو چې کله ورته معلومه شوه چې ده ته نبي علیه السلام ددې اِجازت ورکړې وُ نو فورًا یې حضرت عباس ﷺ ته وویل :

اې عباس ! د الله د پاره ته د ما سره هغه ځای ته لاړ شه چې دا ناوه هلته دوباره اُولږوو .

دواړه هغه ځای ته لاړل ، حضرت عُمر ﷺ هلته د رُکوع په حالت کې اُودرید او حضرت عباس ﷺ ته یې وویل :

اې عباس ! د الله د پاره ته زما په شا باندې اُودرېږه او دا ناوه واپس په هماغه ځای باندې اُولږوه .

هغه ورته وویل : تاسو لاړ شئ زه به دا په بل چا باندې اُولږوم .

ده ورته وویل : د عمر دا طاقت کله شته چې دا د رسولُ الله صلی الله علیه وسلم په اجازت باندې لږول شوې ناوه ماته کړي ، مانه خو غټ جُرم شوی ، ددې سزا کم از کم داده چې زه اوس د رکوع په حالت کې اُودرېږم ، ته زما په شا باندې اُودرېږه او دا ناوه واپس په هماغه ځای باندې اُولږوه .

نو حضرت عباس رضي الله عنه دده په شا باندې اُودرید او ناوه یې په هماغه ځای باندې اولږوله . (۱)

سبحان الله ، باوجود د اُوچتې مرتبې نه بیا هم په کې دیره تواضع او عاجزي وه .

(۱) اصلاحي خطبات ج ۹ ص ۳۴ ، و ج ۳ ص ۱۹۲ .

# د حضرت عثمان رضي الله عنه تواضع

حضرت عُمر رضي الله عنه دومره عظیم شخصیت ؤ چې په دُنیا کې ورته د جنت زیرې ورکړل شوې ؤ، په ډیرو جهادونو کې یې مالي مرسته کړې وه، او په خپله هم شریک شوې ؤ، د مسلمانانو دریم خلیفه ؤ، خو ددې باوجود په کې ډیره زیاته تواضع وه، یو څو واقعات یې درته ذکر کوم:

## ۱. ځان له په جُمات کې د وړو کاڼو د پاسه د غرمې خُوب کول

حضرت حسن رَحِمَهُ اللهُ فرمایي...

رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَهُوَ يَوْمَئِذٍ خَلِيْفَةٌ يَقِيْلُ فِي الْمَسْجِدِ، وَيَقُوْمُ وَ أَثَرُ الْحَصَى بِجَنْبِهِ.

ما حضرت عثمان بن عفّان رضي الله عنه اُولید چې په دې وخت کې د مسلمانانو خلیفه ؤ، په جُمات کې به یې ځانله د غرمې خوب کولو، کله به چې (د خوب نه) راپاڅید نو د ګیټو (وړو کاڼو) اَثر به دده په اَړخونو باندې ؤ.

خلقو به ویل: هٰذَا أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ. هٰذَا أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ.

دا د مسلمانانو آمیر دی، دا د مسلمانانو آمیر دی. (۱)

## ۲. په قچره باندې شاته د ځان پسې غلام کینول

همداني رَحِمَهُ اللهُ فرمایي:

إِنَّهُ رَأَى عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَلَى بَغْلَةٍ وَخَلْفَهُ عَلَيْهَا غُلَامُهُ نَائِلٌ. وَهُوَ خَلِيْفَةٌ.

---

(۱) إِنَّ الْحَسَنَ سُئِلَ عَنِ الْقَائِلَةِ فِي الْمَسْجِدِ. فَقَالَ: رَأَيْتُ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَهُوَ يَوْمَئِذٍ خَلِيْفَةٌ يَقِيْلُ فِي الْمَسْجِدِ، وَيَقُوْمُ وَ أَثَرُ الْحَصَى بِجَنْبِهِ. فَيَقُوْلُ (فَيُقَالُ): هٰذَا أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ. هٰذَا أَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ. السنن الكبرى للبيهقي بَابُ الْمُسْلِمِ يَبِيْتُ فِي الْمَسْجِدِ رقم الحديث ۴۳۴۱، الزهد لاحمد بن حنبل ج۱ ص ۱۰۵ رقم ۶۷۵ زهد عثمان بن عفان رضي الله عنه، صفة الصفوة ج۱ ص ۱۱۴، حلية الاولياء ج۱ ص ۶۰ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱۶۴.

ما حضرت عثمان ﷺ په قچره باندې سور اُوليد ، دده شاته دده پسې خپل غلام "نائل" ناست وُ ، او دا په دې وخت کې د مسلمانانو خليفه (اَميرُ المؤمنين) وُ . (۱)

## ۲ . خپل غلام ته د بدل اخيستلو حُکم کول

يو ځل حضرت عثمان ﷺ په څه خبره باندې خپل غلام ته غصه شو او په غصه کې يې د هغه غوږونه تاؤ کړل ، خو فورًا يې غلام ته ووېل:

د مانه غلطي اوشوه ته هم زما غوږونه تاؤ کړه چې بدل دې پوره شي .

خو غلام خپل بدل وا نه خيست ، ده بار بار ورته همدا وېل ، آخر غلام معمولي طريقې سره لاس دده غوږونو سره اُولږول .

ده ورته ووېل : داسې نه ، بلکه په پوره زُور سره زما غوږونه تاؤ کړه .

بيا يې اُوفرمايل : په دُنيا کې بدله ورکول ښه دي خو په آخرت کې ښه ندي . (۲)

# د حضرت علي ﷺ تواضع

حضرت علي ﷺ هم عظيم شخصيت وُ ، د مسلمانانو څلورم خليفه وُ خو ددې باوجود بيا هم په کې ډيره تواضع او عاجزي وه :

## ۱ . خپل ځان اُوچت نه ګڼړل

د بخاري شريف حديث دى ، د حضرت علي ﷺ ځوي " محمد بن حَنَفِيَة " فرمايي چې ما خپل پلار " حضرت علي ﷺ " ته ووېل :

أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟

د رسولُ الله صلى الله عليه وسلم نه پس په خلقو کې بهترين کس څوک دى ؟

---

(۱) الزهد لاحمد بن حنبل ج۱ ص ۱۰۵ رقم ۶۷۲ زهد عثمان بن عفان رضي الله عنه ، حلية الاولياء ج۱ ص ۶۰ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ ، صلاح الامة ج ۷ ص ۳۷۰ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱۶۵ . الجامع لعلوم الامام احمد ج ۲۰ ص ۴۶۸ .

(۲) مشاهير اسلام ج ۴ ص ۷۴۹ .

حضرت علي ﷺ اوفرمايل : حضرت ابوبکرصديق ﷺ .

ما ورنه بيا پوښتنه اوکړه : د حضرت ابوبکر صديق ﷺ پسې څوک ډير بهتر دی ؟

هغه وويل : حضرت عُمر ﷺ .

که ما ورنه بيا پوښتنه کړې وی چې د حضرت عُمر ﷺ پسې څوک بهتر دی ؟ نو دوی به ويل چې حضرت عثمان ﷺ بهتر دی خو ما ورته وويل :

ثُمَّ أَنْتَ؟ بيا به ته بهتر يې ؟

حضرت علي ﷺ اوفرمايل : مَا أَنَا إِلَّا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ .

زه خو صرف د مسلمانانو يو کس يم. (۱)

**فائده :** حضرت علي ﷺ د حضرت عثمان ﷺ نه پس يقيني بهترين کس دی ، خو دا د دوی تواضع وه چې د خپل ځان صفت يې اونکړو ، بلکه په ساده انداز کې يې وويل چې : زه خو د مسلمانانو يو کس يم. (۲)

## ۲. پيوَند شوې کېږې اغوستل

عَمرو بن قيس رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې په حضرت علي ﷺ باندې داسې څادر اُوليدې شو چې پيوَند شوې وُ ، نو ده ته په دې باندې خبرې اوکړې شوی چې ته پيوَند شوې څادر اغوندې ؟ ، ده ورته وويل :

يَقْتَدِيْ بِهِ الْمُؤْمِنُ، وَيَخْشَعُ لَهُ الْقَلْبُ .

---

(۱) عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي : أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قَالَ : « أَبُوْ بَكْرٍ ﷺ » . قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ ؟ قَالَ: « ثُمَّ عُمَرُ ﷺ » ، وَخَشِيْتُ أَنْ يَقُوْلَ عُثْمَانُ ﷺ . قُلْتُ: ثُمَّ أَنْتَ ؟ قَالَ : « مَا أَنَا إِلَّا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ » . صحيح البخاري كتاب أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم بَابُ فَضَائِلِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَابُ فَضْلِ أَبِي بَكْرٍ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۳٦٧١ ، سنن ابي داؤد باب في التفضيل رقم الحديث ۴٦۲۹ ، مشكاة المصابيح باب مناقب ابي بكر رضي الله عنه الفصل الاول رقم الحديث ٦۰۲۴(٦) .

(۲) وَهٰذَا عَلَى سَبِيْلِ التَّوَاضُعِ مِنْهُ مَعَ الْعِلْمِ بِأَنَّهُ حِيْنَ الْمَسْأَلَةِ خَيْرُ النَّاسِ بِلَا نِزَاعٍ . لِأَنَّهُ بَعْدَ قَتْلِ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ . مرقاة المفاتيح ج ۹ ص ۳۸۸٦ في تشريح حديث ٦۰۲۴ .

مؤمن به ددې اِقتداء کوي، او ددې سره په زړه کې عاجزي پیدا کیږي. (۱)

## ۳. کور ته سَوداء په خپله راوړل

یو ځل حضرت علي څه قجورې واخیستی، په کپړه کې یې واچولی، خلقو ورته وویل: اې امیرالمؤمنین! مونږ به یې درسره وِیسو. ده ورته وویل:

لَا، أَبُو العِيَالِ أَحَقُّ أَنْ يَحْمِلَ. نه، د بچو پلار ډیر لائق دی چې دا یې وِیسي. (۲)

## د حضرت ابوهریرة ﷺ تواضع

۱. حضرت عُمر ﷺ حضرت ابوهریرة ﷺ لره د بحرین اَمیر (ګورنر) مقرر کړو، او وَر وې لیږلو. حضرت ابوهریرة ﷺ چې بَحرین ته داخل شو نو په خَر باندې سور وُ، خلقو ته یې ویل: طَرِّقُوا لِلْأَمِيرِ، طَرِّقُوا لِلْأَمِيرِ. امیر ته لار پریږدئ، امیر ته لار پریږدئ. (۳)

(ده به د غَر نه لرګي راوړل، دده سره لرګي وو نو ځکه یې خلقو ته ویل چې لار راته پریږدئ).

---

(۱) عَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رُئِيَ عَلَيْهِ إِزَارٌ مَرْقُوعٌ فَعُوتِبَ فِي لَبُوسِهِ. فَقَالَ: يَقْتَدِي بِهِ الْمُؤْمِنُ، وَيَخْشَعُ لَهُ الْقَلْبُ. التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ۱ ص ۱۷۵ رقم ۱۳۳ بَابُ التَّوَاضُعِ فِي اللِّبَاسِ، مصنف ابن ابي شيبة رقم الحديث ۳۴۵۰۰، اصلاح المال ج۱ ص ۱۱۱ رقم ۳۹۴، احياء علوم الدين ج۳ ص ۳۵۵، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱۶۵.

(۲) عَنْ صَالِحٍ بَيَّاعِ الْأَكْسِيَةِ، عَنْ أُمِّهِ، أَوْ جَدَّتِهِ قَالَتْ: رَأَيْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اِشْتَرَى تَمْرًا بِدِرْهَمٍ فَحَمَلَهُ فِي مِلْحَفَةٍ. فَقَالُوا: نَحْمِلُ عَنْكَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. قَالَ: لَا، أَبُو الْعِيَالِ أَحَقُّ أَنْ يَحْمِلَ. الزهد لاحمد بن حنبل ج۱ ص ۱۱۰ رقم ۷۰۹، الادب المفرد مخرجا ج۱ ص۱۹۴ رقم ۵۵۱، التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج۱ ص ۱۳۶ رقم ۱۰۲، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱۶۵.

(۳) وَرُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ. أَنَّهُ بَعَثَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَمِيرًا عَلَى الْبَحْرَيْنِ. فَدَخَلَ الْبَحْرَيْنِ وَهُوَ رَاكِبٌ عَلَى حِمَارٍ، وَجَعَلَ يَقُولُ: طَرِّقُوا لِلْأَمِيرِ. طَرِّقُوا لِلْأَمِيرِ. تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين ص ۱۸۸ بَابُ الْكِبْرِ

وولي أبو هريرة رضي الله عنه إمارة مرّة فكان يحمل حزمة الحطب على ظهره يقول: طرقوا للأمير. رواه ابن عساكر في تاريخ دمشق ۶۷/ ۳۷۳. موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۱۵۱. صلاح الامة ج ۷ ص ۳۷۱ علو الهمة الى التواضع.

۳. حضرت ابو هريرة ﷺ د مَروان د طرفه هم د مدينې منوّرې اَمير پاتې شوی ، په دې وخت کې به هم ده په سَر باندې لرګي راوړل. (۱)

## د حضرت حُذيفه ﷺ تواضع

حضرت عُمر ﷺ چې کله حضرت حُذيفه ﷺ لره مدائِن ته ليږلو نو په شاهي فرمان کې يې د هغه ځای خلقو ته ليکلي وو : تاسو دده خبره منئ ، دده تابعداري کوئ ، او دا چې درنه څه غواړي هغه ورکوئ.

حضرت حُذيفه ﷺ د حضرت عُمر ﷺ د مجلس نه راأووت ( او مدائِن ته تللو ) نو په داسې خَر باندې سور وُ چې د پاسه پرې کټه وه ، او په خَر باندې دده توښه هم تړلې وه.

کله چې مدائن ته راغی نو د هغه ځای خلقو او سردارانو دده استقبال اوکړو ( دا په خَر سور وُ ) دده سره په لاس کې روټۍ او د غوښې هډوکې وُ ....

دير وخت هلته عامِل وُ ، چې کله حضرت عمر ﷺ دا واپس راأوغوښت او راغلو نو همدغه شان د تواضع حالت يې وُ. (۲)

---

(۱) كَانَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مُسْتَرْسِلًا فِيْ مِزَاحِهِ. رَوَى ابْنُ قُتَيْبَةَ فِي الْمَعَارِفِ أَنَّ مَرْوَانَ رُبَّمَا كَانَ يَسْتَخْلِفُهُ عَلَى الْمَدِيْنَةِ فَيَرْكَبُ حِمَارًا قَدْ شَدَّ عَلَيْهِ بَرْذَعَةً فَيَسِيْرُ فَيَلْقَى الرَّجُلَ فَيَقُوْلُ : اَلطَّرِيْقَ قَدْ جَاءَ الْأَمِيْرُ. ادب الدنيا والدين للماوردي ج ۱ ص ۳۱۲ اَلْفَصْلُ الْخَامِسُ فِي الْمِزَاحِ وَالضَّحِكِ.

(۲) كان عمرُ بن الخطاب ﷺ إذا بعث عاملًا كتب في عهده : أن اسمعوا له واطيعوا ما عدل عليكم . فلمّا استعمل حذيفة ﷺ على المدائن كتب في عهده : أن اسمعوا له وأطيعوا واعطوه ما سألكم . فخرج حذيفة ﷺ من عند عمر ﷺ على حمار مؤكف ، وعلى الحمار زاده ، فلما قدم المدائن استقبله أهل الأرض والدهاقين وبيده رغيف وعرق من لحم إكاف فقرأ عهده عليهم ، فقالوا: سلنا ما شئت ؟ قال : أسألكم طعاما آكله وعلف حماري هذا ما دمت فيكم ، فأقام فيهم ما شاء الله، ثم كتب إليه عمر ﷺ أن اقدم فلما بلغ عمر ﷺ قدومه كمن له على الطريق في مكان لا يراه ، فلما رآه عمر على الحال الذي خرج من عنده عليه أتاه فالتزمه وقال: أنتَ أخي وأنا أخوك. كنزالعمال رقم الحديث ۳٦۹٦۰ باب فضائل الصحابة مفصلا مرتبا على ترتيب حروف المعجم حرف الحاء حذيفة رضي الله عنه . تاريخ دمشق لابن عساكر ج۱۲ ص ۲۸٦ حذيفة بن اليمان . حياة الصحابه لمولانا محمد ادريس الكاندهلوي ج۳ ص ۳۴۹ تواضع حذيفة بن اليمان رضي الله عنه . ← ← ← ← ← ← ←

# د حضرت ابن عباس او حضرت زيد بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تواضع

يو ځل حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه په سوَرلۍ باندې سور شو ( دا ډير بنه عالِم وُ ) ، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د هغه د سوَرلۍ مهار اُونيولو ( او لاندې ورسره پياده روان وُ ) ، نو حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه ورته ووېل :

تَنَحَّ يَا ابْنَ عَمِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

اې د رسولُ الله ﷺ د تره ځويه ! تاسو اَخوا شئ ( مهار پرېږدئ ؛ ځکه دا بې اَدبي ده ) .

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ورته ووېل :

هٰكَذَا أُمِرْنَا أَنْ نَفْعَلَ بِعُلَمَائِنَا وَكُبَرَائِنَا .

مونږ ته همدغه حُکم شوی چې داسې کار د خپلو علماؤ او مشرانو سره اوکړو ( يعنې مونږ ته د علماؤ او مشرانو د تعظيم حُکم شوی ) .

حضرت زيد رضي الله عنه ورته ووېل : ماته خپل لاس اُوښايه . ده ورته لاس وراُوويست ، هغه دده لاس ښُکل ( چُپ ) کړو ، او وې ويل :

هٰكَذَا أُمِرْنَا أَنْ نَفْعَلَ بِأَهْلِ بَيْتِ نَبِيِّنَا .

مونږ ته هم همداسې حکم شوی چې د خپل پيغمبر د اهلِ بَيتو سره داسې د تعظيم معامله اوکړو . (۱)

---

←←← عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ : أَنَّ عُمَرَ كَتَبَ فِيْ عَهْدِ حُذَيْفَةَ عَلَى الْمَدَائِنِ : اِسْمَعُوْا لَهُ ، وَأَطِيْعُوْا ، وَأَعْطُوْهُ مَا سَأَلَكُمْ . فَخَرَجَ مِنْ عِنْدِ عُمَرَ رضي الله عنه عَلَى حِمَارٍ مُوْكَفٍ ، تَحْتَهُ زَادُهُ . فَلَمَّا قَدِمَ اِسْتَقْبَلَهُ الدَّهَاقِيْنُ وَبِيَدِهِ رَغِيْفٌ ، وَعَرْقٌ مِنْ لَحْمٍ . سير اعلام النبلاء ج ۲ ص ۳۶۳ حُذَيْفَةُ بنُ اليَمَانِ بنِ جَابِرٍ العَبْسِيُّ ، حلية الأولياء ۱ / ۲۷۷ ، الطبقات الكبرى لابن سعد ۳۱۷/۷ ، أسد الغابة ۱ / ۴۶۹ ،

(۱) إِنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ رضي الله عنه رَكِبَ يَوْمًا فَأَخَذَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بِرِكَابِهِ ، فَقَالَ لَهُ : تَنَحَّ يَا ابْنَ عَمِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقَالَ لَهُ : هٰكَذَا أُمِرْنَا أَنْ نَفْعَلَ بِعُلَمَائِنَا وَكُبَرَائِنَا . فَقَالَ زَيْدٌ رضي الله عنه : أَرِنِيْ يَدَكَ . فَأَخْرَجَ يَدَهُ . فَقَبَّلَهَا . فَقَالَ : هٰكَذَا أُمِرْنَا أَنْ نَفْعَلَ بِأَهْلِ بَيْتِ نَبِيِّنَا . كنز العمال باب فضائل الصحابة مفصلا مرتبا على ترتيب حروف المعجم حرف الحاء حذيفة رضي الله عنه رقم ۳۷۰۶۱ . احياء علوم الدين ج ۱ ص ۵۰ . ←←←

سبحان الله ، په دواړو کې دومره تواضع وه چې يو د سوَرلۍ مهار نيولې ؤ ، او هغه بل دده لاس ښکل کړو .

## د حضرت ابوذر رضي الله عنه تواضع

يو ځل حضرت ابوذر رضي الله عنه حضرت بلال رضي الله عنه ته د توروالي پيغور ورکړو . بيا حضرت ابوذر رضي الله عنه پښيمانه شو ، خپل ځان يې په زمکه اُوغورځول او قسَم يې اوکړو :

لَا رَفَعْتُ رَأْسِيْ حَتّٰى يَطَأَ بِلَالٌ رضي الله عنه خَدِّيْ بِقَدَمِهِ .

ترهغې وخته پورې به زه خپل سَر د زمکې نه پورته نکړم ترڅو چې حضرت بلال رضي الله عنه زما په مخ باندې خپل قدم کيږدي .

پس هغه خپل سَر د زمکې نه نه راُوچتول ، آخر حضرت بلال رضي الله عنه ( د ډير مَجبوريت په وجه چې هغه قسَم خوړلې ؤ ) د هغه په مخ باندې خپل قدم کيښود نو بيا هغه راپاڅيد . (۱)

## د شام ګورنر " حضرت ابوعُبَيدة بن جراح رضي الله عنه " تواضع

د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې حضرت ابوعُبَيدة بن جرّاح رضي الله عنه د شام ګورنر ؤ ؛ ځکه د

←←← رَكِبَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رضي الله عنه مَرَّةً . فَدَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لِيَأْخُذَ بِرِكَابِهِ . فَقَالَ: مَهْ يَا ابْنَ عَمِّ رَسُوْلِ اللهِ ! فَقَالَ : هٰكَذَا أُمِرْنَا أَنْ نَفْعَلَ بِكُبَرَائِنَا . فَقَالَ : أَرِنِيْ يَدَكَ . فَأَخْرَجَهَا إِلَيْهِ . فَقَبَّلَهَا . فَقَالَ : هٰكَذَا أُمِرْنَا نَفْعَلُ بِأَهْلِ بَيْتِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . مدارج السالكين بين منازل اياک نعبد واياک نستعين ج ۲ ص ۳۱۵ فَصْلُ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلُ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ .

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا . أَنَّهُ أَخَذَ بِرِكَابِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رضي الله عنه . فَقَالَ لَهُ : تَنَحَّ يَا ابْنَ عَمِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . فَقَالَ : إِنَّا هٰكَذَا نَفْعَلُ بِكُبَرَائِنَا وَعُلَمَائِنَا . المستدرک علی الصحيحين للحاکم رقم الحديث ۵۷۸۵ وقال الحاکم : صَحِيْحُ الْإِسْنَادِ عَلٰى شَرْطِ مُسْلِمٍ . وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ . و رقم الحديث ۷۹۵۶ ، السنن الکبری للبيهقي رقم الحديث ۱۲۱۹۶ ، المعجم الکبير للطبراني رقم الحديث ۴۷۴۶ ، مجمع الزوائد رقم الحديث ۱۵۸۵۱ .

(۱) وَيُذْكَرُ أَنَّ أَبَا ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَيَّرَ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بِسَوَادِهِ . ثُمَّ نَدِمَ . فَأَلْقٰى بِنَفْسِهِ . فَحَلَفَ : لَا رَفَعْتُ رَأْسِيْ حَتّٰى يَطَأَ بِلَالٌ رضي الله عنه خَدِّيْ بِقَدَمِهِ . فَلَمْ يَرْفَعْ رَأْسَهُ حَتّٰى فَعَلَ بِلَالٌ رضي الله عنه . مدارج السالكين بين منازل اياک نعبد واياک نستعين ج ۲ ص ۳۱۵ فَصْلُ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلُ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ .

شام اکثره حصه اکثره همده فتح کړې وه .

هاغه وخت شام ډيره لويه او سَرسبزه علاقه وه ، مال و دولت په کې ډير زيات وُ ، نن صبا د هغې نه څلور ملکونه جوړ دي : شام ، اُردن ، فلسطين ، او لبنان . حالانکه هاغه وخت دا څلور واړه د اسلامي مملکت يوه صوبه وه ، ګورنَر يې حضرت ابوعبيدة بن جراح ﷺ وُ ، او د غونډ اسلامي حکومت اميرُ المؤمنين حضرت عُمر ﷺ وُ .

يو ځل دا شام ته په سفر باندې لاړ ، هلته يې يوه ورځ حضرت ابوعبيدة ﷺ ته ووَيل :

اِذْهَبْ بِنَا إِلَى مَنْزِلِكَ . راځه چې ستا کور ته لاړ شو .

( د حضرت عُمر ﷺ په ذِهن کې دا خبره وه چې شام ډيره آباده صوبه ده او ددې ګورنر ابوعبيده ﷺ دی نو دده کور کتل غواړي چې ده څه جمع کړي دي او که نه ؟ )

حضرت ابوعبيدة ﷺ ورته ووَيل : زما په کور باندې څه کوی ، که وې ګوری نو صرف د سترګو نه به دې اُوښکي ځي .

حضرت عُمر ﷺ اِصرار اوکړو چې خامخا يې ګورو ، هغه ورته ووَيل : صحيح ده . دواړه روان شو ، په تللو تللو کې د ښار د آبادۍ نه اُووتل .

حضرت عُمر ﷺ ورنه پوښتنه اوکړه چې چيرته ځی ؟ (ستا کور خو ډير لرې دی) .

هغه ورته ووَيل : اوس رانزدې دی . د دمشق ښار چې د هر قِسمه مال و اسباب نه ډک وُ ددينه اُووتل ، آخر يو ځای ته اُورسيدل چې د قجورو څانګو نه جوړه شوې جونپړه وه ، حضرت ابوعبيدة ﷺ اوفرمايل : اې امير المؤمنين ! زه په دې کور کې اُوسيږم .

حضرت عُمر ﷺ چې اخوا ديخوا مخ واړول نو هيڅ په کې نه وو ، ورته وې ويل : ستا اَسباب چيرته دی ؟ په دې کې خو يوه مُصَلَه ده ، يوه کاسه ده ، او يو د اُوبو مشک دی ، ستا خوراک چيرته دی ؟

حضرت ابوعبيدة ﷺ ورته ووَيل : اې اميرالمؤمنين ! په دې کې زما ټول د ضرورت سامان موجود دی ، په دې مُصَلَه باندې مونځ هم کوم او پرې اُوده کيږم هم ، بيا يې پاس لاس پورته کړو يوه پياله يې راواخيسته چې د اُوبو نه ډکه وه او د اُوچې روټۍ ټکړې په کې پرتې وې ، ابوعبيدة ﷺ اوفرمايل :

اې اميرالمؤمنين ! زه شپه او ورځ د حکومت په سرکاري کارونو کې مصروف يم ځانته د خوراک برابرولو موقع راته نه ملاويږي ، يوه زَنانه ما له د دوه يا درې ورځو روټۍ په يو ځل پَخې کړي ، زه يې ځان له کيږدم ، هغه خورم ، کله چې دا روټۍ اُوچې شي نو په اُوبو کې يې پَستوم بيا يې د شپې خورم .

حضرت عُمر ﷺ چې دا حالت اُوکتلو نو په سترګو کې يې اُوښکې راغلی .

ابوعبيدة ﷺ ورته ووېل : ما تاته وېلي وو چې که زما کور اوګورې نو بيا به اُوښکې توېوې . بيا حضرت عُمر ﷺ ورته اوفرمايل :

غَيَّرَتْنَا الدُّنْيَا كُلَّنَا غَيْرَكَ يَا أَبَا عُبَيْدَةَ ﷺ .

اې ابوعبيدة ! مونږ ټول دُنيا بدل کړي يو خو صرف ته يې نه يې بدل کړی ( يعنی په مونږ باندې د دُنيا روَنق اَثر کړې دی ليکن ته چې د نبي عليه السلام په زمانه کې څنګه وې هماغه شان يې ، د دُنيا مال و دولت در باندې هيڅ اَثر ندې کړی ) . (۱)

## د حضرت عمّار بن ياسر ﷺ تواضع

عبدالله بن هذيل رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

رَأَيْتُ عَمَّارًا ﷺ اِشْتَرٰى قِتًّا بِدِرْهَمٍ وَ حَمَلَهُ عَلٰى ظَهْرِهِ وَهُوَ أَمِيْرُ الْكُوْفَةِ . (۲)

ما حضرت عمّار ﷺ اُوليد چې د څاروي شَنه ګياه يې په يو دِرهم واخيسته او خپل شا

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۳ ص ۱۱۷ .

دا واقعه په سير اعلام النبلاء کې هم مختصر ذکر ده : عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ : أَنَّ عُمَرَ حِيْنَ قَدِمَ الشَّامَ ، قَالَ لِأَبِي عُبَيْدَةَ ﷺ : اِذْهَبْ بِنَا إِلٰى مَنْزِلِكَ . قَالَ : وَمَا تَصْنَعُ عِنْدِيْ؟ مَا تُرِيْدُ إِلَّا أَنْ تُعَصِّرَ عَيْنَيْكَ عَلَيَّ . قَالَ : فَدَخَلَ ، فَلَمْ يَرَ شَيْئًا ، قَالَ : أَيْنَ مَتَاعُكَ ؟ لَا أَرٰى إِلَّا لِبْدًا وَصَحْفَةً وَشَنًّا ، وَأَنْتَ أَمِيْرٌ ، أَعِنْدَكَ طَعَامٌ ؟ فَقَامَ أَبُوْ عُبَيْدَةَ إِلٰى جَوْنَةٍ ، فَأَخَذَ مِنْهَا كُسَيْرَاتٍ ، فَبَكٰى عُمَرُ ﷺ ، فَقَالَ لَهُ أَبُوْ عُبَيْدَةَ : قَدْ قُلْتُ لَكَ : إِنَّكَ سَتُعَصِّرُ عَيْنَيْكَ عَلَيَّ يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ، يَكْفِيْكَ مَا يُبَلِّغُكَ الْمَقِيْلَ . قَالَ عُمَرُ ﷺ : غَيَّرَتْنَا الدُّنْيَا كُلَّنَا غَيْرَكَ يَا أَبَا عُبَيْدَةَ ﷺ . سير أعلام النبلاء ج ۱ ص ۱۷ أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ عَامِرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ .

(۲) صلاح الامة في علوّ الهمة ج ۷ ص ۳۷۳ علوّ الهمّة في التواضع .

ته يې راچولې وه ( کورته يې راوړه ) ، حالانکه دا په دې وخت کې د کوفې آمير ؤ .

## د حضرت عبدالله بن سلام ﷺ تواضع

### ( په خپل سَر باندې د لرګو ګيډۍ وړل )

حضرت عبدالله بن حنظله ﷺ فرمايي چې ما حضرت عبدالله بن سلام ﷺ په بازار کې اُوليد چې په خپل سَر باندې يې د لرګو ګيډۍ ايخې ؤ . چا ورته پوښتنه اوکړه :

أَتَفْعَلُ هٰذَا وَقَدْ أَغْنَاكَ اللهُ عَنْهُ ؟

آيا ته په سَر باندې لرګي وړې ؟ حالانکه الله تعالى ته ددينه مستغني کړې يې ( يعنى ستا خو ديته حاجت نشته ) .

هغه ورته وويل : ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا حديث اُوريدلې دى :

لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ .

هغه کس به جنت ته داخل نشي چې د هغه په زړه کې د اُوري د دانې هومره تکبّر وي .

عبدالله بن سلام ﷺ اوفرمايل : پس زه دا خوښوم چې په دې طريقې سره ( د خپل ځان نه ) تکبّر ختم کړم .(۱)

## د حضرت سلمان فارسي ﷺ تواضع

حضرت سلمان فارسي ﷺ د مدينې منوّرې امير ( ګورنر ) ؤ ، د هغه علاقې يو مشر کس ( په بازار ) کې څه ( درُوند ) څيز واخيست ، حضرت سلمان فارسي ﷺ په ده باندې تيريدو هغه کس ( دا اُو نه پيژند نو ) په ده باندې يې د باروړونکي ( مزدور ) ګمان اوکړو

(۱) عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حَنْظَلَةَ ﷺ قَالَ : رَأَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ سَلَامٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي السُّوْقِ وَعَلَى رَأْسِهِ حُزْمَةُ حَطَبٍ ، قَالَ : فَقِيْلَ لَهُ : أَتَفْعَلُ هٰذَا وَقَدْ أَغْنَاكَ اللهُ عَنْهُ ؟ فَقَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ . فَأَحْبَبْتُ أَنْ أَتْرُكَ الْكِبْرَ . الترغيب والترهيب للقوام السنّة ج ۳ ص ۲۰۷ رقم ۲۳۵۸ باب في الترهيب من الكبر وذم المتكبرين ، و ج ۱ ص ۳۶۶ رقم ۶۲۷ ، تلبيس ابليس ج۱ ص ۱۳۹ الباب التاسع في ذكر تلبيس ابليس على الزهاد والعباد .

نو ورته وې ویل:

تَعَالَ فَاحْمِلْ هٰذَا. دلته راشه، دا راسره ویسه.

حضرت سلمان فارسي ﷺ (په خوشحالۍ سره) سامان رااُوچت کړو او ورسره روان شو. په لاره کې چې خلقو سلمان فارسي ﷺ په بار وړلو باندې اُولید نو هریو به ورته ویل

أَصْلَحَ اللهُ الْأَمِيْرَ. نَحْنُ نَحْمِلُ عَنْكَ.

الله تعالی دې (زمونږ) په اَمیر باندې رَحم اوکړي دا سامان مونږ ته راکړه مونږ به یې ستا په ځای باندې ویسو. ده به اِنکار کولو او نورو ته یې نه ورکولو.

دې کس ته چې دا معلومه شوه چې دا خو د مدینې منوّرې اَمیر (ګورنَر) دی نو ډیر ملامته شو او ځانته یې خطاب کولو سره ویل:

هلاک شې تاخو د مدینې منوّرې په اَمیر باندې بوج راوړو.

نو حضرت سلمان فارسي ﷺ ته یې عُذر پیش کول شروع کړو، او وې ویل:

لَمْ أَعْرِفْكَ أَصْلَحَكَ اللهُ.

الله تعالی دې د تاسو سره ښه اوکړي ما تاسو او نه پیژندی.

سلمان فارسي ﷺ به ورته ویل چې هیڅ پرواه نه کوي، تاسو مخکې ځئ زه درسره دا د کوره پورې وړم. نو دا سامان یې ورسره د کوره پورې وې وړو. هغه کس دومره خفه شو چې د ځان سره یې وویل: لَا أُسَخِّرُ أَحَدًا أَبَدًا.

زه به بیا هیڅ کله په مزدور باندې څه سامان وې نه سم. (۱)

---

(۱) عَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ، أَنَّهُ كَانَ أَمِيْرًا بِالْمَدِيْنَةِ. فَاشْتَرَى رَجُلٌ مِنْ عُظَمَائِهَا شَيْئًا. فَمَرَّ بِهِ سَلْمَانُ ﷺ فَحَسِبَهُ عِلْجًا. فَقَالَ: تَعَالَ فَاحْمِلْ هٰذَا. فَحَمَلَهُ سَلْمَانُ ﷺ. فَجَعَلَ يَتَلَقَّاهُ النَّاسُ وَيَقُوْلُوْنَ: أَصْلَحَ اللهُ الْأَمِيْرَ. نَحْنُ نَحْمِلُ عَنْكَ. فَأَبَى أَنْ يَدْفَعَ إِلَيْهِمْ. فَقَالَ الرَّجُلُ فِيْ نَفْسِهِ وَيْحَكَ إِنِّيْ لَمْ أُسَخِّرْ إِلَّا الْأَمِيْرَ. فَجَعَلَ يَعْتَذِرُ إِلَيْهِ وَيَقُوْلُ: لَمْ أَعْرِفْكَ أَصْلَحَكَ اللهُ. فَقَالَ: إِنْطَلِقْ فَذَهَبَ بِهِ إِلَى مَنْزِلِهِ. ثُمَّ قَالَ: لَا أُسَخِّرُ أَحَدًا أَبَدًا. تنبیه الغافلین باحادیث سید الأنبیاء والمرسلین ص ۱۸۸ بَابُ الْكِبْرِ

## د حسن بن علي رضي الله عنهما تواضع

يو ځل حضرت حسن بن علي رضي الله عنهما په څه ماشومانو باندې تیریدو ، د ماشومانو سره د روټۍ ماتې ټکړې وې ، هغوی ده ته د خوراک دعوت ورکړو ، دا د سورلۍ نه رابنکته شو فَأَكَلَ مَعَهُمْ د هغوی سره يې د روټۍ دا ماتې ټکړې اُوخوړې .

بيا حضرت حسن رضي الله عنهما دا ماشومان ځان سره کور ته بوتلل ، په دوی باندې يې خوراک هم اوکړو او کپړې يې هم ورکړې . بيا حضرت حسن رضي الله عنهما اوفرمايل :

اَلْيَدُ لَهُمْ ؛ لِأَنَّهُمْ لَا يَجِدُوْنَ شَيْئًا غَيْرَ مَا أَطْعَمُوْنِيْ وَنَحْنُ نَجِدُ أَكْثَرَ مِنْهُ .

فضيلت د دوی د پاره دی ځکه د دوی سره بل هيڅ نه وو صرف هماغه د روټۍ ماتې ټکړې ورسره وې کومې يې چې په ما باندې اُوخوړې ، او مونږ سره خو ددينه زيات شته (کوم چې ما دوی ته ورکړل) . (۱)

## د حضرت حُسين بن علي رضي الله عنهما تواضع

حضرت حُسين بن علي رضي الله عنهما د مسکينانو په يو ټولي باندې تيريدو ، هغوی څه کپړه غوړولې وه او مخې ته يې د خوراک څه ټکړې پرتې وې ، هغوی ده ته ووېل :

هَلُمَّ يَا أَبَا عَبْدِ اللهِ .

اې ابوعبدالله ! دلته راشه ( ابوعبدالله د حضرت حُسين رضي الله عنه کُنيت وُ ) .

ده د قرآن کريم دا آيت تلاوت کړو :

﴿ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ ﴾ .

ترجمه : بيشکه الله تعالى تکبر کوونکي خلق نه خوښوي .

---

(۱) مَرَّ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمَا عَلَى صِبْيَانٍ مَعَهُمْ كِسَرُ خُبْزٍ ، فَاسْتَضَافُوْهُ ، فَنَزَلَ فَأَكَلَ مَعَهُمْ ، ثُمَّ حَمَلَهُمْ إِلَى مَنْزِلِهِ ، فَأَطْعَمَهُمْ وَكَسَاهُمْ . وَقَالَ : اَلْيَدُ لَهُمْ ، لِأَنَّهُمْ لَا يَجِدُوْنَ شَيْئًا غَيْرَ مَا أَطْعَمُوْنِيْ وَنَحْنُ نَجِدُ أَكْثَرَ مِنْهُ . مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين ج ۲ ص ۳۱۵ فَصْلُ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلُ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ . الرسالة القشيرية ج ۱ ص ۲۸۲ باب الخشوع والتواضع ، بريقة محمودية في شرح طريقة محمدية وشريعة نبوية في سيرة احمدية ج ۲ ص ۲۳۳ مَا وَرَدَ فِي فَضَائِلِ التَّوَاضُعِ .

دا ورغی او د هغوی سره يې خوراک اوکړو . بيا ده هغوی ته ووېل : ما خو ستاسو دَعوت قبول کړو اوس تاسو زما دعوت هم قبول کړئ ( نو د ځان سره يې خپل کور ته بوتلل ) خپلې بي بي ته يې ووېل :

أَخْرِجِيْ مَا كُنْتِ تَدَّخِرِيْنَ .

تا چې څه ذخيره کړي دي هغه رااُوباسه ( چې په دې مِسکينانو باندې يې اُوخورو ) . (۱)

## د حضرت اُمِّ درداء رَضِيَ اللهُ عَنهَا تواضع

ابراهيم بن ابي عَبلة رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

رَأَيْتُ أُمَّ الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنهَا مَعَ نِسَاءِ الْمَسَاكِيْنِ جَالِسَةً بِبَيْتِ الْمَقْدِسِ .

ما اُمِّ درداء رَضِيَ اللهُ عَنهَا اُوليده چې په بيتُ المَقدِس کې د مسکينانو ښځو سره ناسته وه . (۲)

---

(۱) عَنْ مِسْعَرٍ قَالَ : مَرَّ الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا عَلَى مَسَاكِيْنَ وَقَدْ بَسَطُوْا كِسَاءً وَبَيْنَ أَيْدِيْهِمْ كِسَرٌ فَقَالُوْا : هَلُمَّ يَا أَبَا عَبْدِ اللهِ . فَحَوَّلَ وَرِكَهُ وَقَرَأَ { إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ } [ النحل آية ۲۳ ] فَأَكَلَ مَعَهُمْ ثُمَّ قَالَ : قَدْ أَجَبْتُكُمْ فَأَجِيْبُوْنِيْ . فَقَالَ لِلرَّبَابِ يَعْنِيْ امْرَأَتَهُ : أَخْرِجِيْ مَا كُنْتِ تَدَّخِرِيْنَ . التواضع والخمول لابن ابي الدنيا ج ۱ ص ۱۴۲ ، صلاح الامة ج ۷ ص ۳۸۱ علو الهمة في التواضع .

(۲) التواضع والخمول لابن أبي الدنيا ج ۱ ص ۱۳۹ رقم ۱۰۵ بَابُ التَّوَاضُعِ . موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ۱ ص ۱۵۱ اقوال السلف والعلماء في التواضع .

# د نورو بزرګانو د تواضع واقعات

د اُمتِ مُسلمه نور بزرګان هم د نبي کريم صلی الله عليه وسلم او صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په نقشِ قدم باندې روان وو ، د هغوی په شان تواضع او عاجزي په کې وه ، د اِيمان د تازه کولو په خاطر درته د دوی د تواضع څه واقعات هم ذکر کوم :

## د امام زَينُ العابدين ( علي بن حُسين ) رَحِمَهُ اللهُ تواضع

د امام زَينُ العابدين ( علي بن حُسين ) رَحِمَهُ اللهُ په حالاتو کې دا خبره ليکل شوی چې دا ډير ښائسته او نازک بدن واله ؤ ، کله چې دا وفات شو نو چا چې ده ته غُسل ورکول هغوی ده په خپې طرف اُوګه ( اُولې ) باندې تور داغ اوليد ، دوی حيران شو چې : دا تور داغ ولې پيدا شوی ؟

هغوی د خلقو او ده د کور واله ؤ نه ددې د سبب په باره کې پوښتنه اوکړه خو هيچا ته ددې پته نه وه .

کله چې دا دَفن شو نو يو څو ورځې روسته د غريبانانو ، معذورو او ګندو د کورنه دا آواز راغی : " افسوس ، هغه کس څه شو چې هغه به د شپې په تياره کې زمونږ کورونو ته اُوبه او نور خوراکي شيان راوړل ؟ "

په دې سره خلقو ته دا راز معلوم شو چې امام زينُ العابدين رَحِمَهُ اللهُ به د شپې په تياره کې خپل مشک راواخيست ، د معذورو او مجبورو خلقو کورونو ته به يې اُوبه وغيره وَروړلی .

خو دا خدمت يې خاص د الله ﷻ د رَضا د پاره دومره په پټه باندې کولو چې ټول عُمر يې هيچا ته ددې تذکره نه وه کړې .(۱)

---

(۱) عَنْ عَمْرِو بنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : لَمَّا مَاتَ عَلِيُّ بنُ الحُسَيْنِ رَحِمَهُ اللهُ وَجَدُوا بِظَهْرِهِ أَثَرًا. فَسَأَلُوا عَنْهُ. فَقَالُوا: هٰذَا مِمَّا كَانَ يَنْقُلُ الجُرُبَ عَلَى ظَهْرِهِ إِلَى مَنَازِلِ الأَرَامِلِ. مختصر تاريخ دمشق لابن عساكر ٢٣٨/١٧ علي بن الحسين بن علي بن ابي طالب ، وهكذا في سير اعلام النبلاء . نضرة النعيم ج ٨ ص ٣٤٦٨ المواساة ، شرف المصطفى ج ٥ ص ٣٠١

وعن عمرو بن ثابت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال: لما مات علي بن الحسين رَحِمَهُ اللهُ فغسلوه جعلوا ينظرون إلى آثار سود في ظهره. فقالوا: ما هذا ؟ فقالوا : كان يحمل جرب الدقيق ليلاً على ظهره يعطيه فقراء ←←←←←←←←←←

# د عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللّٰهُ تواضع

مشهور تابعي " عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللّٰهُ " اګر چې اَميرُ المؤمنين ( د مسلمانانو بادشاه ) وُ خو بيا هم په کې ډيره تواضع وه ، د يو څو واقعاتو نه به درته د دوی تواضع معلومه شي .

## ۱ . د ځان د پاره غټ لقب نه خوښول

يو کس ده ته آواز اوکړو : يَا خَلِيْفَةَ اللهِ فِي الْأَرْضِ . اې په زمکه د الله ﷻ خليفه .

ده ورته ووېل : داسې مه وايه . بيا يې ورته ووېل : کله چې زه پيدا شوم نو زما خاندان زما د پاره نوم " عُمر " کېښود ، پس که ته ماته په " ياعُمر " سره آواز اوکړې نو زه به جواب درکړم .

بيا چې کله زه غټ شوم نو ما د ځان د پاره يو کُنيَت " ابوحفص " غوره کړو ، پس که ته ماته په " يَا اَبَا حَفص " سره آواز اوکړې نو زه به جواب درکړم .

بيا کله چې تاسو ماته حکومت راأوسپارل نو تاسو ماته " اميرُ المؤمنين " نوم کېښود ، نو که ته ماته په " يَا اَمِيْرَ الْمؤمنين " سره آواز اوکړې نو زه به جواب درکړم .

او ته چې ماته د خَلِيْفَةُ اللهِ فِي الْأَرْضِ په نوم سره آواز اوکړې نو زه داسې نه يم ، بلکه په مخ د زمکه د الله ﷻ خليفه ګان حضرت داؤد عليه السلام او د هغه په شان خلق دي ، الله تعالی حضرت داؤد عليه السلام ته فرمايي :

---

←←← أهل المدينة. صفة الصفوة ج۱ ص ۳۵۵ علي بن الحسين بن علي .

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، قَالَ: كَانَ نَاسٌ مِنَ أَهْلِ الْمَدِيْنَةِ يَعِيْشُوْنَ مَا يَدْرُوْنَ مِنْ أَيْنَ كَانَ مَعَاشُهُمْ ؟ فَلَمَّا مَاتَ عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ رَحِمَهُ اللهُ فَقَدُوْا مَا كَانُوْا يُؤْتَوْنَ بِهِ بِاللَّيْلِ . الزهد لاحمد بن حنبل ج۱ ص ۱۳۷ رقم ۹۲۸ زُهْدُ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، صفة الصفوة ج۱ ص ۳۵۵ علي بن الحسين بن علي ، نزهة الفضلاء ۱/ ۴۰۶ ، نضرة النعيم ج ۸ ص ۳۴۶۸ المواساة ، شرف المصطفى ج ۵ ۳۰۰ .

الجرب : جمع جريب وهو وعاء يحمل فيه الطعام والدقيق ونحوهما.

﴿ يَادَاوُدُ إِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْأَرْضِ ﴾.(۱)

ترجمه: اې داوُد ! بيشكه مونږ ته په زمكه کې خليفه جوړ کړې يې . (۲)

## ۲. د اميرُالمؤمنين كيدو نه پس اَرزانه كپړې استعمالول

عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ د اول نه ډير مالدار وُ ، دا چې د مسلمانانو اميرُ المؤمنين نه وُ نو ډيرې قيمتي كپړې به يې اغوستى ، قيمتي سوَرلى به يې استعمالوله ، او قيمتي عطر به يې لږول ، هغه وخت به دده د پاره په زر (۱۰۰۰) دِيناره باندې قيمتي كپړې واخيستې شوى نو دده به ويل: مَا أَجْوَدَهَا لَوْلَا خُشُوْنَةٌ فِيْهَا.

دا ډيرې ښې دي خو كه په دې كې زيګ والې نه وى.

( حالانكې دا به ډيرې قميتي او نرمې كپړې وى ؛ ځكه دِينار د سروزرو وي نو د زر ﴿۱۰۰۰﴾ دِينارو نه ډيرې زياتې روپى جوړيږي خو دده به بيا هم دا كپړې خوښې نه شوى ، دده نه د قيمتي او نرمو كپړو مطالبه به يې كوله ) .

خو چې كله د مسلمانانو خليفه شو نو ده له به په پنځه (۵) دِرهمه باندې اَرزانه كپړې واخيستې شوى ، ده به وويل :

مَا أَجْوَدَهُ لَوْلَا لِيْنُهُ . دا ډيرې ښې دي خو كه دا نرم والې په كې نه وى.

---

(۱) سورة ص آية ۲٦ .

(۲) نَادٰى رَجُلٌ أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ رَحِمَهُ اللهُ : يَا خَلِيْفَةَ اللهِ فِي الْأَرْضِ . فَقَالَ لَهُ عُمَرُ رَحِمَهُ اللهُ: مَهْ إِنِّيْ لَمَّا وُلِدْتُ إِخْتَارَ لِيْ أَهْلِيْ إِسْمًا فَسَمُّوْنِيْ عُمَرَ . فَلَوْ نَادَيْتَنِيْ " يَا عُمَرُ " أَجَبْتُكَ . فَلَمَّا كَبِرْتُ إِخْتَرْتُ لِنَفْسِي الْكُنٰى فَكَنَيْتُ " بِأَبِيْ حَفْصٍ " فَلَوْ نَادَيْتَنِيْ " يَا أَبَا حَفْصٍ " أَجَبْتُكَ . فَلَمَّا وَلَّيْتُمُوْنِيْ أُمُوْرَكُمْ سَمَّيْتُمُوْنِيْ " أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ " فَلَوْ نَادَيْتَنِيْ " يَا أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ " أَجَبْتُكَ . وَأَمَّا خَلِيْفَةُ اللهِ فِي الْأَرْضِ فَلَسْتُ كَذٰلِكَ . وَلٰكِنْ خُلَفَاءُ اللهِ فِي الْأَرْضِ دَاوُدُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَشِبْهُهُ . قَالَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى { يَادَاوُدُ إِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْأَرْضِ } . سيرة عمر بن عبد العزيز على ما رواه الإمام مالك بن انس واصحابه ج ۱ ص ۵۲ جواب عمر من ناداه يا خليفة الله في الأرض . موسوعة الأخلاق الإسلامية ج ۱ ص ۱٦٦ التواضع تواضع عمر بن عبد العزيز

(دِرهم د سپينو زرو وي ، او پنځه دِرهم ډيرې کمې روپۍ جوړيږي ، او په پنځه دِرهمه به چې کومه کپړه کيدله هغه به ډيره اَرزانه او زِيګه وه خو ده به بيا هم ويل چې دا ډيره ښه ده خو کاش چې دا نرم والې په کې نه وی) .

چا دده نه پوښتنه اوکړه : هغه ستا قيمتي لباس ، قيمتي سوَرلي او قيمتي عطر څه شو ؟ تا خو به هغه استعمالول .

ده ورته ويل : زما نفس د هر ځيز خوَند څکي ، دې به چې د دُنيا د څه ځيز خوَند اُوڅکل نو د هغې نه د اعلی ځيز ته به يې شوق کيدو ، خو چې کله زما نفس د خِلافت (اميرالمؤمنين کيدو) خوَند اُوڅکل او دا خو اعلی درجه ده ، ددينه پورته خو بله درجه نشته نو اوس زما نفس د هغه نِعمتونو حاصلولو په شوق کې دی کوم چې د الله ﷻ سره دي (نو ځکه د دُنيا د ځيزونو نه مې بې رَغبتي پيدا شوی) . (۱)

## ۳ . د اميرُالمؤمنين کيدو باوجود په خپله کار کول

عُمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ چې کله اميرُ المؤمنين ؤ نو ده ته يوه شپه ميلمه راغی ، کله چې ده د ماسخوتن مونځ اوکړو نو د مانځه نه پس عُمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ څه ليکل کول ،

---

(۱) ويروٰى أن عمر بن عبد العزيز رحمه الله كان قبل أن يستخلف تشترى له الحلة بألف دينار فيقول : مَا أَجْوَدَهَا لَوْلَا خُشُونَةٌ فِيهَا . فلما استخلف كان يشترى له الثوب بخمسة دراهم . فيقول : مَا أَجْوَدَهُ لَوْلَا لِينُهُ . فقيل له : أَيْنَ لِبَاسُكَ وَمَرْكَبُكَ وَعِطْرُكَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ ؟ فقال : إن لي نفسا ذواقة و إنها لم تذق من الدنيا طبقة إلا تاقت إلى الطبقة التي فوقها حتى إذا ذاقت الخلافة وهي أرفع الطباق تاقت إلى ما عند الله عز وجل . احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۵۵ كتاب ذم الكبر والعجب بَيَانُ أَخْلَاقِ الْمُتَوَاضِعِينَ...

عَنْ رَبَاحِ بْنِ عُبَيْدَةَ قَالَ : كُنْتُ أَتَّجِرُ فَقَالَ لِي عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ رَحِمَهُ اللهُ : « يَا رَبَاحُ اتَّخِذْ لِي كِسَاءَيْنِ خَزًّا ، أَتَّخِذُ أَحَدَهُمَا مُخَبِّسًا وَالْآخَرَ شِعَارًا » قَالَ : فَفَعَلْتُ فَصَنَعْتُهُمَا بِالْبَصْرَةِ . فَلَمْ آلُ . ثُمَّ قَدِمْتُ بِهِمَا فَأَمَرَ بِقَبْضِهِمَا فَلَمَّا أَصْبَحَ غَدَوْتُ عَلَيْهِ . فَقَالَ لِي : « يَا رَبَاحُ ! مَا أَجْوَدَ ثَوْبَيْكَ لَوْلَا خُشُونَةٌ فِيهِمَا » . فَلَمَّا وَلِيَ قَالَ لِي : « يَا رَبَاحُ اتَّخِذْ لِي مِنْ هٰذِهِ الْجِبَابِ الْهَرَوِيَّةِ عَامِلِ قُطْنٍ لِيُهِنَّ صِغَرٌ » قَالَ : فَاشْتَرَيْتُ لَهُ ثَلَاثَ شُقَقٍ فَقَطَعْتُ مِنَ الثَّلَاثِ جُبَّتَيْنِ خَشِنَتَيْنِ . ثُمَّ أَتَيْتُ بِهِمَا إِلَيْهِ فَقَبَضَهُمَا فَقَالَ لِي : « يَا رَبَاحُ ! مَا أَجْوَدَ ثَوْبَيْكَ لَوْلَا لِينٌ فِيهِمَا » قَالَ : فَذَكَرْتُ قَوْلَهُ الْأَوَّلَ وَقَوْلَهُ الْآخِرَ . حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۵ ص ۳۲۳ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ

ميلمه هم ورسره ناست وُ ، په دې وخت کې ډيوه مړه کيدو ته نږدې شوه ، ميلمه ووېل :
اې اميرُ المؤمنين ! زه ډيوې ته ورپاڅم چې صحيح يې کړم. ده ورته ووېل :
لَيْسَ مِنْ مُرُوْءَةِ الرَّجُلِ أَنْ يَسْتَعْمِلَ ضَيْفَهُ.
د سړي د ښو اخلاقو نه دا خبره نده چې د ميلمه نه کار واخلي.
ميلمه ووېل : زه به ستا غلام راويښ کړم ( هغه به يې صحيح کړي ) .
ده ورته ووېل : هغه مه راويښوه ځکه هغه مخکې اُوده شوې دی.
بيا عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ په خپله پاڅيد په ډيوه کې يې تېل واچول او ډيوه يې صحيح کړه.
ميلمه ورته ووېل : اې اميرالمؤمنين ! ته په خپله باندې پاڅيدی ؟ ده ورته ووېل :
ذَهَبْتُ وَأَنَا عُمَرُ، وَرَجَعْتُ وَأَنَا عُمَرُ، وَخَيْرُ النَّاسِ عِنْدَ اللهِ مَنْ كَانَ مُتَوَاضِعًا.
زه چې د ډيوې صحيح کولو د پاره لاړم نو هم عُمَر ووم ، چې راواپس شوم نو هم عُمَر يم ( يعنی په ما کې هيڅ کمې ندې راغلی ) ، او په خلقو کې د الله ﷻ په نزد بهترين کس هغه دی چې هغه عاجزي کوونکی وي. (۱)

## ٤. ځوي ته د قيمتي ګـُتمې خرڅولو حُکم

په تفسير قرطبي کې دا واقعه ذکر ده : عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ ته دا خبره اُورسيده چې د ده ځوي ځانله په زر (۱۰۰۰) دِرهمه باندې ګـُتمه اخيستې ده.
نو ده خپل ځوي ته دا خط اوليکل : بيشکه ما ته دا خبره رارسيدلې ده چې تا ځانله په زر

---

(۱) وَ ذُكِرَ عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى أَنَّهُ أَتَاهُ ذَاتَ لَيْلَةٍ ضَيْفٌ. فَلَمَّا صَلَّى الْعِشَاءَ. وَكَانَ يَكْتُبُ شَيْئًا وَالضَّيْفُ عِنْدَهُ ، كَادَ السِّرَاجُ أَنْ يَنْطَفِئَ . فَقَالَ الضَّيْفُ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ! أَقُوْمُ إِلَى الْمِصْبَاحِ فَأُصْلِحُهُ؟ قَالَ : لَيْسَ مِنْ مُرُوْءَةِ الرَّجُلِ أَنْ يَسْتَعْمِلَ ضَيْفَهُ . قَالَ : أَفَأُنَبِّهُ الْغُلَامَ ؟ قَالَ: لَا. هِيَ أَوَّلُ نَوْمَةٍ نَامَهَا. فَقَامَ عُمَرُ وَأَخَذَ الْبَطَّةَ فَمَلَأَ الْمِصْبَاحَ . فَقَالَ الضَّيْفُ : قُمْتَ بِنَفْسِكَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ؟ قَالَ : ذَهَبْتُ وَأَنَا عُمَرُ وَ رَجَعْتُ وَأَنَا عُمَرُ. وَخَيْرُ النَّاسِ عِنْدَ اللهِ مَنْ كَانَ مُتَوَاضِعًا. تنبيه الغافلين باحاديث سيد الأنبياء والمرسلين للسمرقندي ج۱ ص ۱۸۷ بَابُ الْكِبْرِ

دِرهمه باندې ګتمه اخيستې ده ، دا واپس خرڅه کړه او ددې په قيمت باندې زر (۱۰۰۰) اُوږي فقيرانو ته روټۍ ورکړه ، ځانله په يو دِرهم باندې ګتمه واخله او په هغې باندې اُوليکه : رَحِمَ اللهُ امْرَأً عَرَفَ قَدْرَ نَفْسِهِ.

الله تعالی دې په هغه کس باندې رَحم اوکړي چې د خپل ځان قدر (مرتبه) اُوپيژني . (۱)

## ۵ . عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ د يوې مسکينې زَنانه د مدد د پاره د مصر والي ور اُوليږل

په مِصر جيزه مقام کې يوه توره مِسکينه زَنانه وه نوم يې " فِرتونة السّوداء " وه ، دې عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ ته يو خط اوليکل چې زما د کور ديوال غور ځيدلی دی غله په دې باندې راوړي ، او زما چرګې پټوي ، د ماسره دومره روپۍ نشته چې ځانله پرې دا دِيوال جوړ کړم .

د عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ چې په مِصر کې کوم والي وُ نوم يې " ايوب بن شرحبيل " وُ ، ده هغه ته خط اوليکل ، په هغه خط کې يې ليکلي وو :

دا خط د عُمر بن عبدالعزيز رَحِمَهُ اللهُ د طرفه دی ايوب بن شرحبيل ته سَلَامُ اللهِ عَلَيْكُمْ (په تاسو دې د الله سلام وي) ، د سلام نه پس عرض دادی چې فِرتونة السّوداء ماته خط راليږلی دی په هغې کې يې دا شکايت کړې دی " چې زما د کور ديوال بنکته دی ، غله د ما نه چرګې پټوي او تاسو ما له دا جوړ کړئ " کله چې تاته زما دا خط درشي نو په خپله

(۱) بَلَغَ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ ابْنَهُ اشْتَرَى خَاتَمًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ . فَكَتَبَ إِلَيْهِ : إِنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّكَ اشْتَرَيْتَ خَاتَمًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ. فَبِعْهُ وَأَطْعِمْ مِنْهُ أَلْفَ جَائِعٍ، وَاشْتَرِ خَاتَمًا مِنْ حَدِيْدٍ بِدِرْهَمٍ. وَاكْتُبْ عَلَيْهِ "رَحِمَ اللهُ امْرَأً عَرَفَ قَدْرَ نَفْسِهِ". تفسير القرطبي ج ۱۰ ص ۸۹ في تفسير سورة النحل آية ۱۴ ،

په مداراج السالکين کې دا واقعه داسې ذکر ده ، بَلَغَ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ رَحِمَهُ اللهُ : أَنَّ ابْنًا لَهُ اشْتَرَى خَاتَمًا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ. فَكَتَبَ إِلَيْهِ عُمَرُ: بَلَغَنِيْ أَنَّكَ اشْتَرَيْتَ فَصًّا بِأَلْفِ دِرْهَمٍ. فَإِذَا أَتَاكَ كِتَابِيْ فَبِعِ الْخَاتَمَ وَأَشْبِعْ بِهِ أَلْفَ بَطْنٍ وَاتَّخِذْ خَاتَمًا بِدِرْهَمَيْنِ ، وَاجْعَلْ فَصَّهُ حَدِيْدًا صِيْنِيًّا وَاكْتُبْ عَلَيْهِ: رَحِمَ اللهُ امْرَءًا عَرَفَ قَدْرَ نَفْسِهِ. مدارج السالكين ج ۲ ۳۱۶ فَصْلٌ مَنْزِلَةُ التَّوَاضُعِ فَصْلٌ أَقْوَالُ الْعُلَمَاءِ فِي التَّوَاضُعِ .

هلته ورشه او دِيوال ورله جوړ کړه.

بيا عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ فِرتونة السّوداء ته خط اوليکل ، په هغې کې دا وو :

دا خط د عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ د طرفه دی فِرتونة السّوداء ته : سَلَامُ اللهِ عَلَيْکِ .

( په تا دې د الله جَلَّ جَلَالُهُ سلام وي ) د سلام نه پس عرض دادی ، چې ماته ستا خط رااُورسيد تا چې کومه خبره ليکلې وه هغه مې اُولوسته ، اوس ما خپل مصر والي ته حُکم کړی چې هغه به تا له دا دِيوال جوړوي ، نو إِنْ شَاءَ الله ته به د غلو نه محفوظه شی .

کله چې ايوب بن شرحبيل ته د عُمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ دا خط اُورسيد نو هغه په خپله باندې په سوَرلۍ سور شو تر دې چې جيزه مقام ته راغی ، د خلقو نه به يې مسلسل ددې زَنانه د ځای تپوس کولو ( چې ددې کور چيرته دی ؟ ) ، کله يې چې پيدا کړه نو دا تکه توره غريبه زَنانه وه ، ده ورله هغه ديوال جوړ کړو .

سبحان الله ، په عُمر بن عبد العزيزؒ کې دومره تواضع وه چې د يوې غريبې توري زَنانه خبره يې واوريده او هغې ته يې خپل د مِصر والي وراُوليږل او ديوال يې ورله جوړ کړو .(۱)

(۱) کتبت اليه سوداء مسکينة تُسمى " فرتونة السوداء " من الجيزة بمصر أن لها حائطا متهدِّمًا لدارها ، يتسوّره اللصوص ويسرقون دجاجها ، وليس معها ما تنفقه في هذا السبيل . فيكتب عمر الى واليه على مصر " ايوب بن شرحبيل " : من عبد الله بن عمر امير المؤمنين الى أيوب بن شرحبيل سلام الله عليكم . اما بعد فإن فرتونة السوداء كتبتْ الي تشكو الي قصر حائطها ، وأن دجاجها يُسرَق منها ، وتسأل تحصينه له ، فإذا جاءك كتابي هذا ، فاركب بنفسك وحصِّنه لها .

وكتبت الى فرتونة : من عبد الله بن عمر بن عبد العزيز أمير المؤمنين الى فرتونة السوداء : سلام الله عليكِ ، أما بعد ، فقد بلغني كتابك ، وما ذكرت فيه من قصر حائطك حيث يُقتحم عليك ويُسرق دجاجك ... وقد كتبتُ الى ايوب بن شرحبيل آمره أن يبني لك الحائط حتى يحصِّنه بما تخافين إن شاء الله فلما جاء الكتاب الى أيوب بن شرحبيل ركب بنفسه ، حتى أتى الجيزة ، وظل يسأل عن فرتونة حتى وجدها ، فإذا هي سوداء مسكينة فأعلى لها حائطها . صلاح الامة في علو الهمة ج ۱۰ ص ۲۴۹ علو الهمة في الرحمة .

دا واقعه داسې هم ذکر ده : كان بريد عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللهُ لا يعطيه أحد من الناس ←←←←

# د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ تواضع

يحيى بن مَعِين رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

مَا رَأَيْتُ مِثْلَ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ رَحِمَهُ اللهُ ، صَحِبْنَاهُ خَمْسِينَ سَنَةً مَا افْتَخَرَ عَلَيْنَا بِشَيْءٍ مِمَّا كَانَ فِيْهِ مِنَ الصَّلَاحِ وَالْخَيْرِ .

ما د احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللهُ په شان كس ندې ليدلى مونږ ورسره پنځوس (۵۰) كاله پاتې شوي يو خو ده ته چې الله تعالى كوم صلاحيت او خير وركړې وُ ده د هغې په وجه په مونږ باندې فخر ندې كړى . (۱)

# د مالک بن دِينار رَحِمَهُ اللهُ تواضع

مالک بن دِينار رَحِمَهُ اللهُ په فرمايل : كه يو كس د جُمات په دروازه كې دا آواز اوكړي چې په تاسو كې دې بَدترين كس د جُمات نه اُووځي . نو قسَم په الله چې د مانه مخكې به څوک

←←← إذا خرج كتابا إلا حمله فخرج بريد من مصر فدفعت إليه فرتونة السوداء مولاة ذي أصبح كتابا تذكر فيه أن لها حائطا قصيرا وأنه يقتحم عليها منه فيسرق دجاجها فكتب :

بسم الله الرحمن الرحيم من عبد الله عمر أمير المؤمنين إلى فرتونة السوداء مولاة ذي أصبح بلغني كتابك وما ذكرت من قصر حائطك وأنه يدخل عليك منه فيسرق دجاجك فقد كتبت لك كتابا إلى أيوب بن شرحبيل وكان أيوب عامله على صلاة مصر وحربها آمره أن يبني لك ذلك حتى يحصنه لك مما تخافين إن شاء الله . والسلام .

وكتب إلى أيوب بن شرحبيل من عبد الله عمر أمير المؤمنين إلى ابن شرحبيل أما بعد ، فإن فرتونة مولاة ذي أصبح كتبت إلي تذكر قصر حائطها وأنه يسرق منه دجاجها وتسأل تحصينه لها فإذا جاءك كتابي هذا فاركب أنت بنفسك إليه حتى تحصنه لها فلما جاء الكتاب إلى أيوب ركب ببدنه حتى أتى الجيزة يسأل عن فرتونة حتى وقع عليها وإذا هي سوداء مسكينة فأعلمها بما كتب به أمير المؤمنين فيها وحصنه لها. سيرة عمر بن عبد العزيز على ما رواه الإمام مالك بن أنس وأصحابه ج ۱ ص ٦٢ عمر وفرتونة السوداء وما كتبه اليها والى عامله على مصر بشانها . الدولة الأموية عوامل الازدهار وتداعيات الانهيار ج۲ ص ۲۳۳ امرأة مصرية مسكينة تشكي لعمر . عمر بن عبد العزيز معالم التجديد والإصلاح الراشدي على منهاج النبوة ج ۱ ص ۱۷۷ .

(۱) حلية الأولياء وطبقات الأصفياء ج ۹ ص ۱۸۱ الإِمَامُ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ ، سير اعلام النبلاء للذهبي ۲۱۳/۱۱ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج۱ ص ۱٦٦ نماذج من تواضع السلف .

أو نه اُوځي مګر هغه کس به د مانه مخکې اُووځي چې هغه د مانه په مَنډه کې تېز وي.

کله چې دده خبره عبد الله بن مبارک رَحِمَهُ اللهُ ته اُورسيده نو هغه وويل :

بِهٰذَا صَارَ مَالِكٌ مَالِكاً. مالک بن دِينار رَحِمَهُ اللهُ خو د همدې تواضع په وجه مالک بن دِينار ګرځيدلی (يعنی د همدې تواضع په وجه ورته الله ﷻ اُوچت مقام ورکړی).(۱)

## د جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللهُ تواضع

۱ . جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللهُ په جُمات کې ناست وُ ، جُمات ټول د مونځ ګزارو نه ډک وُ ، يو کس دا اعلان اوکړو : په دې جُمات کې چې څوک بَدترين انسان وي هغه دې بهر اُووځي.

د ټولو نه مخکې جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللهُ په مَنډه د جُمات نه اُووت ، او وې ويل :

زه د ټولو نه بدترين کس يم.

حضرت شبلي رَحِمَهُ اللهُ ته چې ددې واقعې خبر اُورسيد نو وې ويل : همدې څيز خو د جُنيد نه جُنيد جوړ کړې دی.(۲)

۲ . جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللهُ د وَلِيُّ الله جوړيدو نه مخکې شاهي پهلوان وُ چې کله به يې ګشتي اُوکړله نو د شاهي خزانې نه به ورته لکونه روپۍ ملاويدې.

بادشاه اعلان کړې وُ چې که چا زمونږ پهلوان رااُوغورځول نو هغه ته به ډير غټ اِنعام ورکولې شي.

د سيّدانو د کورنۍ يو کس ډير غريب وُ ، په کور کې يې د خوراک هيڅ نه وو ، روټۍ ته محتاج وُ ، خو چونکه د نبي عليه السلام په اَولاده کې وُ نو چاته يې خپل د غريبۍ حال هم نه ويلو ، ده د ځان سره سوچ اوکړو چې زه خو جُنيد پهلوان نشم راغورځولی خو کوشش به

---

(۱) قال مالك بن دينار رَحِمَهُ اللهُ : لَوْ أَنَّ مُنَادِيًا يُنَادِي بِبَابِ الْمَسْجِدِ : لِيخرجْ شَرُّكُمْ رَجُلًا . وَاللّٰهِ مَا كَانَ أَحَدٌ يسبقني إِلَى الْبَابِ إِلَّا رَجُلًا بفضل قوة أو سَعْيٍ . قال : فلما بَلَغَ ابنُ المبارك قوله قال : بِهٰذَا صَارَ مَالِكٌ مَالِكاً. احياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۴۲ كتاب ذم الكبر والعجب بيان فضيلة التواضع ، صلاح الامة ج ۷ ص ۳۷۹ علو الهمة في التواضع.

(۲) كشكول معرفت ص ۳۰۱.

اوکړم که چیرته دا اِنعام ماته ملاوُ شي نو زما فقر به ختم شي ، نو ده د جُنید بغدادي سره د مقابلې اِعلان اوکړو .

خلقو ده پورې اُوخندل چې ته خو دومره کمزورې يې چې په لاره هم صحيح نشې تللى نو ته به هغه څنګه راأوغورځوى ؟

ده ورته وويل : زه به جُنيد بغدادي داسې راأوغورځوم چې هغه به هم حيران شي .

بادشاه هم ده ته وويل چې ته به شکست اُوخورى . ده ورته وويل : زه به کاميابيږم .

بهر حال ، د مقابلې د پاره ورځ اُوټاکلې شوه ، بادشاه هم د مقابلې د پاره راغی . کله چې دواړه د مقابلې د پاره يو بل ته مخامخ شو او مقابله شروع شوه ، نو دې کس جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ ته پټ په غوږ کې وويل :

گوره ، ته غټ پهلوان يې خو زه د سيّدانو د کورنۍ يم زما په کور کې ډيره اُولږه او غريبي ده ، که چيرته ته نن د نبي عليه السلام د کورنۍ سره د محبت په خاطر خپل ځان راأوغورځوى نو اګر چې د څه لږوخت د پاره به ستا په عزت کې کمې راشي خو زما فقيري به ختمه شي او نبي عليه السلام به د تا نه خوشحال شي .

جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ که دا غوښتل نو په چَپ (ګَس) لاس يې هم دا غورځولې شو خو دومره تواضع په کې وه چې د نبي عليه السلام د محبت په خاطر يې د ځان سره فيصله اوکړه چې اګر چې اوس به زما په عزت کې کمې راشي خو که د نبي عليه السلام د خاندان يو کس ته فائده اُورسي نو دا عزت زما د پاره کافي دى .

نو څه وخت يې هسې ددې کس سره ګشتي اوکړه ، بيا يې ورته ځان راأوغورځول او دا کس ورله په سِينه باندې کيناست .

بادشاه وويل : په دويم ځل ورشئ . نو په دويم ځل هم د څه کشتي کولو نه پس جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ ورته ځان پخپله راأوغورځول او هغه کس ده په سِينه کيناست .

بادشاه ډير خفه شو او جُنيد بغدادي ته يې ډيرې بَدې خبرې اوکړې تر دې پورې يې ورته وويل : زړه مې غواړي چې په غاړه کې درته د پَنړو اَميل واچوم او په ټول ښار کې دې اوګرځوم تا د دومره کمزوري کس نه مقابله اُوبائيلله .

په جُنيد بغدادي رَحِمَهُ اللّٰهُ کې دومره تواضع وه چې د رسولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په محبت کې

یې دا هر څه برداشت کړل. کور ته چې راغی نو ښځه او نوره کورنۍ یې ټول خفه وو چې تا خو خپل عزت په خاورو کې ملاؤ کړو، خو جُنید بغدادي رَحِمَهُ اللهُ په خپل زړه کې مطمئن ؤ.

په همدغه شپه باندې یې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خوب کې اُولید، هغوی ده ته اوفرمایل: تا خو زما په محبت کې خپل عزت د خاورو سره ملاؤ کړو خو الله تعالی به ستا د عزت چرچه په ټوله دُنیا کې خوَره کړي.

نو د هماغه وخت نه د جُنید بغدادي رَحِمَهُ اللهُ نوم په اَولیاءُ الله ؤ کې شمار شو، او الله تعالی ورنه د دِین ډیر لوي خدمت واخیست. (۱)

## د محمد بن مقاتل رَحِمَهُ اللهُ تواضع

موسٰی بن قاسم رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې یو ځل په مونږ سخته زلزله او سُور باد شروع شو، زه محمد بن مقاتل رَحِمَهُ اللهُ ته ورغلم، هغه ته مې وویل:

اې ابوعبدالله (دا دده کُنیت ؤ) ته زمونږ اِمام یې د الله تعالی نه زمونږ د پاره دُعا اوغواړه (چې دا عذاب ختم کړي).

نو هغه په ژړا شو او وې ویل: لَیْتَنِيْ لَمْ أَکُنْ سَبَبَ هَلَاکِکُمْ.

کاش، چې زه ستاسو د هلاکت سبب نه وی. (دا یې د تواضع په وجه وویل چې په تاسو باندې دا عذاب زما په وجه راغلی. بیا دا عذاب ختم شو).

موسٰی بن قاسم رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې ما نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خوب کې اُولید نو هغه راته اوفرمایل: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ رَفَعَ عَنْکُمْ بِدُعَاءِ مُحَمَّدِ بْنِ مقَاتِلٍ.

الله تعالی د تاسو نه دا عذاب د محمد بن مقاتل رَحِمَهُ اللهُ په دُعا سره پورته کړو. (۲)

---

(۱) افضل الحکایات لمولانا محمد یونس پالنپوري ص۵۵۶، مواعظ درد محبت ج۱، زاد آخرت حصه سوم ص۲۳۱، مثالي فکر انگیز واقعات ص۱۵۶.

(۲) قال موسی بن القاسم رَحِمَهُ اللهُ: کانت عندنا زلزلة وریح حمراء، فذهبتُ إلی محمد بن مقاتل، فقلتُ: یا أبا عبد الله! أنتَ إمامنا فادع الله عز وجل لنا. فبکی ثم قال: لَیْتَنِيْ لَمْ أَکُنْ سَبَبَ هَلَاکِکُمْ. قال: فرأیتُ النبي صلی الله علیه وسلم في النوم فقال: إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ رَفَعَ عَنْکُمْ بِدُعَاءِ مُحَمَّدِ بْنِ مقَاتِلٍ. احیاء علوم الدین ج۳ ص۳۴۲ کتاب ذم الکبر والعجب بیان فضیلة التواضع، صلاح الامة ج۷ ص۳۷۹ علو الهمة فی التواضع.

سبحان الله ، نبي عليه السلام په خوب کې موسٰی بن قاسم ته فرمايي چې د تاسو نه عذاب د محمد بن مقاتل رَحِمَهُ اللهُ د دُعاؤ په برکت ختم شو ، خو پخپله په محمد بن مقاتل رَحِمَهُ اللهُ کې دومره تواضع وه چې هغه وېل : دا عذاب په تاسو باندې زما په وجه راغلی .

## د بايزيد بسطامي رَحِمَهُ اللهُ تواضع

۱ . بايزيد بسطامي رَحِمَهُ اللهُ ډېر لوی بزرګ ؤ ، ده ته چې الله تعالى دومره لوی مقام ورکړی ؤ نو دا پخپله واقعه بيانوي چې يو ځل ډېر وخت باران اُو نه شو ، د ښار خلقو وويل: داسې معلومېږي چې په دې ښار کې څوک ګناهګار کس دی د هغه د ګناهونو په وجه الله ﷻ د رحمت باران بَند کړی دی (نو په کار ده چې دغه ګناهګار د دې ښار نه اووځي) .

دا وايي چې ما کله دا خبرې واورېدې نو ما په زړه کې سوچ اوکړو چې :

اې بايزيده ! اوس تا ته په دې ښار کې د اوسېدو حق نشته ؛ ځکه دغه ګناهګار خو همدا ته يې چې ستا په وجه الله ﷻ په نورو خلقو باران نېولې دی .

نو ما خپل ځان د نورو په نسبت کمزورې او ګناهګار اوګڼل او د ښار نه اُووتم ، د دې عاجزۍ په وجه الله ﷻ راله دا دومره لوی مقام راکړی .

( په حديث کې هم راځي ، رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللهُ .(۱)

څوک چې د الله ﷻ د پاره تواضع اوکړي نو الله تعالى به هغه اوچت کړي).

۲ . د بايزيد بسطامي رَحِمَهُ اللهُ په باره کې دا هم نقل دي چې يو ځل ده اُولامبل ، نوې کپړې يې واچولې او جُمات طرف ته روان شو ، په يوه کوڅه تېرېدو ، يوې زَنانه ته دا پته نه وه چې ګنې لاندې په کوڅه کې څوک تېرېږي نو هغې د کور د چَت نه ګندګي او اِيرې لاندې

(۱) الزواجر عن اقتراف الكبائر ج۱ ص ۱۲۵ اَلْكَبِيرَةُ الرَّابِعَةُ الْكِبْرُ وَالْعُجْبُ وَالْخُيَلَاءُ ، كنز العمال رقم الحديث ۵۷۳۴، الترغيب والترهيب للمنذري ج ۱ ص ۱۵ رقم الحديث ۱۱۵ .

رااُوغورځولی ، دا ټول ګند دده په سَر او کپړو باندې رااُوغورځيد ، ده هيڅ غصه اونکړه بلکه د ځان سره يې وويل :

اې الله ! زه خو مستحق ددې ووم چې د اُور سکروټې راباندې رااُووريږې خو تا راسره د نرمې معامله اوکړه په سَر باندې د اِيرې راويشتلو په وجه دې معامله آسانه کړه .

## د عبدالعزيز بن روّاد رَحِمَهُ اللهُ تواضع

ابن وهب رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې زه د عبدالعزيز بن روّاد رَحِمَهُ اللهُ سره ناست ووم نو زما ورنون ( زَنګون ) د هغه د ورنون سره اُولږيد ، ما ورنه ځان راديخوا کړو ، پس هغه زما کپړې اُونيوی ، خپل ځان طرف ته يې نزدې کړم او راته وې ويل :

لِمَ تَفْعَلُوْنَ بِيْ مَا تَفْعَلُوْنَ بِالْجَبَابِرَةِ ؟ وَإِنِّيْ لَا أَعْرِفُ رَجُلًا مِنْكُمْ شَرًّا مِنِّيْ .

تاسو د ما سره هغه کار ولې کوئ کوم چې د جابرانو ( ظالمانو ) سره کوی ؟ زه خو په تاسو کې د خپل ځان نه بدترين کس بل نه ګورم . (١)

## د عاجزۍ په وجه ګناهګار ته مغفرت

امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ په " احياء العلوم " کې دا واقعه رانقل کړی چې په بني اسرائيلو کې يو کس وُ ، ډير زيات فسادي وُ ، د زيات فساد په وجه به خلقو ده ته " د بني اسرائيلو خَلِيع " ويل . همدارنګې په بني اسرائيلو کې يو بل عبادت ګزار وُ چې خلقو به هغه ته " د بني اسرائيلو عابِد " ويل .

يوه ورځ دا خَلِيع په دې عابد باندې تيريدو ، (په ګرمۍ کې) د عابد د سَر د پاسه وريځ وه چې په ده يې سورې کړې وُ ، نو ده د ځان سره په زړه کې وويل :

أَنَا خَلِيْعُ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ وَهٰذَا عَابِدُ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ فَلَوْ جَلَسْتُ إِلَيْهِ لَعَلَّ اللهَ يَرْحَمُنِيْ .

---

(١) قَالَ ابنُ وهبٍ رَحِمَهُ اللهُ : جَلَسْتُ إِلَى عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ أَبِي روّاد رَحِمَهُ اللهُ فَمَسَّ فخذي فخذه ، فَنَحيْتُ نفسي عنه ، فَأَخَذَ ثِيَابِيْ ، فَجَرَّنِيْ إِلَى نفسه ، وَقَالَ لِيْ : لِمَ تَفْعَلُوْنَ بِيْ مَا تَفْعَلُوْنَ بِالْجَبَابِرَةِ وَإِنِّيْ لَا أَعْرِفُ رَجُلًا مِنْكُمْ شَرًّا مِنِّيْ . احياء علوم الدين ج ٣ ص ٣٥٤ بَيَانُ أَخْلَاقِ الْمُتَوَاضِعِيْنَ ، صلاح الامة ج ٧ ص ٣٨٠ ، موسوعة الاخلاق الاسلامية ج ٢ ص ٣٧٧ .

زه د بني اسرائيلو خليع يم او دا د بني اسرائيلو عابِد دی، که چيرته زه دده سره په څنګ کې کينم نو کيدې شي الله تعالی په ما باندې هم رحم اوکړي.

نو دده سره په څنګ کې کيناست. عابد وويل:

أَنَا عَابِدُ بَنِيْ إِسْرَائِيْل وَهٰذَا خَلِيْعُ بَنِيْ إِسْرَائِيْل فَكَيْفَ يَجْلِسُ إِلَيَّ ؟

زه د بني اسرائيلو عابِد يم، او دا د بني اسرائيلو خليع دی، نو دا څنګه د ماسره کيني؟

نو تکبّرېې اوکړو او هغه ته يې ووېل: قُمْ عَنِّيْ. د مانه پاڅه.

الله تعالی د هماغه زمانې پيغمبر ته دا وَحي اوکړه:

مُرْهُمَا فَلْيَسْتَأْنِفَا الْعَمَلَ فَقَدْ غَفَرْتُ لِلْخَلِيْعِ وَأَحْبَطْتُ عَمَلَ الْعَابِدِ.

ته دې دواړو ته حُکم اوکړه چې د نوي سَر نه اعمال شروع کړي، ځکه ما خليع ته (د عاجزۍ په وجه) بخنه اوکړه، او د عابد عمل مې (د تکبّر په وجه) ختم کړو.

په يو روايت کې دا هم ذکر دي چې کومه وريځ د عابد په سَر باندې وه هغه د خليع په سَر باندې شوه.(۱)

## د مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ تواضع

حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللَّهُ چه په کوم کال د دارالعلوم ديوبند نه فارغيدو نو د دارالعلوم ديوبند انتظاميې واله د دوره حديث طالبانو ته د دَستاربندۍ دپاره د يوې جَلسې جوړولو اراده اوکړه.

تهانوي صاحب چې خبر شو نو دا او څه نور ملګري خپل استاذ "شيخ الهند رَحِمَهُ اللَّهُ" ته

---

(۱) روي أن رجلًا في بني إسرائيل كان يقال له "خليع بني إسرائيل" لكثرة فساده مرّ برجلٍ آخر يقال له "عابد بني إسرائيل" وكان على رأس العابد غمامة تظله . فلما مرّ الخليع به فقال الخليع في نفسه : أَنَا خَلِيْعُ بَنِيْ إِسْرَائِيْل وَهٰذَا عَابِدُ بَنِيْ إِسْرَائِيْل فَلَوْ جَلَسْتُ إِلَيْهِ لَعَلَّ الله يَرْحَمُنِيْ . فجلس إليه . فقال العابد : أَنَا عَابِدُ بَنِيْ إِسْرَائِيْل وَهٰذَا خَلِيْعُ بَنِيْ إِسْرَائِيْل فَكَيْفَ يَجْلِسُ إِلَيَّ ؟ فأنف منه وقال له : قُمْ عَنِّيْ . فأوحى الله إلى نبيّ ذلك الزمان : مُرْهُمَا فَلْيَسْتَأْنِفَا الْعَمَلَ فَقَدْ غَفَرْتُ لِلْخَلِيْعِ وَأَحْبَطْتُ عَمَلَ الْعَابِدِ . وفي رواية أخرى : تحوّلت الغمامة إلى رأس الخليع . إحياء علوم الدين ج ۳ ص ۳۵۰ كتاب ذم الكبر والعجب ، الزواجر ج ۱ ص ۱۱۹

راغلل ، هغه ورنه پوښتنه اوکړه : اشرف علي ! څنګه راغلي يَئ ؟

ده ورته وويل چې حضرت ! مونږ خبرشوي يو چې د مدرسې واله زمونږ د دَستاربندۍ پاره د جلسې پروګرام جوړولو اراده لري ، نو که چيرته زمونږ غوندې د نالائقه طالبانو ستاربندي اوشي نو هسې نه چې د دارالعلوم ديوبند بَدنامي اوشي ، لهذا تاسو دوی منع ړئ چې دا پروګرام اُونکړي .

کله چې شيخ الهند رَحِمَهُ اللهُ داخبره واوريده نو په جَلال کې راغی او وې ويل :

اشرف علي ! تاسو خو اوس د خپلو استاذانو د وړاندې يې نو ځکه تاسو ته خپل ځان نه ښلوميږي خو چې کله مونږ نه يو نو بيا به صرف همدا تاسو يَئ .

واقعي چې بيا داسې يو وخت راغی چې الله رب العزت مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ دده ملګري د ځلانده ستورو په شان په دُنيا روښانه کړل او لوي مقام يې ورته ورکړو . (۱)

## د مولانا رشيد احمد ګنګوهي رَحِمَهُ اللهُ تواضع

يو ځل حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رَحِمَهُ اللهُ طالبانو ته دحديث درس ورکولو ، په کې ناڅاپه باران شروع شو ، طالبانو خپل خپل کتابونه راواخيستل او کمروته يې منډې ، مولانا رشيد احمد ګنګوهي رَحِمَهُ اللهُ خپل دَسمال (رُومال) خور کړو ، او په هغې کې د طالبانو څپلۍ واچولې ، دَسمال يې راغونډ کړو او په خپل سَر باندې يې کيښود ، او و طرفته راغی (ددې دپاره چې د طالبانو څپلۍ په اُوبو لمدې نه شي) .

طالبانو چې کله اوليد چې حضرت تولې څپلۍ په سَر راايښي دي نو په جلتۍ سره راغلل رته وې ويل : حضرت ! دا بې اَدبي ده مونږ به يې په خپله راوړو . ده ورته وويل :

چو ! تاسو خو ټوله ورځ په قَالَ اللهُ او قَالَ الرَّسُوْل کې لګيا يَئ نو زه رشيد احمد چې سو څپلۍ رانه وړم نو نور به زه څه اوکړم ؟ (۲)

## د مولانا محمد قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ تواضع

نا محمد قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ د دارالعلوم ديوبند مهتمم وُ ، ديره زياته عاجزي په کې

---

شرف السوانح ص۳۱، خطبات فقير ج۱۶ ص۱۵۲ ، اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج۴ ص۲۰۶.

ابر دیوبند کیا تھے ؟ ص۸۹، طلباء کے لئے مثالی تحفہ ص۲۹۸ ، اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج۲ ص۲۲۸.

وه ، او ډير ساده ژوند يې تيرول ، هر وخت به يې په بدن باندې ساده کپړې وې او پټکې به يې وهلې ؤ ، چا دا نه پيژندلو چې ګني دا دومره لوي عالِم دی .

خو چې کله به د باطل سره د مقابلې په ميدان کې ؤ نو بيا به يې هغوی ته داسې جوابونه ورکول چې هغوی به حيران پاتې شو ، په کوم جُمات کې چې به ؤ هغه به يې په خپله جارو کولو .

چونکه ده د انګريزانو خلاف جهاد کولو ، نو انګريزانو دده د نيولو حُکم کړې ؤ ، يو کس دده د نيولو د پاره راغی ، خلقو نه يې دده پوښتنه اوکړه ، هغوی ورته وويل چې هغه د چَهتې په جُمات کې اوسيږي . کله چې دا کس جُمات ته ورأورسيد نو په جُمات کې يې يو کس أوليد چې بَنيان يې اغوستې ، پَټکې يې وهلی او جُمات جارو کوي .

دې کس دا ګمان اوکړو چې مولانا محمد قاسم نانوتويؒ د انګريزانو خلاف جهاد کوي او د يو تحريک قِيادت کوي نو دا به ډير غټ سړی وي چُغه به يې اغوستې وي ، ددې کس دا ګمان هم نه ؤ چې ګني دا په جُمات کې جارو وهونکې کس پخپله مولانا محمد قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ دی ، بلکه دا ګمان يې کولو چې ګني دا به څوک د جُمات خادِم وي.

نو ده د مولانا محمد قاسم نانوتوي رَحِمَهُ اللهُ نه پوښتنه اوکړه چې :

مولانا محمد قاسم نانوتوي چيرته دی ؟

مولانا صاحب ته خو معلومه شوې وه چې انګريزانو زما د نيولو حُکم جاري کړې دی نو د هغوی نه ځان بچ کول هم په کار دي او دروغ ويل هم ندي په کار ، نو دا چې په کوم ځای کې ولاړ ؤ د هغه ځای نه يو قدم راديخوا شو او هغه کس ته يې وويل :

اوس هغه لږ وخت مخکې په دې ځای کې ؤ . (او دا ريښتيا هم وو ) .

دې کس دا ګمان اوکړو چې هغه لږ وخت مخکې په جُمات کې ؤ او اوس نشته ، نو دا کس واپس لاړ . (۱)

سبحان الله ، دومره لوي شخصيت ؤ ليکن دومره تواضع په کې وه چې چا دا هم نه پيژندلو چې ګني دا دومره لوي عالِم دی .

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۳۸ ، اصلاحي والعات ص ۵۴۰ .

# د مفتي عزيز الرحمن رَحِمَهُ‌اللهُ تواضع

مولانا مفتي عزيزالرحمن رَحِمَهُ‌اللهُ چې د دارالعلوم ديوبند مفتي اَعظم وُ او فتاوٰی دارالعلوم ديوبند يې هم ليکلی ، ډير لوي شخصيت وُ او د ډيرو لويو لويو علماؤ استاذ وُ خو په خپله په ده کې ډيره زياته تواضع وه .

د فتاوٰی دارالعلوم ديوبند په سَر کې دده حالات ليکلي شوي ، په هغې کې دا هم ذکر دي چې دده سره په مَحله کې کونډې اُوسيدی ، دده معمول دا وُ چې په هره ورځ د ماز يګر مانځه نه پس به د هغوی د کور دَروازو ته ورغی او ورته به يې وويل :

که د بازار نه مو څه سَوداء لږي چې درله را يې وړم .

د هر کور واله به ورته ځانله ځانله سَوداء يادوله ، چا به ورته وويل : مونږ له مرچ راوړه ، چا به ورته وويل : مونږ له تېل راوړه ، چا به ورته وويل : مونږ له مالګه راوړه ، ( او نور مختلف څيزونه به يې ورته ياد کړل ) .

ده به د ټولو نه روپۍ راغونډې کړی ، بازار له به لاړ ، او د هر چا د پاره به يې سَوداء راواخيسته ، د هر کور سَوداء به يې په رُومال کې ځانله ځانله اُوتړله ، بيا به يې دا ټوله په خپل اُولي ( اُوګه ) باندې کيښوده او هر کورته به يې خپله خپله سوداء رسوله .

کله به سَوداء درَنه وه خو بيا به يې هم ټوله پخپله راوړه، بل چاته به يې نه ورکوله .

( کله به داسې اوشو چې هغوی به ورته وويل : مولانا صاحب ! مونږ درته دا دا څيزونه ياد کړي وو او تا بدل راوړي دي . نو ده به ورته وويل : هيڅ خبره نده زه به يې واپس ويسم نو دا به يې واپس وې وړَل او څه به يې چې غوښتي وو همغه به يې ورله راوړل ) .

ډير کرَتې داسې هم شوي چې د پَشکال ( بارانونو ) په مياشت کې به ددې کنډو زَنانه وُ د کور چتونه راڅڅيدل ، هغوی به دده پسې خبر رااُوليږل چې زمونږ د کور چَت راڅاڅي ، نو دا به په باران کې ورغی او د هغوی د کور په چَت باندې به يې ورله خاوره واچوله .

دده په څنګ کې يوه بُوډۍ ګنده زَنانه اُوسيده ، په باران کې ټوله شپه د هغې کور رااُوڅڅيد ، سهَر يې د مولانا صاحب پسې جواب ور اُوليږل ، دا راغی نو هغه بوډۍ زَنانه ورته وويل :

عزيزالرحمن ! زما د كور چَت خراب شوې دى پـه دې باندې د خاورې اچولو څه بندوبست پكار دى. ده ورته وويل: صحيح ده. نو خاوره يې ورله راوړه.

بيا ورته هغې ګنډې ښځې وويل: عزيزالرحمن ! خاوره خو دې راوړه ،آيا څوک مزدور نشته چې دا په چَت باندې واچوي؟ ده ورته وويل: مورې ! ددې بندوبست به هم اوشي.

نو په باران كې يې په خپله خټه اوكړه، او پاس په چَت باندې يې ورله واچوله. په باران كې سخت كار كولو په وجه ورباندې تَبه راغله او سخت بيمار شو، خو بيا هم ده دې ګونډې زَنانه ته دا خبره ښكاره نكړه چې: په دې چَت باندې ما خاوره واچوله او په ما باندې سخته تكليف تير شو.(۱)

## د شيخ الهند مولانا محمود الحسن رَحِمَهُ اَللَّهُ تواضع

۱. شيخ الهند حضرت مولانا محمود الحسن ديوبندي رَحِمَهُ اَللَّهُ د انګريزانو خلاف د هندوستان د آزادى د پاره داسې تحريک چلولې وُ چې ټول هندوستان افغانستان او تركي يې خوزولي وُ، په پوره هندوستان كې د شيخ الهند په نوم سره مشهور وُ.

يو ځل يو عالِم دده د ملاقات د پاره د لرې علاقې نه راغى ( دا يې مخكې نه وُ ليدلى)، كله چې د شيخ الهند رَحِمَهُ اَللَّهُ كور ته اُورسيد او دروازه يې اُوټكوله نو په دې وخت كې مولانا صاحب د ګرمى په وجه بَنيان اغوستې وُ او پَټكې يې ترلې وُ، بهر چې په دې ساده لباس كې رااُووت نو دې عالِم ورته وويل: زه د شيخ الهند سره ملاويږم.

ده ورته وويل: صحيح ده، راشه په حُجره (بيټَهک) كې كينه.

كله چې هغه په حُجره كې كيناست نو مولانا صاحب ورته پَنكې وَهل شروع كړو، بيا يې ورله روټۍ راوړه، دې عالِم به ورته ويل چې شيخ الهند صاحب ته خبر وركړه چې ميلمه راغلې دى. ده ورته وويل: اول تاسو په آرام باندې روټۍ اُوخورئ، خو هغه عالِم بيا وويل: شيخ الهند صاحب ته خبر وركړه چې ستا ميلمه راغلې دى. نو ده ورته وويل: وروره ! دلته شيخ الهند نشته البته محمود الحسن زما د عاجز نوم دى.

---

(۱) فتاوى دارالعلوم ديوبند ج۱ ص ۳۷ بحث لفظ مولانا قاري محمد طيب رحمه الله مهتمم دارالعلوم ديوبند، و هكذا في اصلاحي والعات ج ۵ ص ۳۸.

(ده دا خبره د تواضع په وجه اوکړه ؛ ځکه د شیخ الهند مطلب دی " د غونډ هندوستان شیخ " نو ده ځکه ورته وویل چې دلته شیخ الهند نشته )

بیا دې عالِم ته معلومه شوه چې شیخ الهند همدا محمود الحسن دی. (۱)

۲ . په رمضان کې د شیخ الهند رَحِمَهُ اللهُ معمول دا ؤ چې په هره شپه به یې د یو حافظ پسې د ماسخوتن مانځه نه پس تر سهره پورې په تراویحو کې قرآن کریم اَوریدو ، ځکه پخپله حافظ نه ؤ ، په هره دریمه یا څلورمه شپه به یې یو ختم کولو ، قاري صاحب به چې د تراویحو نه فارغ شو نو لږ وخت به هلته څملاست .

قاري صاحب پخپله واقعه بیانوي چې یوه شپه ما تراویح اوکړې او لږ آرام د پاره څملاستم نو یو کس راغی او زما خپې یې کیخکلې ( یعنی زُور یې وربانديې کولو ) ، ما دا ګمان اوکړو چې کیدې شي دا به زما څوک شاګرد یا څوک طالب العلم وي ، ډیر وخت پس چې ما اوکتل نو شیخ الهند مولانا محمود الحسن رَحِمَهُ اللهُ زما خپې کیخکلې ، زه یو دَم راپاڅیدم او اُومې ویل : حضرت ! دابې اَدبي ده ، دا تاسو څه کوی ؟

هغه راته وویل : ما سوچ اوکړو چې تاسو ټوله شپه ولاړ وی نو ستاسو خپې به ستړې شوي وي نو ځکه مې درله په خپو باندې زُور کولو . (۲)

## د سیّد سلیمان ندوي رَحِمَهُ اللهُ تواضع

سیّد سلیمان ندوي رَحِمَهُ اللهُ هغه عظیم شخصیت دی چې په خپل ژوند کې یې په ټوله دُنیا کې د عِلم چَرچه خوَره وه ، د نبي علیه السلام په سیرت باندې یې په شپږ جلده کې کتاب لیکلی ، نوم یې " سِیرةُ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " دی .

ددې کتاب د لیکلو نه پس د مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ خانقاه ته لاړ ، او هلته څه وخت ؤ . یو ځل خلقو اُولید چې د خانقاه نه بهر یې د خلقو څپلی سِیده کولی .

د همدې تواضع په وجه خو ورته الله ﷻ دومره اُوچت مقام ورکړې ؤ . (۳)

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۳۹ مع الاختصار .

(۲) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۴۲ .

(۳) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۳۵ ، اصلاحي والعات ص ۶۱۰ مع الاختصار .

## د مولانا مظفر حُسين كاندهلوي رَحِمَهُ اللَّهُ تواضع

مولانا مظفر حُسين كاندهلوي رَحِمَهُ اللَّهُ دير لوي عالِم وُ ، په كاندهله كلي كې أوسيدو ، يو حُل چيرته بل ځاى ته تللې وُ ، واپس كاندهلې ته راتلو ، كله چې د ريل گاډي نه كوز شو او كلي ته روان شو نو په لاره كې يې يو بُوډا سړې أوليد چې په سَر باندې يې د څه سامان غټ بُوج راخيستې وُ خو بُوج درُوند وُ صحيح نه شو تللى .

مولانا صاحب دې بُوډا ته ووېل : كه ستا خوښه وي نو دا بوج به درسره زه ويسم ؟ هغه ورته ووېل : ډيره ښه ده . ده هغه بُوج ورنه راواخيست او په خپل سَر باندې يې كيښود ، دواړه په لار روان وو ، په لاره كې مولانا صاحب ددې بوډا نه پوښتنه اوكړه :

چيرته روان يې ؟ هغه ورته ووېل : كاندهلې ته ځم . ده ورته ووېل: هلته څه له ځې ؟ بُوډا ورته ووېل : ما دا آوريدلي چې هلته يو دير لوي او تكړه عالِم دى نوم يې مولانا مظفرحسين دى د هغه ملاقات ته ورځم ( دې بوډا نور هم دير صفتونه اوكړل ) .

مولانا صاحب ورته ووېل : آو ، هغه عربي لوستلې شي .

دوى دواړه روان وو ، مولانا صاحب په سَر باندې لوي بُوج ايخې وُ ، كله چې كاندهلې ته اُورسيدل نو هلته خو ټولو خلقو مولانا صاحب پيژندو ، خلقو چې دده په سَر باندې دا بُوج أوليد نو دده د تعظيم د پاره يې رامَندې كړى او بُوج يې ورنه واخيست .

كله چې بُوډا ته پته أولګيده چې دا خو پخپله مولانا مظفر حسين كاندهلوي دى ( د چا ملاقات له چې زه ورځم ) نو سخت خفه شو چې ما خو دا بوج په ده باندې راوړو . مولانا صاحب ورته ووېل : خفه كيږه مه ، ما چې د تاسره دا بوج أوليد چې تا نه شو راوړى نو ماته الله تعالى ددې خدمت توفيق راكړو ، او په دې زه د الله ﷻ شكريه اَداء كوم . (۱)

## د مِيان اَصغر حسين ديوبندي رَحِمَهُ اللَّهُ تواضع

مولانا مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې كله ما په دارالعلوم ديوبند كې دَوره حديث او تخصّص اوكړو يعنى مُفتي شوم ، نو ماسره څه فارغ وخت وُ ، زه مِياں اَصغر حُسين

---

(۱) اصلاحي خطبات ج ۵ ص ۴۱ .

دیوبندي رَحِمَهُاللهُ ته ورغلم (میاں صاحب ډیر لوي عالِمِ وُ) ، د غرمې وخت وُ ، روټۍ مو اُوخوړه ، کله چې د دَسترخوان راټولو وخت شو نو ما ووېل :

حضرت ! دسترخوان به زه راغونډ کړم . میاں صاحب راته ووېل : تا د دَسترخوان راټولولو چَل زده کړی ؟ د مفتي نه دا سوال کول اګر چې په ظاهره باندې ناآشنا معلومېږي (ځکه دَسترخوان راټولول خو دومره ګران کار ندی) خو مفتي صاحب ورته ووېل : حضرت ! تاسو یې راته اُوښایئ . نو میاں صاحب راته ووېل :

ګوره ، په دې دَسترخوان کې چې کومه روټۍ پاتې شوی زه دا ځانله کېږدم ددې دپاره چې بل څوک یې اُوخوري ، یا چې په دَسترخوان باندې د خوراک دا وړې وړې ذرّې دي دا ځانله راجمع کوم او په فلاني ځای کې د مېږیانو سُوړه ده هغې ته یې اَچوم چې هغوی او نور حشرات یې اُوخوري ، دا کوم هډوکي چې پاتې شوي دا ځانله راجمع کوم او په فلاني ځای کې یې اچوم چې هلته یې سپي او پیشوګان اُوخوري ، دا د اَمونو هډوکي په فلاني ځای کې اچوم چې اُوچ شي ځکه هلته د هلکانو د لوبو میدان دی هلکان چې دا اُوګوري نو خوشحال شي چې زمونږ د لوبو د پاره څیز ملاوُ شو ، او د اَمونو پوستکي ځانله راجمع کوم دا په یو ځای کې نه غورځوم بلکه یو پوستکې په یو ځای کې اُوغورځوم یا لس قدمه مخکې بل پوستکې اُوغورځوم همدغه شان ټول خواره واره اُوغورځوم دا ددې د پاره چې که د غریب خاندان بچي دا په یو ځای کې اوګوري نو خفه به شی "چې که زمونږ پلار سره روپۍ وی نو مونږ له به یې هم اَمونه راوړي وي" نو جدا جدا یې اَچوم چې چاته پته اُو نه لږي چې ګني چا اَمونه خوړلي دي .

(سبحان الله ، بزرګان نورو خلقو ته معمولي تکلیف رسیدل هم خوَښوي) .

بهر حال ، مفتي محمد شفیع رَحِمَهُاللهُ فرمایي چې زه هلته ووم ، کله چې مونږ د ماسخوتن مونځ اوکړو او واپس راتللو نو میاں صاحب هم راسره وُ ، ما اُولیدل چې دوی خپلې څپلۍ ویستي دي او پیاده روان دی ، دیرش یا څلوېښت قدمونه مخکې یې څپلۍ واچولی .

ما ورته ووېل : حضرت ! زه په دې پوهه نه شوم چې تاسو اول څپلۍ ویستلې وی او اوس مو په خپو کړی ، دا ولی ؟

وې ویل : په دې کلي کې مسلمانان او کافران دواړه اُوسېږي ، دلته یوه کافره زِناکاره ښځه



اُوسيږي خپل عزت په روپو خرڅوي ، چې کله څوانه وه او ښائسته وه نو خلق به ورله راتلل، اوس بُوډۍ شوې ده هيڅوک ورله نه راځي ، خو دا بيا هم د شپې په دې اِنتظار ناسته وي چې اوس به څوک راشي ، زما په دې ځای باندې لاره ده چې کله زه دې ځای ته راأورسم نو څپلۍ اُوباسم ؛ ځکه د څپلو آواز د لرې پورې ځي نو هسې نه چې ددې کافرې ښځې اُميد پيدا شي چې څني ماله څوک راغی ، کله چې زه مخکې لاړ شم نو دا به واپس نااُميده شي چې دا خو ماته رانغی ، نو زه په دې ځای کې څپلۍ اُوباسم پياده روان يم چې دا زما د خپو کشار وا نه وري او دُدې کافرې ښځې زړه ته تکليف اُو نه رسي. (۱)

## د مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللّٰهُ تواضع

حضرت مولانا مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې ماته الله تعالی د مفتي اعظم جوړيدو توفيق راکړو نو ددې وجه د يوې بُوډۍ ښځې دُعا ده ، هغه دا چې زه يوه ورځ په لاره روان ووم يوې بُوډۍ د کوهي نه د اُوبو مَنګې ډک کړې وُ کور ته يې وړل غوښتل خو په سَر کولې يې نه شو ، په دې اِنتظار ناسته وه چې څوک به راشي او ماله به يې راپه سَر کړي.

مفتي صاحب فرمايي چې ما اوکتل نو مَنګې ډير دروند وُ او بُوډۍ کمزورې وه ، ما ورته وويل: ته ما ته لاره اُوښايه زه به درسره دا د کوره پورې وړسم.

نو ما هغه مَنګې په خپل سَر باندې کيښود او د هغې کور ته مې اُورسول ، بوډۍ راته ډيرې دُعاګانې اوکړې ، نو الله تعالی ماته د هغې په دُعاګانو سره دا عِلمي مقام راکړو. (۲)

## د عاجزۍ په وجه جِن ( پيرۍ ) تلل

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ ذکر کړي چې د الله ﷻ د وړاندې عاجزي په کار ده ؛ ځکه د هغه په نزد د عاجزۍ ډير لوي قدر دی.

الله تعالی خو ډير رحيم و کريم دی بلکه مخلوقات هم عاجزي خوښوي.

(بيا تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ دا واقعه ذکر کړی چې ) د يو بادشاه په لور باندې يو جِن (پيرۍ) عاشِق شو ، بادشاه ورله ډير لوي لوي عامِلان راوستل خو هيڅ ورنه جِن لرې نکړو ؛ ځکه

(۱) علامات محبت ص ۱۵۷ ، اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج ۴ ص ۲۸۴ .

(۲) علامات محبت ص ۲۹۳ ، اہل دل کے تڑپا دینے والے واقعات ج ۴ ص ۲۷۲ .

چِن ډير سَرکشه او قوي ؤ ، چې کوم عامِل به ورغی هغه به واپس روغ نه راتلو ، چِن به عامِل د لاس نه اُونيولو او پاس چَت کې به يې ورله لاس اُونخلول ، نو د يَرې نه به هيڅ عامِل نه ورتللو .

يو چا بادشاه ته په تو کې ويل چې د فلانکي جُمات مؤذِن ډير ښه عامِل دی (جِنات لرې کولې شي . دې کس صرف د مؤذن پورې مسخرې کول غوښتل) .

بادشاه مؤذِن ته ورغی ، هغه ورته قسَمونه کول چې زه عامِل نه يم دا به درته چا هسې ويلي وي . خو بادشاه نه منله او ورته وې ويل چې ضرور به راسره ځې .

کله چې مؤذن مجبور شو نو بادشاه ته يې وويل : که جِن مې ورنه لرې کړو نو څو روپۍ به راکوی ؟ بادشاه ورته وويل چې ستا څومره خوښې وي . ده ورته وويل : پنځه سوه روپۍ به راکوی (پنځه سوه روپۍ په هاغه وخت کې ډير شی وی) . بادشاه وويل : صحيح ده راځه .

مؤذِن د ځان سره سوچ اوکړو چې که جِن لرې شو نو ټول عُمر به مې مزې وي ځکه دا روپۍ ډير غټ شی دی ، او که زه يې اُووژلم نو د دُنيا ددې تکليفونو نه به خلاص شم .

بهر حال ، مؤذِن ورسره لاړ ، کله چې هلته اُورسيدل نو د بادشاه لور سره چې کوم جِن ؤ هغه ورته په سخته غصه او تيز آواز وويل : څنګه راغلې يې ؟

ده ورته په ډير عاجزۍ سره وويل : جناب ! زه عامِل نه يم بلکه زه يو غريب سړې يم دوی په زُور راوستې يم ، ما دوی ته ډير عُذرونه اوکړل خو دوی نه منله او زه يې راوستم (نورې ډير د عاجزۍ خبرې يې هم ورته اوکړی ، بيا يې ورته وويل ) که چيرته ته صرف د پنځه مِنټو د پاره ددې جينۍ نه لاړ شی نو دا به ستاسو ډيره مهرباني وي ځکه ماته به دا پنځه سوه روپۍ ملاؤ شي زه غريب يم زما به پرې کار اوشي او تا ته هيڅ نقصان نه رسي .

جِن چې دا د عاجزۍ خبرې واوريدی نو په زُوره يې اُوخندل او وې ويل : ستا د وجې زه هميشه ددينه ځم بيا به پرې هيڅ کله نه راځم .

بهر حال ، دا مؤذن په خلقو کې ډير مشهور شو چې غټ عامِل دی ، او پنځه سوه روپۍ اِنعام يې هم حاصل کړی .

علماء، طلباء، مقررین، اور عام مسلمانوں کے لئے مختلف موضوعات پر تقاریر کا ایک مفصل، مُستند، علمی اور تحقیقی ذخیرہ:

# اِصلاحی مُدلّل تقاریر

## ۱ تا ۱۵ جلد

تالیف

ابوالشمس مولانا نورالہدیٰ عفی عنہ

مدرس دارالعلوم فیض القرآن اکاخیل کالونی مردان

تهانوي رَحِمَهُ اللهُ لیکلي چې دا واقعه مې صرف ددې د پاره ذکر کړه چې کله مخلوقات هم عاجزي خوښوي نو الله تعالی خو ډیر رحیم و کریم ذات دی هغه خو په طریقِ اولٰی باندې عاجزي خوښوي او ددې ډیر قدر کوي. (۱)

## د غونډ تقریر خلاصه :

د غونډ تقریر خلاصه دا رااُووته چې تواضع (او عاجزي) بهترین صفت دی، په قرآن کریم او احادیثو کې **د تواضع ډیر فضائل او فوائد بیان شوي :**

مسلمانانو ته د تواضع حُکم شوی، الله ﷻ د نیکانو بندګانو یو صفت تواضع ذکر کړی، د آخرت نِعمتونه د تواضع کوونکو د پاره مقرر شوي.

په چا کې چې تواضع پیدا شي نو دا غټه علامه ددې ده چې دا کس د الله ﷻ محبوب دی، تواضع الله ﷻ خپلو مَحبوبو بندګانو له ورکوي، په تواضع سره د انسان مرتبه نوره هم اُوچتیږي. په تواضع کې شرافت دی، دا د انسان د نیک بَختیا علامه ده.

حِکمت او پوهه په هغه زړه کې وي چې په هغې کې تواضع وي.

د تواضع په وجه انسان ته د دواړو جهانو سعادت نصیبه کیږي، د الله ﷻ د عذاب نه محفوظ کیږي، آخِره خاتمه یې په اِیمان نصیبه کیږي، په مال او عُمر کې یې برکت پیدا کیږي، او ددینه علاوه د تواضع نورې ډیر فائدې هم شته.

لهذا انسان ته په کار دي چې په ځان کې تواضع پیدا کړي، د خلقو سره په عاجزۍ ملاویږي، نورو ته د عزت په سترګه ګوري او خپلو ماتَحتو سره د عاجزۍ معامله کوي.

**په نبي علیه السلام کې هم ډیره زیاته تواضع وه،** هیڅ کله یې خپل ځان په نورو باندې اُوچت نه ګنړل، د هغوی لِباس او تلل د تواضع وو، په کور کې به یې ضروري کار په خپله کولو، ګډې یې هم څرولي، د مسجدِ نبوي په جوړولو کې یې په خپله کانړي راوړل، د غزوه خَندق په وخت یې په خپله خاورې وړلی، د صحابه کرامو سره یې پخپله د خشاک لرګي راجمع کړي، د صحابه کرامو خدمت به یې هم کولو، د هغوی سره یې د تواضع

(۱) حضرت تھانوی رحمہ اللہ کے پسندیدہ واقعات ص ۱۹۲.

معامله کوله، تر دې چې په ماشومانو باندې يې سلام هم اچولو، او د هغوی سره يې خوش طبعي هم کوله.

په نبي عليه السلام کې دومره تواضع وه چې په خَر باندې يې سوَرلي هم کړی، د مريضانو بيمارپُرسي به يې کوله، د مسلمانانو په جنازه کې به شريکيدو، د ګندو او يتيمانو سره به يې مدد کولو، د ضرورت مَندو سره به تللو او د هغوی ضرورت به يې پوره کولو، د غريبانو دعوت به يې قبلولو او هرچا ورسره په آسانه ملاقات کولې شو.

همدارنګې په نورو پيغمبرانو کې هم تواضع وه، تر دې چې حضرت موسیٰ عليه السلام ته خو د همدې تواضع په وجه د الله ﷻ سره د هَمکلامی شرَف حاصل شوی.

**همدارنګې په صحابه کرامو رضي الله عنهم کې هم ډيره تواضع وه:** حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه به د ګاونډيانو د پاره ګډې رالوَشلې او د کمزورو خلقو خدمت به يې کولو.

په حضرت عمر رضي الله عنه کې هم ډيره تواضع وه، د اميرُ المؤمنين کيدو باوجود يې د غريبانانو خدمت کولو، د هرچا خبره به يې په غوَر سره آوريده او د هغه ضرورت به يې پوره کولو، په کپړو کې به يې اکثر ثوارلس پيوَندونه ووْ.

په حضرت عثمان رضي الله عنه کې هم ډيره تواضع وه؛ چې کله آميرُ المؤمنينؤ نو بيا يې هم د صحابه کرامو سره يو شان ژوند تيرول، او د هغوی خدمت به يې کولو.

همدارنګې په حضرت علي رضي الله عنه کې هم ډيره تواضع وه، ځپل ځان به يې اُوچت نه ګنړل، چې کله اميرُ المؤمنينؤ نو بيا يې هم پيوَند شوې کپړې اغوستې.

همدارنګې په نورو صحابه کرامو او د اُمت مسلمه په نورو بزرګانو کې هم ډيره تواضع وه.

## دُعا

الله تعالى دې په مونږ کې هم تواضع (عاجزي) او نور ښه صفتونه پيدا کړي، او ربِّ کريم دې مونږ ټول د بدو صفاتو نه اُوساتي. پروردګارِ عالَم دې مونږ ټول د رسولُ الله صلی الله عليه وسلم په نقشِ قدم باندې روان کړي.

آمِيْن يَارَبَّ الْعَالَمِيْن.

وَآخِرُ دَعْوَانَا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د جمعې اوله خطبه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلِيِّ الذَّاتِ عَظِيْمِ الصِّفَاتِ سَنِيِّ السِّمَاتِ كَبِيْرِ الشَّانِ ، جَلِيْلِ الْقَدْرِ رَفِيْعِ الذِّكْرِ مُطَاعِ الْأَمْرِ جَلِيِّ الْبُرْهَانِ ، فَخِيْمِ الْإِسْمِ عَزِيْزِ الْعِلْمِ وَسِيْعِ الْحِلْمِ كَثِيْرِ الْغُفْرَانِ ، جَمِيْلِ الثَّنَآءِ جَزِيْلِ الْعَطَآءِ مُجِيْبِ الدُّعَآءِ عَمِيْمِ الْإِحْسَانِ ، سَرِيْعِ الْحِسَابِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ أَلِيْمِ الْعَذَابِ عَزِيْزِ السُّلْطَانِ .

وَ نَشْهَدُ أَنْ لَّآ اِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْكَ لَهٗ فِي الْخَلْقِ وَالْأَمْرِ ، وَنَشْهَدُ أَنَّ سَيِّدَنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ ، اَلْمَبْعُوْثُ إِلَى الْأَسْوَدِ وَالْأَحْمَرِ ، اَلْمَنْعُوْتُ بِشَرْحِ الصَّدْرِ وَ رَفْعِ الذِّكْرِ ، وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَأَصْحَابِهِ الَّذِيْنَ هُمْ خُلَاصَةُ الْعَرَبِ الْعَرْبَآءِ ، وَخَيْرُ الْخَلَائِقِ بَعْدَ الْأَنْبِيَاءِ .

أَمَّا بَعْدُ فَيَآ أَيُّهَا النَّاسُ وَحِّدُوا اللّٰهَ فَإِنَّ التَّوْحِيْدَ رَأْسُ الطَّاعَاتِ ، وَاتَّقُوا اللّٰهَ فَإِنَّ التَّقْوٰى مِلَاكُ الْحَسَنَاتِ ، وَعَلَيْكُمْ بِالسُّنَّةِ فَإِنَّ السُّنَّةَ تَهْدِيْ إِلَى الْإِطَاعَةِ ، وَمَنْ أَطَاعَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَقَدْ رَشَدَ وَاهْتَدٰى ، وَ إِيَّاكُمْ وَالْبِدْعَةَ فَإِنَّ الْبِدْعَةَ تَهْدِيْ إِلَى الْمَعْصِيَةِ ، وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ وَغَوٰى ، وَعَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ فَإِنَّ الصِّدْقَ يُنْجِيْ وَالْكَذِبَ يُهْلِكُ ، وَعَلَيْكُمْ بِالْإِحْسَانِ فَإِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ، وَلَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ فَإِنَّهٗ أَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ ، وَلَاتُحِبُّوا الدُّنْيَا فَتَكُوْنُوا مِنَ الْخَاسِرِيْنَ ، أَلَا وَ إِنَّ نَفْسًا لَنْ تَمُوْتَ حَتّٰى تَسْتَكْمِلَ رِزْقَهَا ، فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَ أَجْمِلُوْا فِي الطَّلَبِ وَتَوَكَّلُوْا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ ، وَادْعُوْهُ فَإِنَّ رَبَّكُمْ مُجِيْبُ الدَّاعِيْنَ ، وَاسْتَغْفِرُوْهُ يُمْدِدْكُمْ

بِأَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ . أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ . وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْ أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ .

بَارَكَ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ فِي الْقُرْآنِ الْعَظِيْمِ . وَنَفَعَنَا وَإِيَّاكُمْ بِالْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ . اَسْتَغْفِرُ اللهَ لِيْ وَلَكُمْ وَلِسَائِرِ الْمُسْلِمِيْنَ . فَاسْتَغْفِرُوْهُ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ .

## د جُمعې دويمه خطبه

( نوټ : خطيب به د اولنې خطبې ويلو نه روستو دومره اندازه کيني چې اندامونه يې مطمئن شي ، يا به اُودريږي او دا لاندې دويمه خطبه به شروع کړي )

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنُؤْمِنُ بِهِ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ . وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلَامُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَاهَادِيَ لَهُ . وَنَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيْكَ لَهُ وَنَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ . أَرْسَلَهُ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّ نَذِيْرًا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ . مَنْ يُّطِعِ اللهَ وَ رَسُوْلَهُ فَقَدْ رَشَدَ . وَمَنْ يَّعْصِهِمَا فَإِنَّهُ لَايَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ وَلَا يَضُرُّ اللهَ شَيْئًا . اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ إِنَّ اللهَ وَمَلٰٓئِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا . اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَ رَسُوْلِكَ . وَصَلِّ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ . وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهِ وَ ذُرِّيَّاتِهِ .

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْحَمُ أُمَّتِيْ بِأُمَّتِيْ اَبُوْبَكْرٍ . وَأَشَدُّهُمْ فِيْ أَمْرِ اللهِ عُمَرُ . وَ أَصْدَقُهُمْ حَيَآءً عُثْمَانُ . وَ أَقْضَاهُمْ عَلِيٌّ . وَفَاطِمَةُ سَيِّدَةُ نِسَآءِ اَهْلِ الْجَنَّةِ . وَالْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ . وَحَمْزَةُ اَسَدُ اللهِ وَاَسَدُ رَسُوْلِهِ . اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْعَبَّاسِ وَ وَلَدِهِ مَغْفِرَةً ظَاهِرَةً وَّ بَاطِنَةً لَاتُغَادِرُ ذَنْبًا . اَللهَ اَللهَ فِيْ أَصْحَابِيْ

لَاتَتَّخِذُوْهُمْ غَرَضًا مِنْ بَعْدِيْ ۔ فَمَنْ أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّيْ أَحَبَّهُمْ ، وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِيْ أَبْغَضَهُمْ ، وَخَيْرُ أُمَّتِيْ قَرْنِيْ ، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ، وَالسُّلْطَانُ ظِلُّ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ ۔ ، مَنْ أَهَانَ سُلْطَانَ اللّٰهِ فِي الْأَرْضِ أَهَانَهُ اللّٰهُ ۔ ، إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيْتَآءِ ذِی الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ، فَاذْكُرُوْنِيْ أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِيْ وَلَاتَكْفُرُوْنِ ۔ .

## د وړوکي اختر اولنۍ خطبه

اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ۔ ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الْمُنْعِمِ الْمُحْسِنِ الدَّيَّانِ ۔ ، ذِی الْفَضْلِ وَالْجُوْدِ وَالْإِحْسَانِ ۔ ، ذِی الْكَرَمِ وَالْمَغْفِرَةِ وَالْإِمْتِنَانِ ۔ ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ۔ ، وَنَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْكَ لَهٗ وَنَشْهَدُ اَنَّ سَيِّدَنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهُ الَّذِيْ اُرْسِلَ حِيْنَ شَاعَ الْكُفْرُ فِي الْبُلْدَانِ ۔ ، صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ مَا لَمَعَ الْقَمَرَانِ وَتَعَاقَبَ الْمَلَوَانِ ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ۔ ،

اَمَّا بَعْدُ فَاعْلَمُوْا اَنَّ يَوْمَكُمْ هٰذَا يَوْمُ عِيْدٍ لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ فِيْهِ عَوَآئِدُ الْإِحْسَانِ ۔ ، وَرَجَآءُ نَيْلِ الدَّرَجَاتِ وَالْعَفْوِ وَالْغُفْرَانِ ۔ . اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ۔ ، وَقَدْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيْدًا وَهٰذَا عِيْدُنَا ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ۔ ، وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا كَانَ يَوْمُ عِيْدِهِمْ يَعْنِيْ يَوْمَ فِطْرِهِمْ بَاهٰى بِهِمْ مَلَآئِكَتَهٗ فَقَالَ يَا مَلَآئِكَتِيْ مَاجَزَاءُ اَجِيْرٍ وَّفّٰى عَمَلَهٗ ، قَالُوْا رَبَّنَا جَزَاءُهٗ اَنْ يُّوَفّٰى اَجْرُهٗ ،

قَالَ مَلَائِكَتِيْ عَبِيْدِيْ وَ إِمَائِيْ قَضَوْا فَرِيْضَتِيْ عَلَيْهِمْ ثُمَّ خَرَجُوْا يَعُجُّوْنَ إِلَى الدُّعَاءِ ، وَعِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ وَكَرَمِيْ وَعُلُوِّيْ وَ اِرْتِفَاعِ مَكَانِيْ لَأُجِيْبَنَّهُمْ فَيَقُوْلُ ارْجِعُوْا قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ وَبَدَّلْتُ سَيِّاٰتِكُمْ حَسَنَاتٍ ، قَالَ فَيَرْجِعُوْنَ مَغْفُوْرًا لَّهُمْ . اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ، وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ اَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ كَانَ كَصِيَامِ الدَّهْرِ ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ بَيْنَ اَضْعَافِ الْخُطْبَةِ وَ يُكْثِرُ التَّكْبِيْرَ فِيْ خُطْبَةِ الْعِيْدَيْنِ ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ، اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ، قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى وَ ذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى .

## د وړوكي اختر دويمه خطبه

( **نوټ** : خطيب به د اولې خطبې ويلو نه روستو دومره اندازه كيني چې اندامونه يې مطمئن شي ، يا به پاڅي او دا لاندې دويمه خطبه شروع كړي )

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنُؤْمِنُ بِهٖ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْهِ ، وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَا مُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ، وَنَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَنَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ، اَرْسَلَهٗ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّ نَذِيْرًا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ ، مَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَقَدْ رَشَدَ ، وَمَنْ يَّعْصِهِمَا فَاِنَّهٗ لَا يَضُرُّ اِلَّا نَفْسَهٗ وَلَا يَضُرُّ اللّٰهَ شَيْئًا ، اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ، اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَ رَسُوْلِكَ ، وَصَلِّ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ ، وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ ،



